په مختلفو موضوع ګانو باندې

دتقریرونو یوه مُفصّله، مُعتمَده، عِلمي، او تحقیقي مجموعه:

# دتقریرونو

# مُدلّلہ ذخیرہ

1
جلد اول

(تالیف)


ابو الشمس مولانا نور الهدی عفي عنه

فاضل جامعه امداد العلوم پشاور صدر، ووفاق المدارس العربیه ملتان

ایم اے عبدالولی خان یونیورسٹی مردان

مُدرس دارالعلوم فیض القرآن اکاخیل کالونی مردان



مکتبہ اعزازیہ محلہ جنګي پشاور

جاده میوند پخته فروشی کابل

زیر اهتمام
کفایت الله ازمانی
0344-9995990

په مختلفو موضوع ګانو باندې

د تقريرونو يوه مُفصّله، مُعتمَده، عِلمي، او تحقيقي مجموعه :

# د تقريرونو مُدَلَّلــــهُ ذَخيره

جلد ١

تاليف


اَبُوالشَّمس مولانا نُورُالهُدٰی عُفِيَ عَنهُ

فاضلِ جامعه امدادُالعلوم پشاور صدر ، و وفاق المدارس العربية ملتان

ایم اے عبدالولی خان یونیورسٹی مردان

حالًا : مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القرآن اکاخیل کالونی ، مردان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

د کتاب نوم : د تقريرونو مُدَلَّلــهٔ ذَخيره جلد ۱

مؤلف : اَبُو الشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدٰى عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اكاخيل كالونى مردان

فون نمبر ۰۳۰۶ ۵۴۴۷۱۷۴

کمپوزر : مؤلف پخپله

د چاپ کال ۱٤٤۱هـ ق ، ۱۳۹۸ هـ ش، مطابق ۲۰۲۰ ء




زير اهتمام کفايت الله ارماني ۰۳٤٤-۹۹۹۵۹۹۰

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سریزه ( د اول جلد )

نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّيْ عَلٰی رَسُوْلِهِ الْكَرِيْم ، اَمَّابَعْد !

ددینه مخکې ما د تقریرونو یوه سلسله د " اِصْلَاحِيْ مُدَلَّلْ تَقْرِيْرُوْنه " په نامه باندې شروع کړې وه ، الله ﷻ په خپل فضل و کرَم سره هغې ته په عِلمي حَلقو کې پوره مقبولیت ورکړو ، اوس دیر اهلِ عِلم ورنه اِستفاده کوي ، هغه سلسله مې په پنځلسم جلد باندې اُودروله ، ځکه که په همغې نوم مې هغه سلسله په مخکې بوتللې وی نو بیا کتاب دیر غټیدو ، د اِقتصادي مشکلاتو په وجه کمزروي کس نه شو اخیستی ، نو ځکه مې د هغه پنځلسم جلد نه پس دا دویمه سلسله شروع کړه ، ددې نوم دی : " د تقریرونو مُدَلَّلَـــهٔ ذَخیره "

په دې کې به هم اِنْ شَاءَ الله په هماغه انداز باندې جامِع او تفصیلي تقریرونه وي.

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ، اَلشُّکْرُ لِلّٰهِ . ددې دا اول جلد ستاسو په لاس کې دی او دا سلسله به همداسې جاري وي .

په دې اول جلد کې د زَنانهٔ د پَردې متعلق تفصیلي تقریرونه دي .

## علماء به خپل وعظ و نصیحت نه پرېږدي

بعضې علماء د پَردې متعلق بیان نه کوي ، کیدې شي چې دوی مایوسه شوي وي او دا ګمان کوي چې کله په خلقو باندې اَثر نه کوي نو بیا یې ولې بیان کړم؟

خو خبردار ، علماء دې هیڅ کله نه مایوسه کیږي ، ځکه د دَاعي کار دادی چې دا به خپل دَعوت جاري ساتي ، اَخوا نتیجه ورباندې مرَتّب کول د الله ﷻ په اِختیار کې ده .

دا خبره په تجربې سره ثابته شوې ده چې کله یو عالِم په اخلاص باندې خلقو ته نصیحت کوي نو دا ضرور یوه ورځ اَثر کوي .

الله تعالی فرمایي :

﴿ وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ .(١)

ترجمه: او ته نصیحت کوه بیشکه نصیحت (خامخا) مؤمنانو ته فائده ورکوي.

اګر چې په معاشره کې بې پَردګي عامه شوی خو بیا هم د اِصلاح اُمید شته؛ ځکه د کمزوریانو باوجود اوس هم د خلقو په زړونو کې د اِیمان جَذبه شته، که علماء په اِخلاص سره دوی ته د پَردې دا خبره بیان کړي نو ضرور به اَثر کوي.

بل دا چې که علماء دا مسئله بیانول مکمل پرېږدي نو هسې نه چې حالت دې اَندازې ته اُورسي چې بیا به د خلقو د اِصلاح اُمید هم ختم شي.

لهذا مُقرّرین حضرات دې دا خپله فریضه اَداء کړي، خلقو ته دې د پَردې اَهمیت او فضائل بیان کړي، د بې پَردګۍ نقصانات دې ورته واضحه کړي، او ورسره دې د پَردې په اَهمو مسائلو باندې هم پوهه کړي نو اُمید شته چې د معاشرې نه به د بې پَردګۍ دا ګناه ختمه شي.

## په دې آئنده سلسله کې د شاملیدونکو موضوعګانو اجمالي فهرست

په دې آئنده سلسله کې چې په کومو موضوعګانو باندې لیکل کوم هغه دادي:

د زَنانهٔ د پاره د شرعي پَردې اَهمیت او ثبوت، د زَنانهٔ د پاره د پَردې فضائل او بې پَردګۍ سزاګانې، د ښځو د پاره د کور نه د بهر وتلو شرائط او آداب، د پَردې متعلق اعتراضات او د هغې جوابات، د پَردې متعلق ضروري فِقهي مسائل

( دا مذکوره موضوعګانې په دې اول جلد کې دي. او د نورو جلدونو موضوعګانې دادي: )

پَردۍ ښځې سره د خَلوَت او اِختلاط حُرمت، د بَدنظرۍ سزاګانې او نقصانات، په اسلام کې د زَنانهٔ حقوق، په میراث کې د زَنانهٔ حقوق، د تواضع فضائل او د نبي ﷺ د تواضع واقعات، په ښځه باندې د خاوند حُقوق، په خاوند باندې د ښځې حُقوق، د ګاونډي حُقوق، د یو مسلمان په بل باندې حُقوق، د بچو صحیح تربیت کول، د ژوند تیرولو اِسلامي آداب، د معاشرې غلط رَسمونه او رِواجونه، د بِدعاتو رَد، د نبي علیه السلام سِیرت، ختمِ نبوّت، د خلفائې راشدینو فضائل او کارنامې، د جنت نِعمتونه او ددې د حاصلولو طریقې، د جهنم عذابونه او

---

(١) الذاريات آية ٦٦.

ددينه د بچ کيدلو طريقې، د قيامت نخې، د غير مُسلمو د اِتباع نه ځان ساتل، د الله ﷻ د گرفت نه ويريدل، د الله ﷻ نه يَره او اُميد لرل، په هر حالت کې الله ﷻ طرف ته رجوع کول او په الله ﷻ باندې توکّل کول، په تقدير باندې راضي کيدل، خپل نفس کنټرول کول، د دُنيا حقيقت او ددې د محبت نه ځان ساتل، د دِين د سَرلُوړی د پاره تکليفونه برداشت کول (استقامت)، اسلامي غيرت، د آخرت د پاره تياري کول، د الله ﷻ او رسول ﷺ سره ريښتيني محبت کول، الله ﷻ ته محبوب اعمال، د نفس تَزکيه، د نېکانو خلقو د صُحبت ښه اَثرات، قيمتي وخت فضول نه ضائع کول، د اِسلامي نِظام د نِفاذ د پاره کوشش کول، د جمهوريت حقيقت، د تقليد حقيقت، د برکت اَسباب، د مُؤمن فِراست، د کونډو او يتيمانو سره مدد کول، اَمر بِالمعرُوف او نَهي عَنِ المُنکر، د ذِکر فضائل، د نېکو اعمالو کولو فضائل.

په هره کبيره گناه باندې به مستقل تقرير ليکم، مثلاً:

وعده خلافي، غلا، دُهوکه، رِشوت، بُغض، زِنا، لِواطت، ظلم، صله رَحمي کټ کول، په ناحقه قتل کول، د مسلمان جاسوسي کول، جَگړې کول، فحش او بې هوده خبرې کول، په مسلمان بَدگماني کول، په بل چا بُهتان لږول، سَندرې ويل او اَوريدل، بې ځايه قسَمونه کول، د مسلمان سپکاوې، د مخلوقاتو نه طمع ساتل، د الله ﷻ نه نااُميده کيدل، فضول خرچي او اِسراف.

همدارنگې په هر ښه صفت باندې به هم مستقل تقرير ليکم، مثلاً:

اَمانت داري، حَياء، وَفاء، انصاف، شجاعت، قناعت، په يو بل مهربانه کيدل، تقوٰی، او غصه برداشت کول.

همدارنگې " د ټول کال د هرې مياشتې مناسب تقرير " به هم ليکم چې په هغې کې به د هغه مياشتې فضائل او اَهم واقعات ذکروي.

د وخت او موقعې مناسب به اِن شَاءَ الله په دې کې نورې ضروري موضوع گانې هم اِضافه کوم، او کومو علماؤ چې راته په ټيلفون باندې په څنې موضوع گانو

باندې د ليکلو مشوره راکړي ده هغه ټولې موضوع ګانې به هم إِنْ شَاءَ الله په دې سلسله کې شاملوم .

الله تعالى دې زما دا علمي کوشش په خپل دربار کې قبول او منظور کړي .

ربِّ کريم دې دا ټول کتابونه د علماؤ ، طلباؤ ، امامانو ، خطيبانو ، مقرّرينو او عامو مسلمانانو لپاره د ډيرې فائدې او اِصلاح ذريعه اوګرځوي .

پَروَردِګار عالَم دې دا کتابونه زما او زما د والدينو ، اُستاذانو ، مشرانو او د ټول اُمتِ مسلمه لپاره د مغفرت ذريعه او د فلاح و نجات سبب اوګرځوي .

آمِيْن يَا رَبَّ الْعَالَمِيْن .

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ

**نوټ** : که د کتاب متعلق يا بله څه مفيده مشوره وي نو په دې ۰۳۰٦ ۵۴۴۷۱۷۴ نمبر راسره رابطه کولې شي .

**ابوالشمس نُورُالهدٰى عفى عنه**

# په الفاظو کې فرق پېژندل

په دې کتاب کې څه الفاظ په لیکلو کې یو شان معلومېږي خو مطلبونه یې جدا جدا دي ، په دې باندې اول ځان پوهه کړئ نو بیا به درته د کتاب په کتلو کې څه مشکل نه وي :

**پَرده ، پَردې :** چې کله په " پ " باندې زَبر وي نو ددینه به شرعي پَرده یعنی د زَنانهؤ حِجاب مراد وي. لکه په دې جُملو کې :

پَرده فرض ده . د پَردې اهمیت...

**پرَدې ، پرَدي ، پرَدو :** چې کله په " ر " باندې زَبر وي نو ددینه به اَجنبي (غیر مَحرَم) کس مراد وي . لکه په دې جُملو کې :

پرَدې سړې به بنځو ته نه ورځي. زَنانه د پاره د پرَدي کس سره کیناستل منع دي .
زنانه د پاره د پرَدو سړو سره ګپ شپ لړول منع دي .

که دا الفاظ په یوه جُمله کې راشي نو په همدې زَبر سره به یې فرق کوو . مثلا :
" زَنانه د پاره د پرَدي سړي نه پَرده فرض ده "
په دې جمله کې ددې اول " پرَدي " نه اَجنبي (غیر مَحرَم) کس مراد دی ، او د دویم " پَرده " نه شرعي پَرده ( یعنی حِجاب ) مراد دی .

ابو الشمس علي عنه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# اِجمالي فهرست

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

# تفصيلي فهرست

| نمبر شمار | موضوع | صفحه |
|---|---|---|

| نمبرشمار | موضوع | صفحه |
|---|---|---|

| نمبر شمار | موضوع | صفحه |
|---|---|---|

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى ﴾

الاحزاب آیة ۳۳.

# د زَنانهٔ د پاره د شرعي پَردې اَهمیت او ثبوت

تالیف

اَبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدٰی عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فیض القرآن اکاخیل کالونی مردان

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د زنانه ؤ د پاره د شرعي پردې أهميت او ثبوت

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَحْدَهُ ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مَنْ لَّا نَبِيَّ بَعْدَهُ ، وَلَا رَسُوْلَ بَعْدَهُ ، وَهُوَ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ ، وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ ، وَعَلٰى مَنْ تَبِعَهُ وَتَبِعَهُمْ بِاِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ

اَمَّا بَعْدُ فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ :

﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى ﴾ . (۱)

وَ قَالَ تَعَالٰى : ﴿ يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ وَبَنٰتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِيْنَ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ يُّعْرَفْنَ فَلَا يُؤْذَيْنَ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴾ . (۲)

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ . (۳)

صَدَقَ اللّٰهُ الْعَظِيْمُ .

---

(۱) الاحزاب آية ۳۳ .

(۲) الاحزاب آية ۵۹ .

(۳) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ وقال الترمذي : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ . قال الالباني : صحيح . مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ إِلَى الْمَخْطُوبَةِ وَبَيَانِ الْعَورات اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۱۰۹(۱۲) ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۷۶۱۶ ، كنز العمال رقم الحديث ۴۵۰۲۵ ، صحيح الترغيب والترهيب كتاب الصلاة ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها رقم الحديث ۳۴۶(۷) .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ الْمَرْأَةَ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ ، وَأَقْرَبُ مَا تَكُوْنُ مِنْ وَجْهِ رَبِّهَا وَهِيَ فِيْ قَعْرِ بَيْتِهَا . صحيح ابن خزيمة رقم الحديث ۱۶۸۵ ، و رقم الحديث ۱۶۸۶ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۵۹۸ ، و رقم الحديث ۵۵۹۹ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۱۱۵ ، صحيح الترغيب والترهيب كتاب الصلاة ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها رقم الحديث ۳۴۴(۵) .

# تمهیدي خبره

زما خوږو قدرمنو او عزت مندو مسلمانانو ورونو ! اسلام یو فطري مذهب دی ، په دې کې مسلمانانو ته د حیاء ، عِفت او پاکدامنۍ حُکم شوی . او د بې حیایۍ ، زِنا او نورو ناجائزو کارونو نه منع شوي ، په همدې خاطر اسلام په ډیر تاکید سره زَنانه وُ ته د شرعي پَردې حکم کړی ؛ ځکه په پَرده کې د زَنانه حیاء او عزت محفوظ وي .

دغه وجه ده چې د قرآن کریم په اُووه ( ۷ ) آیتونو کې صراحةً د پَردې حُکم ذکر شوی (څلور آیتونه په سورة احزاب کې دي ، او درې آیتونه په سورة نُور کې دي)

همدغه شان نبي علیه السلام د اُویاؤ (۷۰) نه په زیاتو احادیثو کې قولاً او عملاً د پَردې احکامات ذکر کړي . (۱)

په نن موضوع کې به زه إن شاء الله تاسو ته د پَردې اَهمیت ذکر کوم ، او ورسره به د پَردې په فرضیت باندې درته د قرآن کریم ، احادیثو ، اجماع او قیاس نه دلائل هم ذکر کوم.

خو د ټولو اول درته دا خبره واضحه کوم چې پَرده څه ته وایي ؟

## د " حِجاب " لغوي او اِصطلاحي تعریف

د زَنانه وُ پَردې ته په عربۍ کې " حِجَاب " وایي .

د حِجاب لغوي معنی ده : " منع کول او پټول " . همدارنګې کوم څیز چې د دوه شیانو په مینځ کې حائِل شي نو هغې ته هم حِجاب وایي . (۲)

---

(۱) تفسیر معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفیع رحمه الله سورة الاحزاب في تشریح آية ۵۳ .

(۲) اَلحِجَابُ فِي اللُّغَةِ : اَلسَّتْرُ ، وَهُوَ مَصْدَرٌ يُقَال حَجَبَ الشَّيْءَ يَحْجُبُهُ حَجْبًا وَحِجَابًا : أَيْ سَتَرَهُ ، وَقَدِ احْتَجَبَ وَتَحَجَّبَ إِذَا اكْتَنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ . وَالحِجَابُ إِسْمُ مَا احْتُجِبَ بِهِ ، وَكُلُّ مَا حَال بَيْنَ شَيْئَيْنِ فَهُوَ حِجَابٌ .
الموسوعة الفقهية الكويتية ج ۱۷ ص ۵ حِجَاب .

اَلحِجَابُ لُغَةً : لَفْظُ الحِجَابِ يُسْتَعْمَلُ فِي اللُّغَةِ مُرَادًا بِهِ أَحَدُ أَمْرَيْنِ : اَلأَوَّلُ أَنْ يَكُوْنَ مَصْدَرًا ، وَمَعْنَاهُ حِيْنَئِذٍ " اَلمَنْعُ " وَيُرَادِفُهُ الحَجْبُ ، يُقَالُ : حَجَبَ الشَّيْءَ يَحْجُبُهُ حَجْبًا وَحِجَابًا مَنَعَهُ .

يَقُوْلُ ابْنُ فَارِسٍ : اَلحَاءُ وَالجِيْمُ وَالبَاءُ أَصْلٌ وَاحِدٌ وَهُوَ المَنْعُ ، يُقَالُ حَجَبْتُهُ عَنْ كَذَا أَيْ مَنَعْتُهُ . ←←←←

علماؤ د حِجاب اصطلاحي تعريفونه ډير کړي ، د هغې ټولو خلاصه داده چې د حِجاب نه مراد هغه پَرده او حائِل دی چې د هغې په وجه د ښځې ټول بدن او مخ د غير مَحرَمو سړو نه پټ وي او ددې په وجه نور خلق ددې بدن نشي ليدلی .

چونکه په شرعي حِجاب کې هم ښځه د نورو خلقو د غلطو نظرونو نه محفوظه وي نو ځکه ورته " حِجاب " (مانِع) وايي .(۱)

---

←←← وَقَالَ الرَّاغِبُ : اَلحَجْبُ وَالحِجَابُ : اَلْمَنْعُ مِنَ الوُصُوْلِ . اَلآخَرُ أَنْ يَكُوْنَ إِسْمًا ، وَيُرَادُ بِهِ : اَلسِّتْرُ أَوِ السَّاتِرُ . قَالَ فِي الصِّحَاحِ : اَلحِجَابُ : السِّتْرُ . نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم ﷺ ج ۴ ص ۱۵۱۴ حرف الحاء الحجاب

(۱) علماؤ د حجاب اصطلاحي تعريفونه ډير زيات کړي دي خو زه (ابوالشمس) به درته يو څو رانقل کړم :

❁ التعريف المختار : الحجابُ شرعًا : ما يستر جميع بدن المرأة المسلمة عن الرّجال الأجانب مِن لباسٍ واسعٍ سابغٍ يغطي جميع بدنها و وجهها . او حائلٍ يحول بينها و بينهم ، و يمنع رؤية شيء من بدنها . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۸ .

❁ و اصطلاحًا : قَالَ الكَفَوِيُّ : اَلحِجَابُ كُلُّ مَا يَسْتُرُ المَطْلُوْبَ وَيَمْنَعُ مِنَ الوُصُوْلِ إِلَيْهِ فَهُوَ حِجَابٌ ، كَالسِّتْرِ وَالبَوَّابِ وَالجِسْمِ وَالعَجْزِ وَالمَعْصِيَةِ . الكليات للكفوي ص ۳۶۰ فصل الحاء

وَالحِجَابُ المَقْصُوْدُ مِنْ أَمْرِ اللهِ وَرَسُوْلِهِ سَتْرُ الوَجْهِ وَسَائِرِ البَدَنِ سَتْرًا كَامِلًا بِحَيْثُ لَا يَبِيْنُ مِنْهُ شَيْءٌ . الحجاب والسفور ص ۱۳۶ . نضرة النعيم ج ۴ ص ۱۵۱۵ الحجاب .

❁ قيل : هو ما تلبسه المرأةُ من الثِّياب لستر العورةِ عَن الاجانب . معجم لغة الفقهاء ج ۱ ص ۱۷۲ حرف الحاء

❁ وقيل : اَلحجابُ : لِباسٌ شرعيٌّ سابغٌ . تستر به المرأة المسلمة ، ليمنع الرجال الأجانب من رؤية شيء من بدنها . حجاب المرأة المسلمة بين انتحال المبطلين وتأويل الجاهلين ص ۳۰ .

❁ وقيل : اَلحجابُ : هو ساتر يستر الجسم فلا يشف ، ولا يصف . إعداد المرأة المسلمة ص ۱۰۶ .

❁ وقيل : الحجابُ : هو حجب المرأة المسلمة من غير القواعد من النساء عن أنظار الرجال غير المحارم لها . فصل الخطاب للشيخ ابي بكر الجزائري ص ۲۶ .

❁ وقيل : الحجاب لفظ ينتظم جملة من الأحكام الشرعية الاجتماعية المتعلقة بوضع المرأة في المجتمع الإسلامي من حيث علاقتها بمن لا يحل لها أن تظهر زينتها أمامهم . عودة الحجاب ج ۳ ص ۷۷ .←←←←

# پَردہ فرض ده

د زَنانه ؤ د پاره د غير مَحرَمو (پرَدو) سرو نه پَرده فرض ده . (۱)

ځکه ددې ثبوت د قرآن کريم د صريحو آيتونو ، متواتر صريحو احاديثو ، اِجماعِ اُمت او قياس نه شوی .

او څوک چې د ښځو د پَردې نه اِنکار کوي او دا وايي چې " دا د ښځې خپله خوښه ده چې پرده کوي او که نه ؟ " نو داسې کس د دِين د قطعي اَحکامو نه مُنکر دی ، دا داسې دی لکه څوک چې د مونځ ، روژې ، زکوة او حج نه مُنکِر شي . (۲)

# پَرده په مخکيني اُمتونو کې هم ښه گڼلې شوه

د حضرت آدم عليه السلام نه نيولی تر د نبي عليه السلام پورې ټولو پيغمبرانو او ټولو شريفو خلقو پرده خوښه کړې ، هيچا بې پَردگي او د ښځو او سړو اِختلاط ندې خوښ کړی .

---

←←← ⊛ وقيل : حجاب المرأة شرعًا : هو ستر المرأة جميع بدنها و زينتها. بما يمنع الأجانب عنها من رؤية شيء من بدنها أو زينتها التي تتزين بها، ويكون استتارها باللباس وبالبيوت . حراسة الفضيلة لبكر ابوزيد ص ۲۶ .

⊛ وقيل : هو ستر المرأة جميع بدنها، ومنه الوجه والكفان والقدمان، وستر زينتها المكتسبة بما يمنع الأجانب عنها رؤية شيء من ذلك... حراسة الفضيلة لبكر ابوزيد ص ۲۷ .

(۱) فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۷۵ پردہ کا ثبوت اوراس کا درجہ ، بدائع الصنائع ج ۵ ص ۱۲۱ كتاب الاستحسان ، الفقه الحنفي و أدلته ج ۲ ص ۳۸۷ كتاب الحظر والاباحة . زيلعي ج ٦ ص ۱۷ كتاب الكراهية فصل في النظر والمس .

(۲) أَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ أَنَّ حِجَابَ الْمَرْأَةِ بِمَفْهُوْمِهِ الْعَامِّ شَرِيْعَةٌ وَ دِيْنٌ . وَ أَنَّهُ ثَابِتٌ قَطْعِيٌّ مُتَوَاتِرٌ فِي الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ . وَمَنْ أَنْكَرَ شَرِيْعَةَ لِبَاسِ الْمَرْأَةِ وَحِجَابِهَا . وَقَالَ " إِنَّ لِبَاسَهَا عَادَةٌ تُبْدِيْ مَا تَشَاءُ وَتَسْتُرُ مَا تَشَاءُ " فَهُوَ مُنْكِرٌ لِقَطْعِيٍّ مَعْلُوْمٍ مِنَ الدِّيْنِ بِالضَّرُوْرَةِ كَمُنْكِرِ الصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ وَالْحَجِّ . الحجاب في الشريعة والفطرة لعبدالعزيز بن مرزوق الطريفي ج ۱ ص ۸۷ .

قال محمد بن صالح العثيمين رَحِمَهُ اللهُ : إعلم أيها المسلم أنّ احتجاب المرأة عن الرّجال الأجانب وتغطية وجهها أمرٌ واجبٌ . دلّ على وجوبه كتاب ربّك تعالى، وسنّة نبيّك محمد صلى الله عليه وسلم، والإعتبار الصحيح ، والقياس المطرد . رسالة الحجاب ج ۱ ص ۹ .

بيا خاصكر د عورت پټول خو د انسان د پيدا كيدو سره سَم فرض كړې شوى.

په قرآن كريم سورة اَعراف كې ددې تذكره شته چې كله الله تعالى حضرت آدم عليه السلام او حضرت حواء رضي الله عنها پيدا كړل نو په جنت كې يې د هر څيز د خوراك اجازت وركړو ليكن د يوې اُونې (غنم دانې) د خوړولو نه يې منع كړل، خو چې كله حضرت آدم عليه السلام د شيطان په وَسوسې سره هغه اُوخوړه نو د دوى عورت ښكاره شو (دوى د عورت ښكاره كيدل اُو نه زَغملې شو) نو د جنت د اُونو په پاڼو يې خپل عورت پټولو.

الله تعالى ددې تذكره داسې كړى:

﴿... فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ الْجَنَّةِ﴾. (۱)

ترجمه: پس كله چې دوى د اُونې مزه اُوڅكله نو دوى ته خپل شرمګاهونه ښكاره شو نو دوى شروع اوكړه او په خپلو ځانونو باندې يې د جنت پاڼې نَخلولى (يعنى خپل عورت يې پټولو).

## د حضرت شعيب عليه السلام د لورانو حياء او پَرده

په قرآن كريم سورة القصص كې دا واقعه ذكر ده چې كله حضرت موسىٰ عليه السلام مَدين ته لاړ او هلته يې د يو ګوهي سره خلق اُوليدل چې خپلو څِلو (اُوزو) ته يې اُوبه وركولى خو دوه زَنانه يې يو طرف ته اُوليدى چې هغوى خپلې څيلې راحصارې كړې وى او نورو شپُونكيانو سره يې يو ځاى څِلو ته اُوبه وركول نه خوښولى، اګر چې په هغوى باندې پَرده فرض نه وه خو بيا يې هم د خپل شرافت او حياء په وجه د نورو خلقو سره يو ځاى

---

(۱) الله تعالى پوره واقعه داسې بيان كړى: ﴿وَيَا آدَمُ اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ فَكُلَا مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ ۝ فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطَانُ لِيُبْدِيَ لَهُمَا مَا وُورِيَ عَنْهُمَا مِن سَوْآتِهِمَا وَقَالَ مَا نَهَاكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هَٰذِهِ الشَّجَرَةِ إِلَّا أَن تَكُونَا مَلَكَيْنِ أَوْ تَكُونَا مِنَ الْخَالِدِينَ ۝ وَقَاسَمَهُمَا إِنِّي لَكُمَا لَمِنَ النَّاصِحِينَ ۝ فَدَلَّاهُمَا بِغُرُورٍ ۚ فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ الْجَنَّةِ ۖ وَنَادَاهُمَا رَبُّهُمَا أَلَمْ أَنْهَكُمَا عَن تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ وَأَقُل لَّكُمَا إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِينٌ ۝ قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنفُسَنَا وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾. الاعراف آية ۱۹ تا ۲۳.

ګډون (اختلاط) نه خوښول.

حضرت موسیٰ علیه السلام د هغوی نه پوښتنه اوکړه چې تاسو ولې د دوی سره یو ځای چیلو ته اُوبه نه ورکوی؟ نو هغوی ورته په جواب کې همدا وویل چې تر څو پورې دا شپونکیان نه وي تللي مونږ تر هغې پورې خپلو چیلو ته اُوبه نه ورکوو (ځکه د هغوی سره یو ځای ګډون نه خوښوو)، او زمونږ پلار بُوډا دی نور څوک نارینه مو نشته ځکه مونږ د مجبوریت نه رااُوتي یو.

د حضرت موسی علیه السلام ورباندې رَحم راغی، د کوهي نه یې ورله اُوبه رااُوویستی او د هغوی څاروي یې پرې اُوبه کړل.

کله چې دا زَنانه د خپل وخت نه مخکې کورته لاړې او حضرت شعیب علیه السلام ورنه د مخکې راتلو پوښتنه اوکړه نو دوی ورته واقعه بیان کړه.

حضرت شعیب علیه السلام اِراده اوکړه چې دې کس ته د اِحسان بدله ورکړي نو دا یوه لور یې ورپسې واپس وراُولیږله چې هغه راوله. قرآن کریم ددې بیان داسې کړی:

﴿ فَجَآءَتْهُ إِحْدَىٰهُمَا تَمْشِى عَلَى ٱسْتِحْيَآءٍ ﴾. (۱)

ترجمه: په دې دوه جینکو کې یوه حضرتِ موسی علیه السلام ته راغله، په حیاء سره راروانه وه.

ځنې مُفسّرینو لیکلي دي چې دې جینۍ د ډیرې حیاء په وجه خپل لستونړې مخ ته نیولې ؤ، حضرت موسی علیه السلام ته راغله، او ورته وې ویل چې: زما پلار تا غواړي ددې د پاره چې تا زمونږ چیلو کومې اُوبه ورکړي د هغې بدله درکړي. نو حضرت موسیٰ علیه السلام ددې سره راروان شو.

مفسّرینو لیکلي چې حضرت موسیٰ علیه السلام دې جینۍ ته وویل: زه د تا نه مخکې ځم ته راپسې شاته راروانه شه او په وینا سره راته لاره ښایه.

د حضرت موسیٰ علیه السلام مقصد دا ؤ چې په دې باندې زما نظر اُو نه لږي. (۲)

---

(۱) القصص آیة ۲۵.

(۲) تفسیر معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفیع رحمه الله سورة القصص في تشریح آیة ۲۵.

بيا حضرت شعيب عليه السلام يوه لور حضرت موسى عليه السلام ته په نکاح ورکړه .(۱)
بهر حال دا اوږده واقعه ده ، دا مختصر ځای مې ورنه صرف د دې د پاره ذکر کړو چې د پَردې اِهتمام په مخکيني اُمتونو کې هم ؤ چې د حضرت شعيب عليه السلام لوراني د نورو خلقو نه څنډې ته ناستې وې او د شپونکيانو سره يې يو ځای ګډون نه خوښول ، بيا چې حضرت موسى عليه السلام د دې جينۍ سره تللو نو هم مخکې ورنه روان ؤ چې په هغې يې نظر او نه لږي .

## د اسلام نه مخکې د عربو شريفو خلقو زَنانه ؤ هم پَرده خوښوله

د اسلام نه مخکې د شريفو خلقو زَنانه ؤ هم پرده خوښوله ، او په قرآن کريم کې چې د جاهليتِ اُولٰی د بې پَردګۍ کوم ذکر شوی نو دا د رزيلو خلقو ښځو او وينځو کوله ، د عربو تاريخ په دې باندې ګواه دی چې د شريفو خلقو زَنانه ؤ هيڅ کله بې پَردګي نه خوښوله .
ځکه الله تعالی د ښځو په طبيعت کې فِطرةً حياء ايښې ده ، د کله نه چې د انسانانو د پيدائش سلسله شروع شوې ده نو هره ښځه فِطرةً بې پَردګي نه خوښوي ، البته د غلط ماحول په وجه په ښځو کې بې حيائي او بې پَردګي پيدا کيږي .
هندوانو او نورو شِرکي مذهبونو واله خلقو هم اول د ښځو او سړو اِختلاط ، بې حيائي او بې پَردګي نه خوښوله . دا بې حيايي ، فحاشي او بې پَردګي صرف د يُورپي قومونو پيداوار دی چې قلار په قلار په دې نورو قومونو کې هم راغله .(۲)

---

(۱) قرآن کريم د حضرت موسٰی عليه السلام دا واقعه داسې ذکر کړی : ﴿ وَلَمَّا وَرَدَ مَاءَ مَدْيَنَ وَجَدَ عَلَيْهِ أُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسْقُونَ وَوَجَدَ مِن دُونِهِمُ امْرَأَتَيْنِ تَذُودَانِ ۖ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ۖ قَالَتَا لَا نَسْقِي حَتَّىٰ يُصْدِرَ الرِّعَاءُ ۖ وَأَبُونَا شَيْخٌ كَبِيرٌ ۝ فَسَقَىٰ لَهُمَا ثُمَّ تَوَلَّىٰ إِلَى الظِّلِّ فَقَالَ رَبِّ إِنِّي لِمَا أَنزَلْتَ إِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيرٌ ۝ فَجَاءَتْهُ إِحْدَاهُمَا تَمْشِي عَلَى اسْتِحْيَاءٍ قَالَتْ إِنَّ أَبِي يَدْعُوكَ لِيَجْزِيَكَ أَجْرَ مَا سَقَيْتَ لَنَا ۚ فَلَمَّا جَاءَهُ وَقَصَّ عَلَيْهِ الْقَصَصَ قَالَ لَا تَخَفْ ۖ نَجَوْتَ مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ۝ قَالَتْ إِحْدَاهُمَا يَا أَبَتِ اسْتَأْجِرْهُ ۖ إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِينُ ۝ قَالَ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُنكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هَاتَيْنِ عَلَىٰ أَن تَأْجُرَنِي ثَمَانِيَ حِجَجٍ ۖ فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا فَمِنْ عِندِكَ ۖ وَمَا أُرِيدُ أَنْ أَشُقَّ عَلَيْكَ ۚ سَتَجِدُنِي إِن شَاءَ اللَّهُ مِنَ الصَّالِحِينَ ۝ قَالَ ذَٰلِكَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ ۖ أَيَّمَا الْأَجَلَيْنِ قَضَيْتُ فَلَا عُدْوَانَ عَلَيَّ ۖ وَاللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ وَكِيلٌ ۝ ﴾. القصص آية ۲۳ تا ۲۸ .
(۲) تفسير معارف القرآن سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳ .

## د پَردې حکم نازليدو نه مخکې هم په مسلمانانو کې پَرده وه

د پَردې حُکم اول د اُمّ المؤمنين حضرت زينب بنت جَحش رَضِيَ اللهُ عَنهَا د نکاح په وخت نازل شوې ؤ ، خو ددې د نزول نه مخکې هم حضرت زينب بنت جَحش رَضِيَ اللهُ عَنهَا په پَرده کې ناسته وه . په مسلم شريف او ترمذي شريف کې ذکر دي :

... وَرَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ وَزَوْجَتُهُ مُوَلِّيَةٌ وَجْهَهَا إِلَى الْحَائِطِ ... (۱)

... رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ناست ؤ ، او ددوی بي بي ( حضرت زينب بنت جَحش رَضِيَ اللهُ عَنهَا ) ديوال طرف ته مخ اړولې ؤ ، ( په پَرده کې ) ناسته وه .

## د پَردې د نزول تاريخ

دا خاص قِسمه پَرده " چې زَنانه دې د کور په چارديوالۍ کې پاتې کيږي ، بِلا ضرورت دې د کور نه نه اُوځي ، او که د ضرورت په وخت اُوځي نو ټول بدن دې پټ کړي ، دا حکم " د حضرت زينب بنت جَحش رَضِيَ اللهُ عَنهَا د نکاح په وخت نازل شوې دی .

اوس ددې د نکاح د نېټې په باره کې د علماؤ دوه اَقوال دي :

۱ . دا نکاح په دويم کال د هجرت باندې شوې وه .

۲ . دا نکاح په پنځم کال د هجرت باندې شوې وه .

حافظ ابن کثير رَحِمَهُ اللهُ پنځم کال د هجرت غوره کړی .

د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا د روايتونو نه هم معلوميږي چې د پَردې حُکم په پنځم کال د هجرت باندې نازل شوی . (۲)

## د زَنانهؤ د پَردې درې ( ۳ ) درجې :

کومه مسلمانه زَنانه چې عاقله بالغه يا بلوغ ته نزدې وي که دا ځوانه وي او که زړه وي ددې د پاره د پرَدو سرو نه د پَردې کولو درې ( ۳ ) درجې دي :

---

(۱) صحيح مسلم كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ زَوَاجِ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ، وَنُزُولِ الْحِجَابِ، وَإِثْبَاتِ وَلِيمَةِ الْعُرْسِ رقم الحديث ۹۴ (۱۴۲۸) . سنن الترمذي أَبْوَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابٌ: وَمِنْ سُورَةِ الأَحْزَابِ رقم الحديث ۳۲۱۸ .

(۲) تفسير معارف القرآن سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳ .

**اعلی درجه** : چې زَنانه په خپل کور کې اُوسيږي ، بغير ضرورته بهر نه اُوځي ، او ددې په کپړو باندې هم د نورو خلقو نظر اُو نه لږي . دا د پَردې اعلیٰ درجه ده ، او همدا مقصود ده .

**اَوسط درجه** : چې زَنانه کله د څه ضرورت په وجه د کور نه بهر اُوځي نو په بُرقعه يا غټ پړوني کې مخ ، لاسونه او ټول وجود پټ کړي ، د لارې کتلو د پاره صرف د بُرقعې په جالۍ کې ګوري ، يا په غټ پړوني کې صرف يوه سترګه ښکاره کړي . دا د پَردې درميانه درجه ده .

**اَدنٰی درجه** : چې زَنانه کله د څه ضرورت د پاره د کور نه بهر اُوځي نو ټول بدن پټ کړي صرف د ضرورت په وخت مخ او لاسونه ښکاره کړي ، دا د پَردې اَدنٰی درجه ده .( په دې دريم قِسم کې څه تفصيل شته چې روستو به اِن شاءا الله راشي ) .

د پَردې دا درې واړه درجې د قرآن کريم او احاديثو نه ثابتې دي . (۱)

خو په دې باندې د جمهورو علماؤ اتفاق دی چې په دې زمانه کې د فِتنې او فساد د مَخنيوي په خاطر د ښځو د پاره بهر ته د وتلو په وخت مخ او لاسونه پټول فرض دي ، نو صرف د پَردې اوله او دويمه درجه پاتې شوه . (۲)

البته د ضرورت صورتونه ددينه مستثنٰی دي .

---

(۱) تُبات الستور للوات الخدور لمولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله ص ۵ ، معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳ ، احكام القرآن لمولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله ج ۳ ص ۴۵۴ ، كشف الباري كتاب الإستئذان ص ٦٥ ، فقهي مقالات لمولانا مفتي تقي عثماني صاحب ج ۴ ص ۴۲ .

(۲) درجاتُ الحجاب : لِلحجاب الشرعي المأمور به ثلاث درجات بعضها فوق بعض في الاحتجاب والاستتار ، دلّ عليها الكتابُ والسنة: اَلأولى: حجاب الأشخاص في البيوت بالجدر والخدر وأمثالها بحيث لا يرى الرجال شيئا من أشخاصهنّ ولا لباسهنّ ولا زينتهنّ الظاهرة ولا الباطنة ولا شيئا من جسدهنّ من الوجه والكفين وسائر البدن...... الثانية: خروجهنّ من البيوت مستورات..... الثالثة: خروجهنّ مستورات الأبدان من الرأس إلى القدم، مع كشف الوجه واليدين عند أمن الفتنة عند بعض الأئمة .

واتّفق جمهور علماء المذاهب في هذا الزمان على وجوب تغطية الوجه والكفين من المرأة سدّا لذرائع الفساد، وعوارض الفتن. فلم يبق يشرع إلّا الدرجتان الأولى والثانية. عودة الحجاب لمحمد احمد إسماعيل المقدم ج۳ ص ۷۸ درجات الحجاب .

# د پَردې په ثبوت باندې د قرآن كريم نه دلائل

اوس درته د پَردې په فرضيت او ثبوت باندې د قرآن كريم نه يو څو دلائل بيانوم :

## اول دليل : ښځو ته په كور كښې د پاتې كيدو حُكم

الله تعالى زَنانه ؤ ته په كور كښې د پاتې كيدو حكم كړى :

﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى ﴾ . (۱)

ترجمه : او تاسو په كورونو كښې أوسئ ، او د رومبي جاهليت ( د زمانې ) په شان ښائست مه ښكاره كوئ . (۲)

يعنى د اسلام نه وړاندې د جاهليت په زمانه كښې به چې څنګه ښځې په بې پَردګۍ سره د سړو د وړاندې په ناز و نَخرو سره تللى او خپل زِينت به يې ښكاره كول نو هغه شان تاسو په بې حيايۍ سره مه ګرځئ . (۳)

---

(۱) الاحزاب آية ۳۳ .

(۲) قَوْلُهُ: {وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ} أَيِ: الْزَمْنَ بُيُوْتَكُنَّ فَلَا تَخْرُجْنَ لِغَيْرِ حَاجَةٍ . تفسير ابن كثير ج ٦ ص ۴۰۹ سورة الاحزاب في تفسير آية ۳۳ .

قال المفسرون: ومعنى الآية: الأمر لهنّ بالتوقُّرِ والسكون في بُيوتهنّ وأن لا يَخْرُجْنَ. زاد المسير في علم التفسير ج۳ ص ۴٦۱ سورة الاحزاب آية ۳۳ .

(۳) قَوْلُهُ تَعَالَى: {وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى} قَالَ مُجَاهِدٌ رَحِمَهُ اللهُ : كَانَتِ الْمَرْأَةُ تَخْرُجُ تَمْشِيْ بَيْنَ يَدَيِ الرِّجَالِ. فَذٰلِكَ تَبَرُّجُ الْجَاهِلِيَّةِ. وَقَالَ قَتَادَةُ رَحِمَهُ اللهُ : {وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى} يَقُوْلُ : إِذَا خَرَجْتُنَّ مِنْ بُيُوْتِكُنَّ وَكَانَتْ لَهُنَّ مِشْيَةٌ وَتَكَسُّرٌ وَتَغَنُّجٌ فَنَهَى اللهُ عَنْ ذٰلِكَ.

وَقَالَ مُقَاتِلُ بْنُ حَيَّانَ رَحِمَهُ اللهُ: {وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى} وَالتَّبَرُّجُ : أَنَّهَا تُلْقِي الْخِمَارَ عَلٰى رَأْسِهَا، وَلَا تَشُدُّهُ فَيُوَارِيْ قَلَائِدَهَا وَقُرْطَهَا وَعُنُقَهَا، وَيَبْدُوْ ذٰلِكَ كُلُّهُ مِنْهَا، وَذٰلِكَ التَّبَرُّجُ، ثُمَّ عَمَّتْ نِسَاءُ الْمُؤْمِنِيْنَ فِي التَّبَرُّجِ . تفسير ابن كثير ج ٦ ص ۴۱۰ سورة الاحزاب في تفسير آية ۳۳ .

(وَلَا تَبَرَّجْنَ) ولا تتبخترن في مشيكن (تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى) تبرجا مثل تبرج النساء في أيام الجاهلية القديمة . تفسير البيضاوي (أنوار التنزيل وأسرار التأويل) ج ۴ ص ۲۳۱ سورة الاحزاب آية ۳۳ .

د مذكوره آيت نه د پَردي په باره كې دوه خبرې معلومې شوى :

اول دا چې الله تعالى دا غواړي چې زَنانه دې بغير ضرورته د كور نه بهَر نه راأوځي ، دوى په كوركې دنَنه د كار د پاره پيدا شوي ، اوپه شريعت كې اصلي پَرده هم د كورونو پَرده ده .

دويم دا چې كه زَنانه د كور نه د څه ضرورت د پاره بهر راأوځي نو د زِينت سره دې نه راأوځي بلكه بُرقعه يا لوي پرونې دې په سَر كړي . ( ددې تفصيل روستو راروان دى ) . (۱)

## د آيت حُكم عام دى

اگر چې په دې آيت كې په ظاهره خطاب اُمّهاتُ المؤمنين ته دى خو د سِياق و سَباق نه معلوميږي چې دا حُكم عام دى ټولو زَنانهٔ ته دى ، د نبي عليه السلام د بيبيانو سره خاص ندى . (۲)

---

(۱) تفسير معارف القرآن سورة الاحزاب في تشريح آية ۳۳ .

(۲) مَعْنَى هٰذِهِ الْآيَةِ الْأَمْرُ بِلُزُوْمِ الْبَيْتِ . وَإِنْ كَانَ الْخِطَابُ لِنِسَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدْ دَخَلَ غَيْرُهُنَّ فِيْهِ بِالْمَعْنٰى . هٰذَا لَوْ لَمْ يَرِدْ دَلِيْلٌ يَخُصُّ جَمِيْعَ النِّسَاءِ ، كَيْفَ وَالشَّرِيْعَةُ طَافِحَةٌ بِلُزُوْمِ النِّسَاءِ بُيُوْتَهُنَّ ، وَالْاِنْكِفَافِ عَنِ الْخُرُوْجِ مِنْهَا إِلَّا لِضَرُوْرَةٍ ، عَلٰى مَا تَقَدَّمَ فِيْ غَيْرِ مَوْضِعٍ . فَأَمَرَ اللهُ تَعَالٰى نِسَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمُلَازَمَةِ بُيُوْتِهِنَّ ، وَخَاطَبَهُنَّ بِذٰلِكَ تَشْرِيْفًا لَهُنَّ ، وَنَهَاهُنَّ عَنِ التَّبَرُّجِ . تفسير القرطبي ( الجامع لأحكام القرآن ) ج ۱۴ ص ۱۷۹ سورة الاحزاب آية ۳۳ .

( وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ ... ) والخطابُ فيها وإنْ كان خاصًا إلا أنّ الحكمَ عامٌ . ثمّ الخروج عند الحوائج ليس من تبرّج الجاهلية الأولى في شيء . إنّما تبرّجهنّ أنْ يخرجن كالرّجال بالوقاحة . وعدم تستر . فيض الباري لمولانا انورشاه كشميري رحمه الله ۱/ ۲۵۲ .

وإذا كان الله سبحانه يحذر أمّهات المؤمنين من هذه الأشياء المنكرة مع صلاحهن وإيمانهنّ وطهارتهنّ فغيرهنّ أولى وأولى بالتحذير والإنكار والخوف عليهنّ من أسباب الفتنة عصمنا الله و إياكم من مضلات الفتن . ويدلّ على عموم الحكم لهنّ ولغيرهنّ قوله سبحانه في هذه الآية { وَاَقِمْنَ الصَّلٰوةَ وَاٰتِيْنَ الزَّكٰوةَ وَاَطِعْنَ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ } [ الاحزاب آية ۳۳ ] فإنّ هذه الأوامر أحكام عامة لنساء النّبي صلى الله عليه وسلم وغيرهنّ . مجموعة رسائل في الحجاب والسفور ص ۵۱ .

## دویم دلیل : د پَردې نه شاته اُودریدو سره څه څیز غوښتل

د پَردې په فرضیت باندې د قرآن کریم دویم دلیل دادی ، الله تعالی صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته فرمایي :

﴿ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَسْئَلُوهُنَّ مِنْ وَرَآءِ حِجَابٍ ذٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ ﴾ . (۱)

ترجمه : او کله چې تاسو د نبي علیه السلام د بیبیانو نه څه څیز غواړی. نو د پَردې شاته (اُودریدو سره ) یې ورنه غواړئ ( ځکه ) دا ستاسو او د هغوی د زړونو د پاره ډیره پاکیزه طریقه ده .

ددې آیت نه صراحةً د پَردې اَهمیت او فرضیت معلوم شو ځکه " فَسْئَلُوهُنَّ " صیغه د اَمر ده ، او اَمر سره شرعًا او عقلاً وجوب ثابتیږي .

اګر چې څه څیز غوښتل ضرورت وي خو بیا هم الله تعالی ددې ضرورت باوجود د پَردې حکم اوکړو ، نو اوس به بِلاضرورت څنګه د بې پَردګۍ اجازت وي ؟

**د مذکوره آیت حُکم عام دی** : ددې آیت شانِ نزول اګر چې په یوه خاصه واقعه کې د اُمّهات المؤمنین په باره کې دی لیکن حکم یې عام دی ، هرې زَنانه ته شامل دی ، اَزواجِ مُطهّرات سره خاص ندی .

ځکه چې کله صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته دا حکم اوشو چې کله تاسو د نبي علیه السلام د بیبیانو نه د ضرورت څه څیز غواړی. نو د پَردې شاته اُودریدلو سره یې ورنه غواړئ حالانکه د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ مرتبه خو د فرښتو نه هم اُوچته ده او د نبي علیه السلام بیبیانې خو اُمّهاتُ المؤمنین دي یعنی د مؤمنانو موراني دي او الله تعالی د هغوی زړونه پاک لرلو ذمه واري په خپله اخیستې ده خو بیا هم الله تعالی د نفساني وَسوسو نه د زړونو پاکولو په خاطر صحابه کرامو ته حکم کړی چې تاسو د اَزواج مطهرات نه څه څیز غواړی. نو د پَردې شاته اُودریدو سره یې ورنه غواړئ ، نو اوس د فِتنې په دې دَور کې داسې څوک دی چې هغه د صحابه کرامو نه زیات د پاکوالي دعوٰی اوکړي ؟ او داسې کومه ښځه ده چې

---

(۱) الاحزاب آیة ۵۳ .

هغه د اُمّهاتُ المؤمنين نه زياته د پاکوالي دعوىٰ اوکړي او دا اُووايي چې ماته د پَردې ضرورت نشته ؟

حالانکه د صحابه کرامو او اُمّهات المؤمنين په مينځ کې د غلط خيال بالکل تصوّر نه وُ خو بيا هم هغوى ته د پَردې حکم اوشو ، نن صبا خو د فِتنې زمانه ده د خلقو زړونه خيرَن دي نو په طريقِ اولىٰ باندې پَرده ضروري ده . (۱)

بل دا چې په دې آيت کې د پَردې د پاره کوم عِلت ذکر شوى ﴿ ذٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ ﴾ دا په دې واضحه قرينه ده چې ددې آيت حُکم عام دى ؛ ځکه هرې زَنانه ته د زړونو د پاکوالي ضرورت شته ، لهذا پَرده د ازواجِ مطهرات سره خاص نده بلکه په هره زَنانه باندې فرض ده . (۲)

(۱) معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳ ، القول الصواب في تحقيق مسئلة الحجاب لمولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله ص ۵۴

(۲) .... فَإِنَّ تَعْلِيلَهُ تَعَالَى لِهٰذَا الْحُكْمِ الَّذِيْ هُوَ إِيْجَابُ الْحِجَابِ بِكَوْنِهِ أَطْهَرَ لِقُلُوْبِ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ مِنَ الرِّيْبَةِ، فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى: " ذٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوْبِكُمْ وَقُلُوْبِهِنَّ " قَرِيْنَةٌ وَاضِحَةٌ عَلٰى إِرَادَةِ تَعْمِيْمِ الْحُكْمِ. إِذْ لَمْ يَقُلْ أَحَدٌ مِنْ جَمِيْعِ الْمُسْلِمِيْنَ إِنَّ غَيْرَ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا حَاجَةَ إِلٰى أَطْهَرِيَّةِ قُلُوْبِهِنَّ وَقُلُوْبِ الرِّجَالِ مِنَ الرِّيْبَةِ مِنْهُنَّ. وَقَدْ تَقَرَّرَ فِي الْأُصُوْلِ أَنَّ الْعِلَّةَ قَدْ تُعَمِّمُ مَعْلُوْلَهَا .... وَبِمَا ذَكَرْنَا تَعْلَمُ أَنَّ فِيْ هٰذِهِ الْآيَةِ الْكَرِيْمَةِ الدَّلِيْلَ الْوَاضِحَ عَلٰى أَنَّ وُجُوْبَ الْحِجَابِ حُكْمٌ عَامٌّ فِيْ جَمِيْعِ النِّسَاءِ. لَا خَاصٌّ بِأَزْوَاجِهٖ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . وَإِنْ كَانَ أَصْلُ اللَّفْظِ خَاصًّا بِهِنَّ ، لِأَنَّ عُمُوْمَ عِلَّتِهٖ دَلِيْلٌ عَلٰى عُمُوْمِ الْحُكْمِ فِيْهِ .... وَبِهٖ تَعْلَمُ أَنَّ حُكْمَ آيَةِ الْحِجَابِ عَامٌّ لِعُمُوْمِ عِلَّتِهٖ. وَإِذَا كَانَ حُكْمُ هٰذِهِ الْآيَةِ عَامًّا بِدَلَالَةِ الْقَرِيْنَةِ الْقُرْآنِيَّةِ فَاعْلَمْ أَنَّ الْحِجَابَ وَاجِبٌ بِدَلَالَةِ الْقُرْآنِ عَلٰى جَمِيْعِ النِّسَاءِ. اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن لمولانا محمد الأمين الشنقيطي ج ٦ ص ۲۴۲ سورة الاحزاب آية ۵۳ طبع دار الفكر بيروت لبنان

وَمِنَ الْأَدِلَّةِ عَلٰى أَنَّ حُكْمَ آيَةِ الْحِجَابِ عَامٌّ هُوَ مَا تَقَرَّرَ فِي الْأُصُوْلِ، مِنْ أَنَّ خِطَابَ الْوَاحِدِ يَعُمُّ حُكْمُهُ جَمِيْعَ الْأُمَّةِ، وَلَا يَخْتَصُّ الْحُكْمُ بِذٰلِكَ الْوَاحِدِ الْمُخَاطَبِ .... لِأَنَّ خِطَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِوَاحِدٍ مِنْ أُمَّتِهٖ يَعُمُّ حُكْمُهُ جَمِيْعَ الْأُمَّةِ، لِاسْتِوَائِهِمْ فِيْ أَحْكَامِ التَّكْلِيْفِ، إِلَّا بِدَلِيْلٍ خَاصٍّ يَجِبُ الرُّجُوْعُ إِلَيْهِ . اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج ٦ ص ۲۳۶ سورة الاحزاب آية ۵۳

← ← ← ← ←

# د مذکوره آيت شانِ نزول

مذکوره آيت د پَردې په باره کې اوّلنې آيت دې ، ددې د شانِ نزول په باره کې ډير واقعات ذکر شوي او هغه ټول صحيح دي .

امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ ددې آيت د شانِ نزول په باره کې دوه واقعې رانقل کړي :

**اوله واقعه** : حضرت عُمر رضي الله عنه فرمايي چې ما نبي عليه السلام ته ووېل :

يَا رَسُوْلَ اللهِ ! يَدْخُلُ عَلَيْكَ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ. فَلَوْ أَمَرْتَ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِالْحِجَابِ . فَأَنْزَلَ اللهُ آيَةَ الْحِجَابِ .(۱)

←←← وَإِذَا عَلِمْتَ بِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ حُكْمَ آيَةِ الْحِجَابِ عَامٌّ. وَأَنَّ مَا ذَكَرْنَا مَعَهَا مِنَ الْآيَاتِ فِيْهِ الدَّلَالَةُ عَلَى احْتِجَابِ جَمِيْعِ بَدَنِ الْمَرْأَةِ عَنِ الرِّجَالِ الْأَجَانِبِ. عَلِمْتَ أَنَّ الْقُرْآنَ دَلَّ عَلَى الْحِجَابِ. وَلَوْ فَرَضْنَا أَنَّ آيَةَ الْحِجَابِ خَاصَّةٌ بِأَزْوَاجِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا شَكَّ أَنَّهُنَّ خَيْرُ أُسْوَةٍ لِنِسَاءِ الْمُسْلِمِيْنَ فِي الْآدَابِ الْكَرِيْمَةِ الْمُقْتَضِيَةِ لِلطَّهَارَةِ التَّامَّةِ وَعَدَمِ التَّدَنُّسِ بِأَنْجَاسِ الرِّيْبَةِ. فَمَنْ يُحَاوِلُ مَنْعَ نِسَاءِ الْمُسْلِمِيْنَ كَالدُّعَاةِ لِلسُّفُوْرِ وَالتَّبَرُّجِ وَالْإِخْتِلَاطِ الْيَوْمَ مِنَ الْإِقْتِدَاءِ بِهِنَّ فِيْ هٰذَا الْأَدَبِ السَّمَاوِيِّ الْكَرِيْمِ الْمُتَضَمِّنِ سَلَامَةَ الْعِرْضِ وَالطَّهَارَةِ مِنْ دَنَسِ الرِّيْبَةِ غَاشٌّ لِأُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرِيْضُ الْقَلْبِ كَمَا تَرَى. اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج ٦ ص ۲۴۸ سورة الاحزاب آية ۵۳ .

(۱) صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيْرِ الْقُرْآنِ بَابُ قَوْلِهِ: {لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ ...} رقم الحديث ۴۷۹۰ .

وفي رواية : عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه . قَالَ: قَالَ عُمَرُ رضي الله عنه : وَافَقْتُ اللهَ فِيْ ثَلَاثٍ، أَوْ وَافَقَنِيْ رَبِّيْ فِيْ ثَلَاثٍ. قُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللهِ لَوِ اتَّخَذْتَ مَقَامَ إِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى، وَقُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللهِ يَدْخُلُ عَلَيْكَ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ فَلَوْ أَمَرْتَ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِالْحِجَابِ. فَأَنْزَلَ اللهُ آيَةَ الْحِجَابِ. قَالَ : وَبَلَغَنِيْ مُعَاتَبَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْضَ نِسَائِهِ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِنَّ. قُلْتُ: إِنِ انْتَهَيْتُنَّ أَوْ لَيُبَدِّلَنَّ اللهُ رَسُوْلَهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرًا مِنْكُنَّ. حَتَّى أَتَيْتُ إِحْدَى نِسَائِهِ. قَالَتْ: يَا عُمَرُ ! أَمَا فِيْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَعِظُ نِسَاءَهُ . حَتَّى تَعِظَهُنَّ أَنْتَ ؟ فَأَنْزَلَ اللهُ : ( عَسَى رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ مُسْلِمَاتٍ ) الآية. صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيْرِ الْقُرْآنِ بَابُ {وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى} رقم الحديث ۴۴۸۳ ، و رقم الحديث ۴۰۲ ، صحيح مسلم كتاب فَضَائِلِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمْ بَابُ مِنْ فَضَائِلِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ رقم الحديث ۲۴(۲۳۹۹) .

اې د الله رسوله ! تاسو ته ښه او خراب دواړه قِسمه خلق راځي نو که تاسو اُمّهاتُ المؤمنين ته د پَردې حکم اوکړی نو دا به ډيره ښه وي ، نو الله تعالی د پَردې آيت نازل کړو .

**دویمه واقعه** : دا واقعه هم په بخارې شريف کې ذکر ده : حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې کلهٔ رسول الله صلى الله عليه وسلم د حضرت زينب بنت جَحش رضي الله عنها سره نکاح اوکړه نو خلق يې د وليمې دعوت د پاره رااوغوښتل ، خلقو روټۍ ( ډوډۍ ) اُوخوړه خو بيا هم (ډير وخت په کور کې) ناست وو ، خبرې يې کولې ( حالانکه زينب بنت جَحش رضي الله عنها په همدې کور کې وه ، ديوال طرف ته يې مخ کړې ؤ ) ، نبي عليه السلام د پاڅيدو تيارې اوکړو (مقصد يې دا ؤ چې دا خلق پوهه شي او لاړ شي) خو دا خلق نه پاڅيدل .

کله چې خلقو اُوليد چې پيغمبر عليه السلام پاڅيد ( او بهر اُووت ) نو دوی هم پاڅيدل (او لاړل) ، خو درې ( ۳ ) کسان اوس هم ناست وو (نبي عليه السلام په دې وخت کې د نورو بيبيانو کورونو ته تشريف وړې وړو ) ، کله چې واپس دې کور ته راغی نو څه خلق هماغه شان ناست وو ، بيا ( آخر ) دوی هم لاړل ، پس نبي عليه السلام کور ته داخل شو ، ما هم اِراده اوکړه چې زه وَرداخل شم ، نو نبي عليه السلام زما او خپل مينځ کې پَرده واچوله (او زه يې دننه د تللو نه منع کړم) ، او الله تعالی دا آيت نازل کړو :

﴿ يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ ... ﴾ . (۱)

---

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. قَالَ : لَمَّا تَزَوَّجَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْنَبَ بِنْتَ جَحْشٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا . دَعَا الْقَوْمَ فَطَعِمُوْا ثُمَّ جَلَسُوْا يَتَحَدَّثُوْنَ. وَإِذَا هُوَ كَأَنَّهُ يَتَهَيَّأُ لِلْقِيَامِ. فَلَمْ يَقُوْمُوْا فَلَمَّا رَأَى ذٰلِكَ قَامَ. فَلَمَّا قَامَ قَامَ مَنْ قَامَ. وَقَعَدَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ. فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَدْخُلَ فَإِذَا الْقَوْمُ جُلُوْسٌ. ثُمَّ إِنَّهُمْ قَامُوْا. فَانْطَلَقْتُ فَجِئْتُ فَأَخْبَرْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُمْ قَدِ انْطَلَقُوْا. فَجَاءَ حَتّٰى دَخَلَ فَذَهَبْتُ أَدْخُلُ. فَأَلْقَى الْحِجَابَ بَيْنِيْ وَبَيْنَهُ. فَأَنْزَلَ اللهُ : { يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ ... } الآيَةَ [ الاحزاب آية ۵۳]. صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيْرِ الْقُرْآنِ بَابُ قَوْلِهِ: {لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ ...} رقم الحديث ۴۷۹۱ ، ورقم الحديث ۶۲۳۹ كِتَابُ الْإِسْتِئْذَانِ بَابُ آيَةِ الْحِجَابِ ، ورقم الحديث ۶۲۷۱ كِتَابُ الْإِسْتِئْذَانِ بَابُ مَنْ قَامَ مِنْ مَجْلِسِهِ أَوْ بَيْتِهِ وَلَمْ يَسْتَأْذِنْ أَصْحَابَهُ. أَوْ تَهَيَّأَ لِلْقِيَامِ لِيَقُوْمَ النَّاسُ ، صحيح مسلم كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ زَوَاجِ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ وَنُزُوْلِ الْحِجَابِ وَإِثْبَاتِ وَلِيْمَةِ الْعُرْسِ رقم الحديث ۹۲(۱۴۲۸) ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۱۱۳۵۶ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۵۷۸ ذكر السبب الذي من اجله انزل الله آية الحجاب .

د بخاري شریف د یو بل حدیث په آخر کې ذکر دي:

فَرَجَعَ حَتَّى إِذَا وَضَعَ رِجْلَهُ فِي أُسْكُفَّةِ الْبَابِ دَاخِلَةً وَأُخْرَى خَارِجَةً أَرْخَى السِّتْرَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ، وَأُنْزِلَتْ آيَةُ الْحِجَابِ.

کله چې نبي علیه السلام (د خلقو تللو نه پس) کورته واپس راغی خپله خپه مبارکه یې د دَروازې په درشل (چَوکاټ) باندې کیښوده یوه خپه یې دننه وه او بله یې بهر وه نو دوی د دَروازې پَرده راخوشې کړه زما او خپل مینځ کې یې پَرده اوکړه، او د پَردې آیت نازل شو. (۱)

**فائده**: حضرت انس ﷺ چونکه د ماشوم والي نه د نبي علیه السلام سره ؤ، د دوی کورونو ته تلو راتلو او د دوی خدمت به یې کولو، خو په دې وخت کې دده عُمر پنځلس (۱۵) کاله ؤ او په دې دَوران کې د پَردې حکم هم نازل شو نو ځکه پیغمبر علیه السلام دا خپل کورته د ننوتلو نه منع کړو او په مینځ کې یې پَرده رازوړنده کړه. (۲)

بهر حال، حضرت انس ﷺ په دې واقعه کې پخپله موجود ؤ نو ځکه هغه فرمایي:

---

(۱) پوره حدیث داسې دی: عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: بُنِيَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بِخُبْزٍ وَلَحْمٍ، فَأُرْسِلْتُ عَلَى الطَّعَامِ دَاعِيًا فَيَجِيءُ قَوْمٌ فَيَأْكُلُونَ وَيَخْرُجُونَ، ثُمَّ يَجِيءُ قَوْمٌ فَيَأْكُلُونَ وَيَخْرُجُونَ، فَدَعَوْتُ حَتَّى مَا أَجِدُ أَحَدًا أَدْعُو، فَقُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللهِ! مَا أَجِدُ أَحَدًا أَدْعُوهُ، قَالَ: «ارْفَعُوا طَعَامَكُمْ» وَبَقِيَ ثَلَاثَةُ رَهْطٍ يَتَحَدَّثُونَ فِي الْبَيْتِ، فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقَ إِلَى حُجْرَةِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَقَالَ: «السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ وَرَحْمَةُ اللهِ». فَقَالَتْ: وَعَلَيْكَ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ، كَيْفَ وَجَدْتَ أَهْلَكَ بَارَكَ اللهُ لَكَ. فَتَقَرَّى حُجَرَ نِسَائِهِ كُلِّهِنَّ، يَقُولُ لَهُنَّ كَمَا يَقُولُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، وَيَقُلْنَ لَهُ كَمَا قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا. ثُمَّ رَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا ثَلَاثَةٌ مِنْ رَهْطٍ فِي الْبَيْتِ يَتَحَدَّثُونَ. وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَدِيدَ الْحَيَاءِ، فَخَرَجَ مُنْطَلِقًا نَحْوَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَمَا أَدْرِي آخْبَرْتُهُ أَوْ أُخْبِرَ أَنَّ الْقَوْمَ خَرَجُوا فَرَجَعَ حَتَّى إِذَا وَضَعَ رِجْلَهُ فِي أُسْكُفَّةِ الْبَابِ دَاخِلَةً وَأُخْرَى خَارِجَةً أَرْخَى السِّتْرَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ. وَأُنْزِلَتْ آيَةُ الْحِجَابِ. صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ قَوْلِهِ: {لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ ...} رقم الحديث ۴۷۹۳.

(۲) شرعي پرده لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۲۲.

أَنَا أَعْلَمُ النَّاسِ بِهٰذِهِ الْآيَةِ: آيَةِ الْحِجَابِ .
زه ددې حجاب آیت ( په شانِ نزول ) باندې ښه خبردار یم ( چې دا د حضرت زینب بنت جَحش رضي الله عنها د نکاح په وخت نازل شوی ) . (۱)
د حجاب پوره آیت دا نازل شو ، الله تعالی فرمایي :

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ إِلَىٰ طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ وَلَٰكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ فَادْخُلُوا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوا وَلَا مُسْتَأْنِسِينَ لِحَدِيثٍ ۚ إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيِي مِنْكُمْ ۖ وَاللَّهُ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ ۚ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ ۚ ذَٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ ۚ وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا أَنْ تَنْكِحُوا أَزْوَاجَهُ مِنْ بَعْدِهِ أَبَدًا ۚ إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللَّهِ عَظِيمًا ﴾ . (۲)

ترجمه : اې مؤمنانو ! تاسو د نبي علیه السلام کورته ( بې اجازته ) مه داخلیږئ مګر کله چې تاسو ته د خوراک د پاره دعوت درکړې شي ( نو بیا ورتلل صحیح دي ) ، خو د خوراک د پَخیدو اِنتظار مه کوئ ( یعنی دومره د وَخته مه ورځئ چې خوراک نه وي پُوخ شوی او تاسو یې اِنتظار کوئ ، بلکه په خپل مقرر وخت ورځئ ) ، لیکن کله چې تاسو رااوبللې شئ ( چې اوس راځئ خوراک تیار دی ) نو بیا ورځئ ، بیا کله چې تاسو خوراک اوکړئ نو ( پاڅئ ) خواره شئ ، خبرو ته ناست مه پاتې کیږئ ، ځکه ستاسو دا کار ( یعنی د خوراک نه پس دیر کیناستل ) نبي علیه السلام ته تکلیف رسوي ، هغه د تاسو نه حیاء

---

(۱) پوره حدیث داسې دی : قَالَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رضي الله عنه : أَنَا أَعْلَمُ النَّاسِ بِهٰذِهِ الْآيَةِ: آيَةِ الْحِجَابِ " لَمَّا أُهْدِيَتْ زَيْنَبُ بِنْتُ جَحْشٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَانَتْ مَعَهُ فِي الْبَيْتِ صَنَعَ طَعَامًا وَدَعَا الْقَوْمَ. فَقَعَدُوا يَتَحَدَّثُونَ. فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ ثُمَّ يَرْجِعُ وَهُمْ قُعُودٌ يَتَحَدَّثُونَ. فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى: { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ إِلَىٰ طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ } إِلَى قَوْلِهِ {مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ } [ الاحزاب آية ٥٣ ] فَضُرِبَ الْحِجَابُ وَقَامَ الْقَوْمُ . صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ قَوْلِهِ: {لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ ...} رقم الحديث ۴۷۹۲ .

(۲) الأحزاب آية ۵۳ .

کوي (په خُله درته نه وايي چې پاڅئ) او الله تعالى خو د حق بيانولو نه حياء نه کوي (صفا صفا درته وايي)، او کله چې تاسو د نبي عليه السلام د بيبيانو نه څه څيز غواړئ نو د پَردې شاته (اُودريدو سره) يې ورنه غواړئ (ځکه) دا ستاسو او د هغوی د زړونو د پاره ډيره پاکيزه طريقه ده، او تاسو ته دا جائز ندي چې رسولُ الله (ﷺ) ته تکليف اُورسوئ، او دا هم درته هيڅ کله جائز ندي چې تاسو د هغه نه پس د هغه د بيبيانو سره نکاح اوکړئ، بيشکه دا (د هغه د بيبيانو سره نکاح کول) ستاسو د پاره د الله تعالى په نزد ډيره لويه گناه ده.

**د مذکوره آيت نه معلومې شوې خبرې:** د مذکوره آيت نه يو څو خبرې معلومې شوی:

۱. بې اِجازته د بل چا کور ته داخليدل ندي په کار.

۲. چې کله درته هغه دعوت درکړي نو د وخت نه مخکې ورتلل ندي په کار، بلکه په هماغه مقرّر وخت ورتلل په کار دي.

۳. د خوراک نه پس خوَريدل په کار دي.

۴. د پَردې حکم.

## دريم دليل : بهَر ته دوتلو په وخت لوي پړونې په ځان راچول

د پَردې په فرضيت باندې دريم دليل دادی چې کله زَنانه د څه ضرورت په وخت د کور نه بهَر اُوځي نو په ځان به داسې لوي پړونې يا بُرقعه راچوي چې د سَر نه تر خپو پورې په کې پټه وي، د لارې د کتلو د پاره به صرف يوه سترگه ښکاره کوي، يا به د بُرقعې په سُورو کې گوري. الله تعالى نبي عليه السلام ته فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ يُدۡنِينَ عَلَيۡهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّۚ ذَٰلِكَ أَدۡنَىٰٓ أَن يُعۡرَفۡنَ فَلَا يُؤۡذَيۡنَۗ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ﴾.(۱)

ترجمه: اې پيغمبره! ته خپلو بيبيانو، خپلو لورانو او مؤمنانو زَنانه ؤ ته اُووايه چې (د کور نه د څه ضرور کار پسې د وتلو په وخت) خپل لوي څادرونه په ځان باندې راښکته

---

(۱) الاحزاب آية ۵۹.

کړي ، په دې سره به ډير زر دوی اوپيژندې شي ( چې دا اَصيلې ښځې دي ، وينځې ندي ) نو دوی ته به ( د بې هُوده سړو د طرفه ) تکليف نشي رسولی ، او الله تعالی ډير بخوونکې مهربان دی .

ددې آيت نه معلومه شوه چې کله زَنانه د څه ضرورت د پاره د کور نه بهَر اُوځي نو پَرده ورله فرض ده ، مخ او نور وجود به په غټ پړوني باندې پټوي .

ددې صريح حکم نه پس او س زَنانه ته د پړدو سړو د وړاندې د مخ ښکاره کولو گنجائش نشته . (۱) همدا خبره په تفاسيرو کې هم ذکر ده . (۲)

په دې سره په هغه خلقو باندې هم رَد اوشو چې هغوی وايي چې د ښځې د پاره د مخ پَرده نشته ، ځکه په دې آيت کې صراحةً د مخ او نور بدن د پټولو ذکر دی . (۳)

---

(۱) القول الصواب في تحقيق مسألة الحجاب ص ۵۵ ، شرعي پرده لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۱۴ .

(۲) وَمِنَ الْأَدِلَّةِ الْقُرْآنِيَّةِ عَلَى احْتِجَابِ الْمَرْأَةِ وَسِتْرِهَا جَمِيْعَ بَدَنِهَا حَتَّى وَجْهَهَا قَوْلُهُ تَعَالَى: ﴿ يَآأَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنٰتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِيْنَ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ﴾، فَقَدْ قَالَ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِنَّ مَعْنَى: ﴿ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ﴾ أَنَّهُنَّ يَسْتُرْنَ بِهَا جَمِيْعَ وُجُوْهِهِنَّ. وَلَا يَظْهَرُ مِنْهُنَّ شَيْءٌ إِلَّا عَيْنٌ وَاحِدَةٌ تُبْصِرُ بِهَا ، وَمِمَّنْ قَالَ بِهِ : ابْنُ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه، وَابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، وَعَبِيْدَةُ السَّلْمَانِيُّ وَغَيْرُهُمْ...... إِنَّ فِي الْآيَةِ الْكَرِيْمَةِ قَرِيْنَةً وَاضِحَةً عَلَى أَنَّ قَوْلَهُ تَعَالَى فِيْهَا : ﴿ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ﴾ يَدْخُلُ فِي مَعْنَاهُ سَتْرُ وُجُوْهِهِنَّ بِإِدْنَاءِ جَلَابِيْبِهِنَّ عَلَيْهَا، وَالْقَرِيْنَةُ الْمَذْكُوْرَةُ هِيَ قَوْلُهُ تَعَالَى : ﴿ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ ﴾ وَوُجُوْبُ احْتِجَابِ أَزْوَاجِهِ وَسِتْرِهِنَّ وُجُوْهَهُنَّ لَا نِزَاعَ فِيْهِ بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَذِكْرُ الْأَزْوَاجِ مَعَ الْبَنَاتِ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِيْنَ يَدُلُّ عَلَى وُجُوْبِ سَتْرِ الْوُجُوْهِ بِإِدْنَاءِ الْجَلَابِيْبِ كَمَا تَرَى . اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن لمولانا محمد الأمين الشنقيطي ج ٦ ص ۲۴۳ سورة الاحزاب آية ۵۳ طبع دار الفكر بيروت لبنان .

ومعنى ﴿ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ﴾ يرخينها عليهنّ، ويغطين بها وجوههنّ وأعطافهنّ. يقال: إذا زل الثوب عن وجه المرأة : أدني ثوبك على وجهك . تفسير كشاف ج ۳ ص ۵٦۰ سورة الاحزاب آية ۵۹ .

وهذه الآية والآيتان بعدها ( النور آية ۳۱ و آية ٦۰ ) هي أصرح الآيات وأوضحهن في حجاب نساء المؤمنات عامة . الحجاب في الشرع والفطرة ص ۹۹ .

(۳) شرعي پرده لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۱۴ .

بعضې صحابه کرامو او تابعينو د﴿ يُدۡنِينَ عَلَيۡهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّ ﴾ تفسير د مخ په پټولو سره هم کړې دی. (۱)

## د ''جَلَابِيب'' تشريح

''جَلَابِيب'' د ''جِلۡبَاب'' جمع ده، دا هغه غټ څادر ( پړوني ) ته وايي چې زَنانه يې د لوپټې د پاسه اَچوي، غونډه په کې پټه وه، صرف يوه سترګه يې ښکاري. (۲)

حضرت عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي:

أَمَرَ اللهُ نِسَاءَ الْمُؤْمِنِيْنَ إِذَا خَرَجْنَ مِنْ بُيُوْتِهِنَّ فِيْ حَاجَةٍ أَنْ يُغَطِّيْنَ وُجُوْهَهُنَّ مِنْ فَوْقِ رُؤُوْسِهِنَّ بِالْجَلَابِيْبِ وَيُبْدِيْنَ عَيْنًا وَاحِدَةً . (۳)

---

(۱) فسر بعض الصحابة والتابعين إدناء الجلباب بستر الوجه . و هذا قول ابن مسعود رضي الله عنه و ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ، و عبيدة السلماني ، و قتادة ، والحسن البصري ، و سعيد بن جبير ، و ابراهيم النخعي ، وعطاء الخراساني رحمهم الله وغيرهم . إظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۳۳٦ .

وقد فسر إدناء الجلابيب بتغطية الوجه في هذه الآية وغيرها من السنة والأثر جماعة من الصحابة ؛ صح عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا و عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ، و من التابعين : عن عبيدة السلماني ، و محمد بن سيرين ، وابن عون ، ولا أعلم أحدًا من الصحابة صح عنه خلاف هذا المعنى . الحجاب في الشرع والفطرة ص ۱۰۱ .

(۲) { مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ } جَمْعُ الْجِلْبَابِ ، وَهُوَ الْمُلَاءَةُ الَّتِيْ تَشْتَمِلُ بِهَا الْمَرْأَةُ فَوْقَ الدِّرْعِ وَالْخِمَارِ . معالم التنزيل في تفسير القرآن ( تفسير البغوي ) ج ٦ ص ۳۷٦ سورة الاحزاب آية ۵۹ طبع دار طيبة .

( مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ) اَلْجَلَابِيْبُ جَمْعُ جِلْبَابٍ ، وَهُوَ ثَوْبٌ أَكْبَرُ مِنَ الْخِمَارِ . وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ الرِّدَاءُ . وَقَدْ قِيْلَ : إِنَّهُ الْقِنَاعُ . وَالصَّحِيْحُ أَنَّهُ الثَّوْبُ الَّذِيْ يَسْتُرُ جَمِيْعَ الْبَدَنِ . الجامع لأحكام القرآن ( تفسير القرطبي ) ج ۱۴ ص ۲۴۳ سورة الاحزاب آية ۵۹ .

{ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ } جَمْعُ جِلْبَابٍ وَهِيَ الْمُلَاءَةُ الَّتِيْ تَشْتَمِلُ بِهَا الْمَرْأَةُ أَيْ يُرْخِيْنَ بَعْضَهَا عَلَى الْوُجُوْهِ إِذَا خَرَجْنَ لِحَاجَتِهِنَّ إِلَّا عَيْنًا وَاحِدَةً . تفسير الجلالين ص ۵٦۰ . التفسير المظهري ج ۷ ص ۳۸۳ سورة الاحزاب آية ۵۹ .

(۳) تفسير القرآن العظيم ( تفسير ابن كثير ) ج ٦ ص ۴۲۵ سورة الاحزاب آية ۵۹ ، معالم التنزيل في تفسير القرآن ( تفسير البغوي ) ج ٦ ص ۳۷٦ سورة الاحزاب آية ۵۹ . صفوة التفاسير ج ۲ ص ۴۹۴ ، تفسير الطبري ج ۱۰ ص ۳۳۲ .

الله تعالى مؤمنانو ښځو ته دا حکم کړی چې کله دوی د خپلو کورونو نه د څه ضرورت د پاره بهر اوځي نو غټې څادر دې په سَر کړي ، خپل مخونه او ټول بدن دې ورباندې پټ کړي ، او صرف يوه سترګه دې ( د لارې کتلو د پاره ) ښکاره کړي .

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د مذکوره آيت تفسير اوکړو ( د حجاب طريقه يې اوخوده ) ، او د صحابي تفسير حُجّت وي ، بلکه څنې علماؤ ويلي چې دا په حکم د مرفوع حديث کې وي . (۱)

محمد بن سيرين رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې ما د عبيدة سَلماني رَحِمَهُ اللهُ نه ددې آيت ﴿ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ متعلق پوښتنه اوکړه ( چې ددې څه طريقه ده ؟ )

فَغَطَّى وَجْهَهُ وَرَأْسَهُ وَأَبْرَزَ عَيْنَهُ الْيُسْرَى .

نو هغه ( غټې څادر واغوست ) خپل مخ او سَر ( يې ورباندې ) پټ کړو ، او چَپه ( ګسه ) سترګه يې ښکاره کړه . (۲)

( **نوټ** : نن صبا چې زَنانه د اکومې بُرقعې اچوي نو دا هم ددې جِلباب ترقي يافته شکل دی ، په دې کې هم ښځه پوره پټه وي . البته فِيشَني ( ډَولي ) بُرقعې صحيح ندي ، ځکه ديته د پرَدي خلقو توجه راوړي . (۳) )

بهر حال ، د مذکوره آيت نه هم په ښکاره باندې د مخ پټولو حکم ثابت شو ، اګر چې د احنافو په نزد باندې د زَنانه مخ او لاسونه عورت ندي خو بيا هم د فِتنې يَره په کې شته نو

(۱) وتفسيرُ الصحابي حجّةٌ . بل قال بعضُ العلماء إنّه في حكم المرفوع إلى النبي صلى الله عليه وسلم . وقولُه رضي الله عنه « وَيُبْدِينَ عَيْنًا وَاحِدَةً » إنّما رخص في ذلك لأجل الضّرورة والحاجة إلى نظر الطّريق . فأما إذا لم يكن حاجة فلا موجب لكشف العين . رسالة الحجاب لمحمد بن صالح العثيمين ص ۱۵ .

(۲) قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ رَحِمَهُ اللهُ : سَأَلْتُ عَبِيدَةَ السَّلْمَانِيَّ رَحِمَهُ اللهُ عَنْ قول الله عز وجل: ﴿ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ فَغَطَّى وَجْهَهُ وَرَأْسَهُ وَأَبْرَزَ عَيْنَهُ الْيُسْرَى . تفسير ابن كثير ج۶ ص ۴۲۵ سورة الاحزاب آية ۵۹ ، صفوة التفاسير ج ۲ ص ۴۹۳ .

(۳) شرعي پرده لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۱۵ .
( د فيشني بُرقعې د ممانعت تفصيل روستو راروان دی . ابوالشمس علي عنه )

ځکه پټول يې ضروري دي . (۱)

ابوبکر جصاص رازي رَحِمَهُ اللّٰهُ په " احكام القرآن " کې ددې آيت په باره کې فرمايي :

فِيْ هٰذِهِ الْاٰيَةِ دَلَالَةٌ عَلٰى أَنَّ الْمَرْأَةَ الشَّابَّةَ مَأْمُوْرَةٌ بِسَتْرِ وَجْهِهَا عَنِ الْأَجْنَبِيِّيْنَ وَ إِظْهَارِ السِّتْرِ وَالْعَفَافِ عِنْدَ الْخُرُوْجِ لِئَلَّا يَطْمَعَ أَهْلُ الرِّيَبِ فِيْهِنَّ. (۲)

په دې آيت کې په دې خبره باندې دلالت دی چې ځوانه ښځه د پردو سړو نه د مخ په پټولو باندې ماموره ده (يعنی په دې آيت کې ځوانې ښځې ته دا حکم شوی چې د پردو سړو نه مخ پټ کړي) ، او دا حکم هم ورته شوی چې بهر ته د وتلو په وخت د عفت (او حياء) مظاهره اوکړي ، ددې د پاره چې د کومو خلقو په زړونو کې شک (او فسق) وي هغوی د دينه خرابه طمع اونکړي .

## څلورم دليل : زينت نه ښکاره کول

د پردې په فرضيت باندې څلورم دليل دادی ، الله تعالی فرمايي :

﴿ وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ ۖ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اٰبَآىِٕهِنَّ اَوْ اٰبَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اَبْنَآىِٕهِنَّ اَوْ اَبْنَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْٓ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْٓ اَخَوٰتِهِنَّ اَوْ نِسَآىِٕهِنَّ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ اَوِ التّٰبِعِيْنَ غَيْرِ اُولِي الْاِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرٰتِ النِّسَآءِ ۖ وَلَا يَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِيْنَ مِنْ زِيْنَتِهِنَّ ۚ وَتُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴾. (۳)

ترجمه : (اې پيغمبره ! ) ته مؤمنانو ښځو ته اُووايه چې دوی دې خپلې سترګې (او نظرونه) ښکته ساتي ، د خپلو شرمګاهو حفاظت دې کوي ، او خپل زينت دې نه ښکاره

(۱) معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله سورة الاحزاب آية ۵۹ .

(۲) احكام القرآن لأحمد بن علي أبو بكر الرازي الجصاص الحنفي ج ۳ ص ۴۸۶ طبع دار الكتب العلمية بيروت لبنان

(۳) النور آية ۳۱ .

کوي مگر کوم چې ددينه پخپله ( کار او حرکت کولو سره ) ښکاره شي ( او د هغې پټول مشکل وي ) ، او دوی دې خپلې لوپټې په خپلو گريوانونو ( سِينو ) باندې راواچوي ، او خپل ښائست دې نه ښکاره کوي مگر خپلو خاوندانو ته ، پلارانو ته ، د خاوند پلارانو ( سخَرانو ) ته ، خپلو ځامنو ته ، د خاوند ځامنو ته ( کوم چې د بلې ښځې نه وي ) ، خپلو ورونړو ته ، خپلو ورِيرونو ته ، خپلو خورَينو ته ، خپلو ( مسلمانانو ) زَنانه وُ ته ، خپلو وينځو ته ، يا په خادمانو کې هغه سړو ته چې ښځو ته حاجت ( نفساني خواهشات ) نه لري ( يعنې سادگان وي ) ، يا هغه ماشومانو ته چې تر اوسه د ښځو په پټو خبرو باندې خبر نه وي ( نو دوی ته زِينت ښکاره کول جائز دی ) ، او دا زَنانه دې ( د تللو په وخت ) زمکه په خپلو خپو باندې ( ددې د پاره ) په زُوره نه وهي چې په دې سره ددې د هغه پټو زيوراتو آواز معلوم شي ، او اې مؤمنانو ! ( که د تاسو نه په دې احکاماتو کې څه کوتاهي شوي وي نو ) تاسو ټول الله تعالى ته توبه اُوباسئ ددې د پاره چې تاسو کامياب شی .

## د آيت تشريح :

ددې آيت نه د زَنانه وُ د پاره د پَردې ثبوت په څو طريقو سره کيږي :

**اول** : په دې آيت کې الله تعالى زَنانه وُ ته د نظرونو او شرمگاهو د حفاظت حکم کړی او دا بِعَينه د پَردې حکم دی ځکه چې په پَردې کولو سره د شرمگاهو حفاظت راځي ، که زَنانه پَرده اونکړي مخ وغيره يې ښکاره وي نو خلق به ددې حُسن ته گوري او د شيطاني وَسوسو په وجه به آخِر خبره زِنا ته اُورسي .

بل دا چې په حديث کې هم راغلي ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ .... وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذٰلِكَ كُلَّهُ وَيُكَذِّبُهُ . (۱)

---

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا، أَدْرَكَ ذٰلِكَ لَا مَحَالَةَ، فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ، وَزِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ، وَالنَّفْسُ تَمَنَّى وَتَشْتَهِي، وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذٰلِكَ كُلَّهُ وَيُكَذِّبُهُ . صحيح البخاري كِتَابُ الإِسْتِئْذَانِ بَابُ زِنَا الْجَوَارِحِ دُونَ الْفَرْجِ رقم الحديث ٦٢٤٣ ، صحيح مسلم كتاب القَدَرِ بَابُ قُدِرَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظُّهُ مِنَ الزِّنَا وَغَيْرِهِ رقم الحديث ٢٠(٢٦٥٧) .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ ، وَاللِّسَانُ يَزْنِي ، وَالْيَدَانِ تَزْنِيَانِ، ←←←

د سترګو زِنا غلط نظر دی .... او شرمګاه کله ددې تصديق اوکړي ( يعنى يقيني زِنا اوکړي ) او کله ددې تکذيب اوکړي .

پس زَنانه د پاره د مخ پټول ( او پَرده کول ) د شرمګاه د حفاظت ذريعه شوه ، او دا هم مَامور بِهِ شوه ، ځکه د وسائلو ( او ذرائعو ) د پاره حکم د مقاصدو په شان وي ( دواړه عمَلي کول لازمي وي ) . (۱)

**دويم** : په مذکوره آيت کې الله تعالى اوفرمايل : ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ﴾ او دوی دې خپلې لوپټې په خپلو ګريوانونو ( سِينو ) باندې راواچوي .

" خُمُر " د " خمار " جمع ده ، دا هغه لوپټې ته ويلې شي چې زَنانه يې په سَر باندې اچوي ، ګريوان او سِينه ورباندې پټوي .

ددې آيت نه هم د مخ پټول او پَرده معلومه شوه ؛ ځکه چې کله زَنانه په سَر باندې لوپټه راواچوي ، سينې او ګريوان يې پټ شي نو مخ ورسره پخپله پټيږي .

---

←←← وَالرِّجْلَانِ تَزْنِيَانِ ، وَيُحَقِّقُ ذٰلِكَ الْفَرْجُ أَوْ يُكَذِّبُهُ . صحيح ابن حبان مخرجا كِتَابُ الْحُدُودِ بَابُ الزِّنَىٰ وَحَدِّهِ ذِكْرُ إِطْلَاقِ اسْمِ الزِّنَىٰ عَلَى الْأَعْضَاءِ إِذَا جَرَى مِنْهَا بَعْضُ شُعَبِ الزِّنَىٰ رقم الحديث ۴۴۱۹ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۸٦٦۱ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۸۵۳۹ .

(۱) وبيان دلالة هذه الاية على وجوب الحجاب على المرأة عن الرجال الأجانب وجوه : ۱ . أنّ الله تعالى أمر المؤمنات بحفظ فروجهنّ والأمر بحفظ الفرج أمر به وبما يكون وسيلة إليه . ولا يرتاب عاقل أنّ من وسائله تغطية الوجه؛ لأنّ كشفه سبب للنظر إليها وتأمل محاسنها والتلذذ بذلك ، وبالتالي إلى الوصول والاتصال . وفي الحديث: « العينان تزنيان وزناهما النظر » . إلى أن قال: «والفرج يصدق ذلك أو يكذبه » . فإذا كان تغطية الوجه من وسائل حفظ الفرج كان مأموراً به ؛ لأنّ الوسائل لها أحكام المقاصد . رسالة الحجاب ص ۱۰ ، إظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۸۷ .

« فَزِنَى الْعَيْنِ النَّظَرُ » . فَإِطْلَاقُ اسْمِ الزِّنَىٰ عَلَىٰ نَظَرِ الْعَيْنِ إِلَىٰ مَا لَا يَحِلُّ دَلِيلٌ وَاضِحٌ عَلَىٰ تَحْرِيمِهِ وَالتَّحْذِيرِ مِنْهُ . وَالْأَحَادِيثُ بِمِثْلِ هٰذَا كَثِيرَةٌ مَعْلُومَةٌ . وَمَعْلُومٌ أَنَّ النَّظَرَ سَبَبُ الزِّنَىٰ فَإِنَّ مَنْ أَكْثَرَ مِنَ النَّظَرِ إِلَىٰ جَمَالِ امْرَأَةٍ مَثَلًا قَدْ يَتَمَكَّنُ بِسَبَبِهِ حُبُّهَا مِنْ قَلْبِهِ تَمَكُّنًا يَكُونُ سَبَبَ هَلَاكِهِ ، وَالْعِيَاذُ بِاللهِ . فَالنَّظَرُ بَرِيدُ الزِّنَىٰ . أضواء البيان في إيضاح القرآن بالقرآن ج ۵ ص ۵۱۰ سورة النور آية ۳۱ .

یا دا چې کله په مذکوره آیت سره د سینې او ګریوان پټول واجب شو نو د مخ پټول ورباندې په طریقِ اولٰی واجب شو، ځکه د ښائست او فِتنې ځای خو همدا مخ دی، خلق چې زَنانه ته ښائسته وایي نو د همدې مخ په وجه یې ورته وایي، چې مخ یې ښائسته وي نو ټوله زَنانه ښائسته ګڼرې.

نو چې کله په دې آیت کې زَنانه ته د سِینې او ګریوان پټولو حکم اوشو نو د مخ پټولو حکم به ورته په طریقِ اولٰی وي، ځکه دا خو هیڅ کله نشي کیدی چې زَنانه ته دې د سینې او ګریوان پټولو حکم شوې وي او مخ چې د ښائست او په فِتنه کې د مبتلاء کیدو څیز دی ددې د پټولو حکم دې ورته نه وي شوی. (۱)

کله چې دا آیت نازل شو نو صحابیاتې ددې په مطلب باندې پوهه شوې سمدستي یې په لوي څادر سره خپل مخونه پټ کړل (په بخاري شریف کې ددې تذکره شته) ، نو دا آیت زَنانهٔ د پاره د مخ په پټولو کې صریح دی. (۲)

---

(۱) قوله تعالى: ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ ﴾ . فإنّ الخمار ما تخمر به المرأة رأسها وتغطيه به كالغدفة. فإذا كانت مأمورة بأن تضرب بالخمار على جيبها كانت مأمورة بستر وجهها. إمّا لأنّه من لازم ذلك، أو بالقياس ، فإنّه إذا وجب ستر النّحر والصّدر كانَ وجوب ستر الوجه من باب أولى ؛ لأنّه موضع الجمال والفتنة . فإنّ النّاس الذين يتطلبون جمال الصورة لا يسألون إلا عن الوجه. فإذا كان جميلًا لم ينظروا إلى ما سواه نظرًا ذا أهمية . ولذلك إذا قالوا فلانة جميلة لم يفهم من هذا الكلام إلّا جمال الوجه . فتبيّن أنّ الوجه هو موضع الجمال طلبًا وخبرًا. فإذا كان كذلك فكيف يفهم أنّ هذه الشريعة الحكيمة تأمر بستر الصدر والنّحر ثم ترخص في كشف الوجه. رسالة الحجاب ص ۱۱ .

(۲) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: يَرْحَمُ اللهُ نِسَاءَ الْمُهَاجِرَاتِ الأُوَلَ . لَمَّا أَنْزَلَ اللهُ: {وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ} شَقَّقْنَ مُرُوطَهُنَّ فَاخْتَمَرْنَ بِهَا . صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ القُرْآنِ بَابُ {وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ} رقم الحديث ۴۷۵۸ .

وفي رواية : عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا كَانَتْ تَقُولُ : لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الآيَةُ: {وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ} أَخَذْنَ أُزُرَهُنَّ فَشَقَّقْنَهَا مِنْ قِبَلِ الحَوَاشِي فَاخْتَمَرْنَ بِهَا . صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ القُرْآنِ بَابُ {وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ} رقم الحديث ۴۷۵۹ .

قال الشنقيطي رَحِمَهُ اللهُ : وَهٰذَا الحَدِيثُ الصَّحِيحُ صَرِيحٌ فِي أَنَّ النِّسَاءَ الصَّحَابِيَّاتِ المَذْكُورَاتِ ←←←

**دريم** : الله تعالى په مذكوره آيت كې زنانه زينت ښكاره كولو نه منع كړى مګر كوم چې پخپله ښكاره كيږي هغه ورنه مستثنى دى، فرمايي :

﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾. او دوى دې خپل زينت نه ښكاره كوي مګر كوم چې ددينه پخپله ښكاره شي. (يعنى د كار او حركت كولو په وخت عادةً هغه پخپله ښكاره شي او د هغې پټول مشكل وي).

ددينه هم د زنانه د پاره د مخ پټولو او پردې وجوب معلوميږي، ځكه د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په نزد باندې د " إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا " نه غټ څادر او كپړې مراد دي.

اوس د آيت مطلب دا شو چې زنانه دې خپل زينت نه ښكاره كوي مګر كه بهر ته د وتلو په وخت ددې غټ څادر (برقعه) يا كپړې ښكاره شي نو دا خبر دى، ځكه ددې په پټولو كې حرج دى. (۱)

اګر چې حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د " إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا " نه مخ او د لاسونو ورغوي

---

←←← فِيهِ فَهِمْنَ أَنَّ مَعْنَى قَوْلِهِ تَعَالَى : ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ ﴾ يَقْتَضِي سِتْرَ وُجُوهِهِنَّ، وَأَنَّهُنَّ شَقَقْنَ أُزُرَهُنَّ فَاخْتَمَرْنَ، أَيْ: سَتَرْنَ وُجُوهَهُنَّ بِهَا امْتِثَالًا لِأَمْرِ اللهِ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ ﴾ الْمُقْتَضِي سِتْرَ وُجُوهِهِنَّ ، وَبِهٰذَا يَتَحَقَّقُ الْمُنْصِفُ أَنَّ احْتِجَابَ الْمَرْأَةِ عَنِ الرِّجَالِ وَسِتْرَهَا وَجْهَهَا عَنْهُمْ ثَابِتٌ فِي السُّنَّةِ الصَّحِيحَةِ الْمُفَسِّرَةِ لِكِتَابِ اللهِ تَعَالَى. اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج ٦ ص ٢٥٠ في تفسير سورة الاحزاب آية ٥٣.

(۱) عن عبد الله (بن مسعود رضي الله عنه) قال: (وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا) قال: الثياب. تفسير الطبري (جامع البيان في تأويل القرآن) ج ١٩ ص ١٥٦ سورة النور آية ٣١.

{ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا } أَيْ: لَا يُظْهِرْنَ شَيْئًا مِنَ الزِّينَةِ لِلْأَجَانِبِ إِلَّا مَا لَا يُمْكِنُ إِخْفَاؤُهُ. وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ رضي الله عنه : كَالرِّدَاءِ وَالثِّيَابِ . يَعْنِي : عَلَى مَا كَانَ يَتَعَانَاهُ نِسَاءُ الْعَرَبِ مِنَ الْمِقْنعة الَّتِي تُجَلِّل ثِيَابَهَا. وَمَا يَبْدُو مِنْ أَسَافِلِ الثِّيَابِ فَلَا حَرَجَ عَلَيْهَا فِيهِ، لِأَنَّ هٰذَا لَا يُمْكِنُ إِخْفَاؤُهُ . وَنَظِيرُهُ فِي زِيِّ النِّسَاءِ مَا يَظْهَرُ مِنْ إِزَارِهَا، وَمَا لَا يُمْكِنُ إِخْفَاؤُهُ. وَقَالَ بِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه : الْحَسَنُ، وَابْنُ سِيرِينَ، وَ أَبُو الْجَوْزَاءِ، وَإِبْرَاهِيمُ النَّخَعِي وَغَيْرُهُمْ. تفسير ابن كثير ج٦ ص ٤٥ سورة النور آية ٣١

اخلي خو امام بیضاوي رَحمَهُ‌الله فرمایي چې په " إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنۡهَا " سره چې د مخ او لاسونو کومه اِستثناء شوی چې دا په عورت کې داخل ندي نو ظاهره داده چې دا د مانځه په باره کې عورت ندي ( یعنی که په مانځه کې د زَنانه مخ او لاسونه ښکاره شي نو مونځ یې نه ماتیږي ) ، د پَردو سرو په حق کې د اَصیلې ښځې ټول بدن عورت دی ، د خپل خاوند او خپلو مَحارِمو نه علاوه بل هیچا اِجازت نشته چې بِلا ضرورت د پَردی ښځې مخ ته اوګوري .(۱)

د عبدالله بن مسعود ﷺ قول بهتر دی ( چې زَنانه به خپل مخ غیر مَحرَمو سرو ته نه ښکاره کوي ) ځکه په دې کې احتیاط دی . (۲)

په دې ځای کې اِجمالاً په دې خبره ځان پوهه کړئ چې د عورت پټولو مسئله جدا ده او د حِجاب (پَردې) مسئله جدا ده ، فقهاء کرامو چې ذکر کړي " چې د زَنانه مخ ، لاسونه او قدمونه عورت ندي " نو د هغې مطلب دادی چې که دا په مانځه کې ښکاره شي نو مونځ نه ماتیږي ، خو د پَردو سرو په حق کې د زَنانه مخ ، لاسونه او قدمونه هم عورت دي د خپلو مَحارِمو نه علاوه د بل چا د وړاندې به یې نه ښکاره کوي ، ځکه د زَنانه مخ د حُسن مرکز

---

(۱) ﴿ وَلَا يُبۡدِينَ زِينَتَهُنَّ ﴾ كالحلي والثياب والأصباغ فضلًا عن مواضعها لمن لا يحل أن تبدى له. ﴿ إِلَّا مَا ظَهَرَ ﴾ مِنۡهَا عند مزاولة الأشياء كالثياب والخاتم فإن في سترها حرجًا. وقيل المراد بالزينة مواضعها على حذف المضاف أو ما يعم المحاسن الخلقية والتزيينية، والمستثنى هو الوجه والكفان لأنها ليست بعورة ، والأظهر أن هذا في الصلاة لا في النظر ، فإن كل بدن الحرة عورة لا يحل لغير الزوج والمحرم النظر إلى شيء منها إلا لضرورة كالمعالجة وتحمل الشهادة . تفسير البيضاوي ( انوار التنزيل واسرار التاويل ) ج ۴ ص ۱۰۴ سورة النور آية ۳۱ .

(۲) أَظۡهَرُ الۡقَوۡلَيۡنِ الۡمَذۡكُورَيۡنِ عِنۡدِيۡ قَوۡلُ ابۡنِ مَسۡعُوۡدٍ رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ : أَنَّ الزِّيۡنَةَ الظَّاهِرَةَ هِيَ مَا لَا يَسۡتَلۡزِمُ النَّظَرُ إِلَيۡهَا رُؤۡيَةَ شَيۡءٍ مِنۡ بَدَنِ الۡمَرۡأَةِ الۡأَجۡنَبِيَّةِ، وَإِنَّمَا قُلۡنَا إِنَّ هٰذَا الۡقَوۡلَ هُوَ الۡأَظۡهَرُ ، لِأَنَّهُ هُوَ أَحۡوَطُ الۡأَقۡوَالِ، وَأَبۡعَدُهَا عَنۡ أَسۡبَابِ الۡفِتۡنَةِ، وَأَطۡهَرُهَا لِقُلُوۡبِ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ، وَلَا يَخۡفَى أَنَّ وَجۡهَ الۡمَرۡأَةِ هُوَ أَصۡلُ جَمَالِهَا وَرُؤۡيَتُهُ مِنۡ أَعۡظَمِ أَسۡبَابِ الۡاِفۡتِتَانِ بِهَا ، كَمَا هُوَ مَعۡلُوۡمٌ وَالۡجَارِيۡ عَلَى قَوَاعِدِ الشَّرۡعِ الۡكَرِيۡمِ هُوَ تَمَامُ الۡمُحَافَظَةِ وَالۡاِبۡتِعَادُ مِنَ الۡوُقُوۡعِ فِيۡمَا لَا يَنۡبَغِيۡ . اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج ۵ ص ۵۱۷ سورة النور آية ۳۱ .

دی ، ددې په ښکاره کولو سره فتنه پیدا کیږي.

(ددې خبرې پوره تفصیل د دلائلو سره روښو په صفحه ۲۵۸ باندې راروان دی . ابوالشمس عفي عنه)

**څلورم** : د مذکوره آیت نه د زَنانه د پاره د مخ پټولو او پَردې کولو فرضیت داسې هم معلومیږي چې الله تعالی فرمایلي :

﴿ وَلَا يَضۡرِبۡنَ بِأَرۡجُلِهِنَّ لِيُعۡلَمَ مَا يُخۡفِينَ مِن زِينَتِهِنَّۚ ﴾ او دا زَنانه دې ( د تللو په وخت ) زمکه په خپلو خپو باندې (ددې د پاره) په زُوره نه وهي چې په دې سره ددې د هغه پټو زیوراتو آواز معلوم شي .

نو چې کله الله تعالی زَنانه په زمکه باندې په زوره خپه وهلو نه منع کړي ددې د پاره چې پرَدې کس ددې د خپو د زیوراتو آواز په آوریدو سره په فِتنه کې واقع نشي نو بیا به څنګه زَنانه ته د پرَدو سرو د وړاندې د مخ ښکاره کولو اجازت وي ؟

ځکه که سړي د زَنانه د خپو د زیوراتو آواز واوري نو دا ورنه نشي معلومولی چې دا ښائسته ده که بَدرنګه ؟ ځوانه ده که زړه ؟ نو په فِتنه کې واقع کیدل کم دي ، او په مخ کتلو سره خو انسان دا هر څه معلومولی شي .

بیا خاصکر چې ځوانې ښځې ځان ښائسته کړې وي او مخ یې ښکاره کړې وي نو دیته په کتلو سره خو انسان زیات په فِتنه کې واقع کیږي .

نو چې کله زَنانه په زمکه باندې په زوره خپه وهلو سره منع کړې شوه نو د مخ ښکاره کول خو ورته په طریقِ اولٰی ناجائز شو . (۱)

---

(۱) فإذا كانت المرأة منهية عنِ الضّرب بالأرجل خوفًا من افتتان الرّجل بما يسمع من صوت خلخالها ونحوه فكيف بكشف الوجه. فأيّما أعظم فتنة أنْ يسمع الرجل خلخالًا بقدم امرأة لا يدري ما هي وما جمالها؟! لا يدري أشابة هي أم عجوز؟! ولا يدري أشوهاء هي أم حسناء؟! أيّما أعظم فتنة هذا أو أن ينظر إلى وجه سافر جميل ممتلىء شبابًا ونضارة وحسنًا وجمالًا وتجميلًا بما يجلب الفتنة ويدعو إلى النظر إليها؟! إنّ كل إنسان له إربة في النساء ليعلم أي الفتنتين أعظم وأحق بالستر والإخفاء. رسالة الحجاب ص ١٢ ادلة وجوب الحجاب .

وقال الشيخ أبو بكر الجزائري رَحِمَهُ اللَّهُ: قوله تعالى: ﴿ وَلَا يَضۡرِبۡنَ بِأَرۡجُلِهِنَّ لِيُعۡلَمَ مَا يُخۡفِينَ مِن زِينَتِهِنَّۚ ﴾ إن دلالة هذه الآية على الحجاب الكامل أظهر وأقوى من الآيات السابقة. وذلك لأن إثارة ←←←

دا خبره مونږ داسې هم کولې شو چې زيورات د ښځې نه جدا شيان دي او ددې د آواز نه فتنه کمه پيدا کيږي خو بيا هم الله تعالى د زيوراتو د آواز ښکاره کولو نه منع کړې ده نو د زَنانه مخ ته کتل يا ددې آواز آوريدل به څنګه جائز شي حالانکه ددينه فِتنه هم ډيره پيدا کيږي. (۱)

## د زيوراتو استعمالولو حکم :

د کومو زيوراتو نه چې آواز پيدا کيږي د هغې دوه قسمونه دي :
اول : چې په تللو کې ورنه آواز پيدا کيږي ، يعنى ګونګري ( شرَنګيدلي زيورات ) يې اچولي وي نو داسې زيورات د زَنانه د پاره ممنوع دي ځکه په احاديثو کې ددينه ممانعت راغلې دى. (۲)
او دويم قِسم هغه زيورات دي چې په تللو کې پخپله ورنه آواز نه پيدا کيږي خو د يو بل سره د جنګولو او خپه په زُوره زمکه وهلو سره ورنه آواز پيدا کيږي نو دداسې زيوراتو استعمال جائز دى ، خو په زُوره خپه په زمکه وهل او پرَدو سړو ته ددې آواز آورول منع دى.
(**نوټ** : د کومو خلقو نه چې پَرده نشته ددې پوره تفصيل روستو په صفحه ۲۳۸ باندې راروان دى ) ابوالشمس

---

←←← الفتنة بسماع صوت الخلخال في الرجل إذا ضربت المرأة برجلها وهي تمشي أقل بكثير من فتنة النظر إلى وجهها وسماع حديثها، فإذا حرم الله تعالى بهذه الآية على المرأة أن تضرب الأرض برجلها خشية أن يسمع صوت حليها فيفتتن به سامعه كان تحريم النظر إلى وجهها وهو محط محاسنها أولى وأشد حرمة . فصل الخطاب ص ۴۱ ، عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۱۶ .

(۱) بيان القرآن لمولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله سورة النور .

(۲) رُوِيَ أَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَطَعَ أَجْرَاسًا فِي رِجْلِ ابْنَةِ الزُّبَيْرِ ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: « إِنَّ مَعَ كُلِّ جَرَسٍ شَيْطَانًا ». شرح السنّة للبغوي ج ۱۱ ص ۲۶ بَابُ كراهِيةِ الجرسِ في السّفرِ رقم الحديث ۲۶۷۸ . سنن ابي داؤد كِتَابُ الخَاتَمِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الجَلَاجِلِ رقم الحديث ۴۲۳۰ .
حضرت عُمر ﷺ هغه جرَس ( ګرينجې ) اوشلول کوم چې د حضرت زبير ﷺ د لور په خپو کې وُ ، بيا يې اوفرمايل : ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه آوريدلي دي چې د هر جرَس سره شيطان وي.
وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيْهِ جَرَسٌ . سنن ابى داؤد سنن ابي داؤد كِتَابُ الخَاتَمِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الجَلَاجِلِ رقم ۴۲۳۱ . مسند احمد مخرجا رقم ۲۶۰۵۲ ، السنن الكبرى للنسائي رقم ۹۴۸۳ .

## پنځم دليل : چې د بوډۍ ګانو ښځو د پاره پَرده بهتر ده نو د ځوانانو د پاره په طريقِ اولی ضروري ده

د پَردې په فرضيت باندې پنځم دليل دادی چې الله تعالی فرمايي :

﴿ وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ الَّتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ أَنْ يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ ۖ وَأَنْ يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَهُنَّ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾.(۱)

ترجمه : او په کورونو کې ناستې (ډيرې بُوډۍ ګانې) ښځې کومې چې د نکاح اُميد نه لري (يعنی د چا خواهش ورته نه کيږي) په دوی باندې څه ګناه نشته چې دوی خپلې (زياتي) کپړې (لکه غټ پړُوني او بُرقعه) کيږدي (يعنی د پړَدو سرو د وړاندې ورته د خپل مخ ښکاره کولو اِجازت شته) خو شرط دادی چې خپل زِينت (ډَول و سِنګار) به نه ښکاره کوي ، خو که دوی احتياط اوکړي (د پړَدو سرو د وړاندې خپل مخ په غټ پړُوني او برقعې سره پټ کړي) نو دا د دوی د پاره ډيره ښه ده (ځکه په دې سره به د بې پَردګۍ دروازه مکمل بنده شي) او الله تعالی آوريدونکی پوهه دی.

**د آيت تشريح** : په دې آيت کې دا ذکر شو چې که يوه زَنانه دومره بوډۍ شوې وي چې د چا نارينه خواهش ورته نه کيږي او د نکاح اُميد يې نه وي نو ددې د پاره دا اِجازت شته چې د پړَدو سرو د وړاندې بُرقعه يا غټ پړوني د مخ نه لرې کړي ؛ ځکه ددينه د فِتنې څه يَره نشته ، خو ددې سره هم دا شرط لږيدلې دی چې دې بوډۍ به ډَول و سِنګار نه وي کړی او د زِينت ځايونه به نه ښکاره کوي .

وروسې الله تعالی اوفرمايل : خو که دوی احتياط اوکړي (د پړَدو سرو د وړاندې خپل مخ په غټ پړُوني او برقعې سره پټ کړي) نو دا د دوی د پاره ډيره بهتره ده .

ددې آيت نه معلومه شوه چې کله د بُوډۍ ګانو ښځو د پاره د مخ ښکاره کولو اجازت باوجود بيا هم د دوی د پاره مخ پټول بهتر ګنړل شوي نو اوس چې کومه ښځه ځوانه وي ، اِشتهاء ورته کيږي نو هغې ته به څنګه د مخ ښکاره کولو اجازت وي ؟ حالانکه په نورو

---

(۱) النور آية ٦٠ .

صريحو آيتونو او احاديثو کې ديته د مخ پټولو حکم شوی.(۱)

که چيرته ځوانو ښځو ته د پردو سرو د وړاندې د مخ ښکاره کولو اجازت وی لکه دا بعضې ناپوهه خلق چې وايي نو بيا په دې آيت کې د بوډۍ ګانو ښځو تخصيص ولې اوشو چې صرف دوی ته اجازت دی؟

پس معلومه شوه چې ځوانانو ښځو ته د پردو سرو د وړاندې بِلاضرورته د خپل مخ ښکاره کولو اجازت نشته.(۲)

---

(۱) معارف القرآن سورة النور في تشريح آية ٦٠.

(۲) { وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَآءِ ...} قال العلامة محمد بن صالح العثيمين رَحِمَهُ اللهُ : وجهُ الدّلالةِ مِن هذه الاية الكريمة أنّ الله تعالى نفى الجناحَ وهو الإثم عن القواعد وهُنّ العواجز اللاتي لا يرجون نكاحًا لعدم رغبة الرجال بهنّ لكبر سِنّهن . نفى الله الجناح عن هذه العجائز في وضع ثيابهن بشرط أن لا يكون الغرض من ذلك التبرج بالزينة . ومن المعلوم بالبداهة أنّه ليس المراد بوضع الثياب أن يبقين عاريات، وإنّما المراد وضع الثياب التي تكون فوق الدّرع ونحوه مما لا يستر ما يظهر غالبًا كالوجه والكفين فالثياب المذكورة المرخص لهذه العجائز في وضعها هي الثّياب السابقة التي تستر جميع البدن . وتخصيص الحكم بهؤلاء العجائز دليلٌ على أنّ الشوابّ اللاتي يرجون النّكاح يخالفنهن في الحكم، ولو كان الحكم شاملًا للجميع في جواز وضع الثّياب ولبس درع ونحوه لم يكن لتخصيص القواعد فائدة . رسالة الحجاب ص ۱۳.

قال العلامة الشنقيطي رَحِمَهُ اللهُ : وَمِنَ الْأَدِلَّةِ الْقُرْآنِيَّةِ الدَّالَّةِ عَلَى الْحِجَابِ قَوْلُهُ تَعَالَى : ﴿ وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ ...﴾ لِأَنَّ اللهَ جَلَّ وَعَلَا بَيَّنَ فِي هٰذِهِ الْآيَةِ الْكَرِيمَةِ أَنَّ الْقَوَاعِدَ أَيِ الْعَجَائِزَ اللَّاتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا. أَيْ: لَا يَطْمَعْنَ فِي النِّكَاحِ لِكِبَرِ السِّنِّ وَعَدَمِ حَاجَةِ الرِّجَالِ إِلَيْهِنَّ يُرَخَّصُ لَهُنَّ بِرَفْعِ الْجُنَاحِ عَنْهُنَّ فِي وَضْعِ ثِيَابِهِنَّ، بِشَرْطِ كَوْنِهِنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ. ثُمَّ إِنَّهُ جَلَّ وَعَلَا مَعَ هٰذَا كُلِّهِ قَالَ : ﴿ وَأَنْ يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَهُنَّ ﴾ أَيْ: يَسْتَعْفِفْنَ عَنْ وَضْعِ الثِّيَابِ خَيْرٌ لَهُنَّ. أَيْ: وَاسْتِعْفَافُهُنَّ عَنْ وَضْعِ ثِيَابِهِنَّ مَعَ كِبَرِ سِنِّهِنَّ وَانْقِطَاعِ طَمَعِهِنَّ فِي التَّزْوِيجِ، وَكَوْنِهِنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ خَيْرٌ لَهُنَّ . وَأَظْهَرُ الْأَقْوَالِ فِي قَوْلِهِ: أَنْ يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ. أَنَّهُ وَضْعُ مَا يَكُونُ فَوْقَ الْخِمَارِ وَالْقَمِيصِ مِنَ الْجَلَابِيبِ الَّتِي تَكُونُ فَوْقَ الْخِمَارِ وَالثِّيَابِ . فَقَوْلُهُ جَلَّ وَعَلَا فِي هٰذِهِ الْآيَةِ الْكَرِيمَةِ : ﴿ وَأَنْ يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَهُنَّ ﴾ دَلِيلٌ وَاضِحٌ عَلَى أَنَّ الْمَرْأَةَ الَّتِي فِيهَا جَمَالٌ وَلَهَا طَمَعٌ فِي النِّكَاحِ، لَا يُرَخَّصُ لَهَا فِي وَضْعِ شَيْءٍ مِنْ ثِيَابِهَا وَلَا الْإِخْلَالِ بِشَيْءٍ مِنَ التَّسَتُّرِ بِحَضْرَةِ الْأَجَانِبِ. اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج٦ ص ۲۳۷ سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳.

په دې خبره ځان پوهه کړئ : په دې آيت کې چې ذکر شو " چې بُودی گانو ښځو ته د پرَدو سرو د وراندې د زياتي کپړو لرې کولو اجازت شته " نو په دې باندې د صحابه کرامو او تابعينو اتفاق دی چې د دې کپړو نه مراد هغه غټ پرُوني او برقعه ده چې د کپړو او لوپټې د پاسه يې زَنانه اچوي. يعنی که په غټ پروني يا بُرقعې سره مخ پټ نکړي نو دا خبر دی، دا مطلب ندی چې گني کپړې ورته بالکل ويستل جائز دي ، ځکه په دې باندې د علماؤ اِجماع ده چې که يوه زَنانه هر څومره بُودی شي خو بيا هم ديته د پرَدو سرو د وراندې خپل ويښتان (او نور عورت) ښکاره کول ناجائز دی ، او په دې کې د هيچا اختلاف نشته . (۱)

←←←←← وقال العلامة عبد العزيز بن باز رَحِمَهُ اللَّهُ : يخبر سبحانه أنّ القواعد من النساء وهنّ العجائز اللاتي لا يرجون نكاحًا لا جناح عليهن أنْ يضعن ثيابهنّ عن وجوههنّ وأيديهنّ إذا كنّ غير متبرجات بزينة. فعلم بذلك أنّ المتبرجة بالزينة ليس لها أنْ تضع ثوبها عن وجهها ويديها وغير ذلك من زينتها، وأنّ عليها جناحا في ذلك ولو كانت عجوزا، لأنّ كل ساقطة لها لاقطة ، ولأنّ التبرج يفضي إلى الفتنة بالمتبرجة ولو كانت عجوزًا فكيف يكون الحال بالشابة والجميلة إذا تبرجت ؟ لا شكّ أنّ إثمها أعظم والجناح عليها أشد، والفتنة بها أكبر . عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۲۷ الباب الخامس ادلة وجوب ستر الوجه والكفين ادلة القرآن الكريم .

(۱) قال الرازي رَحِمَهُ اللَّهُ في تفسيره : لَا شُبْهَةَ أَنَّهُ تَعَالَى لَمْ يَأْذَنْ فِي أَنْ يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ أَجْمَعَ لِمَا فِيهِ مِنْ كَشْفِ كُلِّ عَوْرَةٍ. فَلِذٰلِكَ قَالَ الْمُفَسِّرُونَ : اَلْمُرَادُ بِالثِّيَابِ هَاهُنَا الْجِلْبَابُ وَالْبُرْدُ وَالْقِنَاعُ الَّذِيْ فَوْقَ الْخِمَارِ. وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ قَرَأَ أَنْ يَضَعْنَ جَلَابِيْبَهُنَّ ، وَعَنِ السُّدِّيِّ عَنْ شيوخه ( أَنْ يَضَعْنَ خمرهنّ رؤوسهنّ ) وَعَنْ بَعْضِهِمْ أَنَّهُ قَرَأَ (أَنْ يَضَعْنَ مِنْ ثِيَابِهِنَّ ) . وَإِنَّمَا خَصَّهُنَّ اللهُ تَعَالَى بِذٰلِكَ لِأَنَّ التُّهْمَةَ مُرْتَفِعَةٌ عَنْهُنَّ. وَقَدْ بَلَغْنَ هٰذَا الْمَبْلَغَ فَلَوْ غَلَبَ عَلَى ظَنِّهِنَّ خِلَافُ ذٰلِكَ لَمْ يَحِلَّ لَهُنَّ وَضْعُ الثِّيَابِ وَلِذٰلِكَ قَالَ : ﴿ وَأَنْ يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَهُنَّ ﴾ وَ إِنَّمَا جَعَلَ ذٰلِكَ أَفْضَلَ مِنْ حَيْثُ هُوَ أَبْعَدُ مِنَ الْمَظِنَّةِ وَذٰلِكَ يَقْتَضِيْ أَنَّ عِنْدَ الْمَظِنَّةِ يَلْزَمُهُنَّ أَنْ لَا يَضَعْنَ ذٰلِكَ كَمَا يَلْزَمُ مِثْلُهُ فِي الشَّابَّةِ. التفسير الكبير ج ۲۳ ص ۲۲۰ النور آية ٦٠.

وقال الشيخ إسماعيل حقي رَحِمَهُ اللَّهُ : (فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ أَنْ يَضَعْنَ ) عند الرجال ( ثِيَابَهُنَّ ) أي: الثياب الظاهرة كالجلباب والإزار فوق الثياب والقناع فوق الخمار . تفسير روح البيان ٦/ ١٧٨ .

واتّفق المفسّرون مِنَ الصّحابة والتابعين أنّ الثياب التي رخّص اللهُ بوضعها للعجوز هي ←←←←

خلاصه دا چې کوم خلق په " إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا " سره د ځواني ښځې د پاره د پَردو سرو د وراندې د مخ او لاسونو ښکاره کولو اجازت ورکوي نو دوی ته دا ویل پکار دي چې
" بیا په دې آیت کې د بوډۍ ګانو ښځو د پاره مستقل د اجازت ورکولو څه مطلب دی ؟
بیا خو دا هم په " إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا " کې داخل وی "
معلومیږي چې د ځوانانو ښځو د پاره بغیر ضرورته د پَردو سرو د وراندې د مخ ښکاره کولو اجازت نشته . (۱)
که مونږ د مخکینۍ زمانې د پاکو بیبیانو حالات اوګورو نو اګر چې هغوی به ډیرې بُوډۍ ګانې وی خو بیا به یې هم پَرده کوله او دلیل به یې دا پیش کول چې اګر چې الله

---

←←←← الجَلَابيبُ ، جاء بسندٍ صحيحٍ ذلك عَنِ ابْنِ عباسٍ وابنِ مسعودٍ وابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ والشَّعْبِيِّ وابنِ جُبَيْرٍ والحسنِ ومجاهدٍ وعِكْرِمَةَ و قَتَادَةَ رحمهم الله وغيرهم . وهٰؤلاءِ كُلُّهُم لهم تفسيرٌ للزينةِ الظاهرة . واتّفقوا هنا على أنّ ما تختَصُّ به العجوزُ عَنِ الشابةِ رفعُ الجلبابِ فقط . والجلابيبُ : هي ما تختَصُّ بسترِ الوجهِ مِنْ بَشَرَةِ الجسمِ و تكونُ فوقَ بقيةِ الثيابِ ثوبًا على ثوبٍ . فالجلبابُ فوقَ الخمارِ ؛ ويدلّ على أنّ الجلابيبَ " ما كانتْ تسترُ الوجوهَ لِلشابةِ " جملةٌ من تفسيرِ أفصحِ النَّاسِ وأقربِهم إلى الوحي . وهُمُ الصحابةُ والتابعونَ . الحجاب في الشرع والفطرة ص ۱۱۷ .

قال العلامة الشنقيطي رَحِمَهُ اللَّهُ : وَأَظْهَرُ الْأَقْوَالِ فِي قَوْلِهِ: أَنْ يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ، أَنَّهُ وَضْعُ مَا يَكُونُ فَوْقَ الْخِمَارِ وَالْقَمِيصِ مِنَ الْجَلَابِيبِ، الَّتِي تَكُونُ فَوْقَ الْخِمَارِ وَالثِّيَابِ . اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج۶ ص ۲۴۷ سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳ .

(۱) وإذا اتّفقَ الصحابةُ على أنّ رخصةَ النساءِ العجائزِ وَضعُ الجلابيبِ ، وكشفُ الوجهِ من غيرِ زينةٍ . فماذا يُحِلُّونَ لِلمرأةِ الشابةِ أمامَ الأجانبِ ؟ وقد حكَى الإجماعَ غيرُ واحدٍ مِن العلماءِ على أنّه لايجوزُ للعجوزِ أنْ تكشفَ شعرَها للأجانبِ مهما بَلَغَ سِنُّهَا . حكَى الإجماعَ الجصاصُ وابنُ حزمٍ وغيرُهما . فشعرُ العجوزِ عورةٌ لِلأجانبِ كشعرِ الشابةِ بلا خلافٍ . وإذا كانَ تفسيرُ ابنِ عُمَرَ وابنِ عباسٍ وابنِ جُبَيْرٍ وعكرمةَ والحسَنِ والشَّعْبِيِّ وَالضَّحَّاك ومجاهدٍ وقتادةَ لآيةِ " إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا " أنَّها الوجهُ وَالكفانِ . ويُرادُ بها الأجانبُ . فَمَا الفائدةُ مِن نزولِ آيةِ القواعدِ والترخيصِ لها بوضعِ الجلبابِ ؟ . الحجاب في الشرع والفطرة ص ۱۱۸ .

تعالی دوی ته اجازت ورکړی خو د " وَأَنْ يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَّهُنَّ " نه معلومیږي چې زمونږ د پاره هم پَرده بهتر ده. (۱)

## شپږم دلیل: د غیر مَحرَمو سړو نه پَردې نه کولو سره ښځه ګناهګاریږي

د پَردې په ثبوت باندې شپږم دلیل دادی چې په سورة الاحزاب کې الله تعالی څنې کسان مُستثنٰی کړي دي چې د دوی نه پَرده نشته:

﴿لَا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِي آبَائِهِنَّ وَلَا أَبْنَائِهِنَّ وَلَا إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ أَخَوَاتِهِنَّ وَلَا نِسَائِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ وَاتَّقِينَ اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا﴾. (۲)

ترجمه: په دې بیبیانو باندې څه ګناه نشته چې دوی مخامخ کیږي د خپلو پلارانو، خپلو ځامنو، خپلو ورنړو، خپلو وریرونو، خپلو خورَینو، خپلو هَمجِنسو ښځو او خپلو وینځو سره (یعنی ددې خلقو نه پَرده نشته)، او د الله تعالی نه أوویریږئ، بیشکه الله تعالی په هر څیز باندې ګواه دی.

**فائده**: په دې آیت کې ذکر شو چې که زَنانه د مذکوره کسانو نه پَرده اونکړي نو په دې باندې څه ګناه نشته. ددینه معلومه شوه چې شریعت زَنانه ته د کومو خلقو نه د پَردې کولو حکم کړی که دا د هغوی نه پَرده اونکړي نو دا به ګناهګاره وي. (۳)

---

(۱) عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ قَالَ: كُنَّا نَدْخُلُ عَلَى حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ. وَقَدْ جَعَلَتِ الْجِلْبَابَ هَكَذَا، وَتَنَقَّبَتْ بِهِ فَنَقُولُ لَهَا: رَحِمَكِ اللَّهُ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: {وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ اللَّاتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ أَنْ يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ} هُوَ الْجِلْبَابُ. قَالَ: فَتَقُولُ لَنَا: أَيُّ شَيْءٍ بَعْدَ ذَلِكَ؟ فَنَقُولُ: {وَأَنْ يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَهُنَّ} فَتَقُولُ: هُوَ إِثْبَاتُ الْجِلْبَابِ. السنن الكبرى للبيهقي جُمَّاعُ أَبْوَابِ التَّرْغِيبِ فِي النِّكَاحِ وَغَيْرِ ذَلِكَ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْقَوَاعِدِ مِنَ النِّسَاءِ رقم الحديث ۱۳۵۳۴.

(۲) الاحزاب آیة ۵۵.

(۳) ﴿لَا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ ...﴾ وجه الدّليل هو: أنّه لمّا نفى الجناح عن هؤلاء المذكورين في عدم الاحتجاب عنهم، وذلك لأنّهم غير أجانب منهنّ بقي الجناح في حق غيرهم إذا لم يحتجبن عنهم، وهم الأجانب. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۱۴۳.

**د مذکوره شپږو آیتونو خلاصه**: د مذکوره شپږو (٦) آیتونو نه دا ثابته شوه چې د زَنانه د پاره اصل حکم دادی چې دا به په کور کې په پَرده کې ناسته وي، خو که د څه ضرورت د پاره د کور نه بهر راأوځي نو په پَرده کې به راأوځي، خپل مخ او نور د زِینت ځایونه به بغیر د سخت ضرورت نه نه ښکاره کوي.

# د پَردې ثبوت د احادیثو نه

اوس درته د احادیثو مبارکهؤ نه د پَردې ثبوت پیش کوم:

## ښځه په پَرده کې د پاتې کیدو څیز دی

۱. د ترمذي شریف حدیث دی، رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

اَلمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ إِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ . (۱)

ښځه په پَرده کې د اُوسیدو څیز دی ( یعنی لکه څرنګې چې عورت پټول په کار دي همدغه شان ښځه هم د غیر مَحرَمو سړو د نظرونو نه محفوظ کیدل په کار دي(۲) )، کله چې دا د پَردې نه بهَر اُووځي نو شیطان یې د سړو په نظر کې ښائسته ښکاره کوي. ( چې په دې سره نور خلق په دې ګمراه کوي او ښځه په خپله هم ګمراه کیږي ).(۳)

---

(۱) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى المُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ وقال الترمذي: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. قال الالباني: صحيح. مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النَّظرِ إِلَى المَخطوبة وَبَيَان العورات اَلفَصْل الثَّانِي رقم الحديث ۳۱۰۹(۱۲)، مصنف ابن ابي شيبة رقم ۷۶۱۶، كنزالعمال رقم الحديث ۴۵۰۴۵، صحيح الترغيب والترهيب كتاب الصلاة ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها رقم ۳۴۶(۷).

(۲) (اَلمَرْأَةُ عَوْرَةٌ) يعني أنه يجب سترها. عودة الحجاب ج۳ ص۹۷.

(۳) (إِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ) أَيْ زَيَّنَهَا فِي نَظَرِ الرِّجَالِ. وَقِيلَ: أَيْ نَظَرَ إِلَيْهَا لِيُغْوِيَهَا وَيُغْوِيَ بِهَا . وَالأَصْلُ فِي الإِسْتِشْرَافِ رَفْعُ البَصَرِ لِلنَّظَرِ إِلَى الشَّيْءِ وَبَسْطُ الكَفِّ فَوْقَ الحَاجِبِ وَالعَوْرَةُ السَّوْأَةُ وَكُلُّ مَا يُسْتَحَى مِنْهُ إِذَا ظَهَرَ. وَقِيلَ أَنَّهَا ذَاتُ عَوْرَةٍ وَالمَعْنَى أَنَّ المَرْأَةَ غَيْرَهَا بِهَا فَيُوْقِعُهَا أَوْ أَحَدَهُمَا فِي الفِتْنَةِ أَوْ يُرِيدُ بِالشَّيْطَانِ شَيْطَانَ الإِنْسِ مِنْ أَهْلِ الفِسْقِ أَيْ إِذَا رَأَوْهَا بَارِزَةً اِسْتَشْرَفُوهَا بِمَا بَثَّهُ الشَّيْطَانُ فِي نُفُوسِهِمْ مِنَ الشَّرِّ وَمُحْتَمَلٌ أَنَّهُ رَآهَا الشَّيْطَانُ فَصَارَتْ مِنَ الخَبِيثَاتِ بَعْدَ أَنْ كَانَتْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ. مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۴.

۲ . په یو حدیث کې ورسره نوره اِضافه هم شته ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

إِنَّ الْمَرْأَةَ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ إِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ، وَأَقْرَبُ مَا تَكُوْنُ مِنْ وَجْهِ رَبِّهَا وَهِيَ فِيْ قَعْرِ بَيْتِهَا . (۱)

ښځه په پَرده کې د اُوسیدو څیز دی ، کله چې دا د پَردې نه بهر اُووځي نو شیطان یې د سرو په نظر کې ښائسته کوي ، او دا الله جَلَّ جَلَالُهُ ته په هغه وخت کې ډیره نزدې وي چې کله په خپل کور کې دننه ( په پَرده کې ) وي .

**فائده** : په عربي کې " عَوْرة " هغې حصې ته وایي چې د هغې پټول لازمي وي او ښکاره کول یې خلق عیب گڼري . په مذکوره حدیث کې ښځې ته " عورة " وویل شو نو مطلب یې دا شو چې دا هم په پَرده کې د پاتې کیدو څیز دی . (۲)

علماؤ ددې حدیث نه دا معلومه کړی چې ښځه به د بدن هیڅ اندام پرَدو سرو ته نه ښکاره کوي . (۳)

ددې حدیث نه دا هم معلومه شوه چې زَنانه ته په پَرده کې اُوسیدل په کار دي .

بل ورنه دا هم معلومه شوه چې کله ښځه په بې پَردگۍ سره اُووځي نو دا شیطان ته محبوب عمل دی چې په دې سره خلق گمراه کوي ، او چې کله په کور کې په پَرده کې ناسته وي نو دا الله جَلَّ جَلَالُهُ ته ډیره مُقرّبه وي .

---

(۱) صحيح ابن خزيمة رقم الحديث ۱٦۸۵ ، و رقم الحديث ۱٦۸٦ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۵۹۸ ، و رقم الحديث ۵۵۹۹ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۱۱۵ ، صحيح الترغيب والترهيب كتاب الصلاة ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها رقم الحديث ۳۴۴(۵) .

(۲) معارف الحديث ج ٦ ص ۴۳٦ .

(۳) (اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ ) هذا الحديث دالٌّ على أنّ جميعَ اجزاء المرأة عورةٌ في حقّ الرّجال الأجانب . و سواء في ذلك وجهها وغيره من أعضائها . الصارم المشهور ص ۹٦ ، الرد القوي ص ۲۲۵ ، اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۱۵۴ .

# زَنانه ؤ د پاره په کور کې پاتې کیدل غوره دي

حضرت علي رضي الله عنه فرمایي چې یوه ورځ زه د رسولُ الله صلی الله علیه وسلم په مجلس کې حاضرووم ، دوی پوښتنه اوکړه :

أَيُّ شَيْءٍ خَيْرٌ لِلْمَرْأَةِ ؟ د زَنانه د پاره څه شی زیات بهتر دی ؟

صحابه کرام رضي الله عنهم چُپ پاتې شو ( هیڅ جواب یې ورنکړو ) . کله چې زه کور ته راغلم نو ما د ( خپلې بي بي ) حضرت فاطمې رضي الله عنها نه دا پوښتنه اوکړه :

أَيُّ شَيْءٍ خَيْرٌ لِلنِّسَاءِ ؟ د ښځو د پاره کوم شی ډیر بهتر دی ؟

هغې راته ووېل : أَلَّا يَرَاهُنَّ الرِّجَالُ .

د ښځو د پاره ډیر بهتر شی دا دی چې سړي دوی ته نه ګوري (او دوی سړو ته نه ګوري).

حضرت علي رضي الله عنه فرمایي ما نبي علیه السلام ته د دې تذکره اوکړه ، نو دوی اوفرمایل :

إِنَّمَا فَاطِمَةُ بِضْعَةٌ مِنِّيْ .

بیشکه فاطمة رضي الله عنها زما د زړه یوه ټوټه (لختِ جګر) ده (هغې صحیح ویلي) . (۱)

(۱) عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَقَالَ : أَيُّ شَيْءٍ خَيْرٌ لِلْمَرْأَةِ ؟ فَسَكَتُوْا . فَلَمَّا رَجَعْتُ قُلْتُ لِفَاطِمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : أَيُّ شَيْءٍ خَيْرٌ لِلنِّسَاءِ ؟ قَالَتْ : أَلَّا يَرَاهُنَّ الرِّجَالُ . فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : « إِنَّمَا فَاطِمَةُ بِضْعَةٌ مِنِّيْ » رَضِيَ اللهُ عَنْهَا . مسند البزار ج ۲ ص ۱۵۹ رقم الحديث ۵۲۶ ، مجمع الزوائد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ أَيِّ شَيْءٍ خَيْرٌ لِلنِّسَاءِ رقم الحديث ۷۳۲۸ ، و رقم الحديث ۱۵۲۰۰ بَابُ مَنَاقِبِ فَاطِمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بِنْتِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، كنز العمال رقم الحديث ۴۶۰۱۲ ، معارف القرآن سورة الاحزاب في تفسير آية ۵۳ ، احياء علوم الدين ج ۲ ص ۴۶ .

وفي رواية : عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِيْ طَالِبٍ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ : « أَيُّ شَيْءٍ خَيْرٌ لِلْمَرْأَةِ ؟ » قَالَ : فَلَمْ يَكُنْ عِنْدَنَا لِذٰلِكَ جَوَابٌ . فَلَمَّا رَجَعْتُ إِلَى فَاطِمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قُلْتُ : يَا بِنْتَ مُحَمَّدٍ ! إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلَنَا عَنْ مَسْأَلَةٍ فَلَمْ نَدْرِ كَيْفَ نُجِيْبُهُ . فَقَالَتْ : وَعَنْ أَيِّ شَيْءٍ سَأَلَكُمْ ؟ فَقُلْتُ : قَالَ : « أَيُّ شَيْءٍ خَيْرٌ لِلْمَرْأَةِ ؟ » فَقَالَتْ : فَلَمْ تَدْرُوْا مَا الْجَوَابُ ؟ فَقُلْتُ لَهَا : لَا . فَقَالَتْ : لَيْسَ خَيْرٌ لِلْمَرْأَةِ مِنْ أَنْ لَا تَرَى رَجُلًا وَلَا يَرَاهَا . فَلَمَّا كَانَ الْعَشِيُّ جَلَسْنَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَقُلْتُ لَهُ : ←←←←←←←←

# زَنانه وُ ته په کور کې پاتې کېدو سره د جهاد ثواب ملاوېږي

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې زَنانه رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلې او ورته وې ويل :

يَا رَسُوْلَ اللهِ ! ذَهَبَ الرِّجَالُ بِالْفَضْلِ وَالْجِهَادِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ . فَمَا لَنَا عَمَلٌ نُدْرِكُ بِهِ عَمَلَ الْمُجَاهِدِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ؟

اې د الله رسوله ! سړو د الله تعالیٰ په لار کې د جهاد کولو فضيلتونه حاصل کړل پس زمونږ د پاره داسې کوم عمل دی چې په هغې سره مونږ د الله تعالیٰ په لار کې د جهاد کوونکو هومره اَجر پيامُومو ؟

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمايل :

مَنْ قَعَدَ مِنْكُنَّ فِيْ بَيْتِهَا فَإِنَّهَا تُدْرِكُ عَمَلَ الْمُجَاهِدِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ .

په تاسو کې چې څوک په خپل کور کې کېني نو دا د الله تعالیٰ په لار کې جهاد کوونکي هومره ثواب مومي . (۱)

په څنې رواياتو کې راځي چې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم زَنانه وُ دا جواب ورکړو :

مِهْنَةُ إِحْدَاكُنَّ فِيْ بَيْتِهَا تُدْرِكُ بِهِ عَمَلَ الْمُجَاهِدِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ . (۲)

---

←←← يَا رَسُوْلَ اللهِ. إِنَّكَ سَأَلْتَنَا عَنْ مَسْأَلَةٍ فَلَمْ نُجِبْكَ فِيْهَا . قَالَ : فَقُلْتُ لَهُ : لَيْسَ لِلْمَرْأَةِ شَيْءٌ خَيْرٌ مِنْ أَنْ لَا تَرَى رَجُلًا وَلَا يَرَاهَا. فَقَالَ : « وَمَنْ قَالَ ذٰلِكَ ؟ » فَقُلْتُ: فَاطِمَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا . فَقَالَ : « صَدَقَتْ. إِنَّهَا بِضْعَةٌ مِنِّيْ ».
كنز العمال باب في ترغيبات النساء وترهيباتهن رقم الحديث ۴۶۰۱۱ . الإيماء إلى زوائد الأمالي والأجزاء ج ۵ ص ۱۴۱ مسندُ عليّ بن ابي طالب الأدب .

(۱) عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ : جِئْنَ النِّسَاءُ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! ذَهَبَ الرِّجَالُ بِالْفَضْلِ وَالْجِهَادِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَمَا لَنَا عَمَلٌ نُدْرِكُ بِهِ عَمَلَ الْمُجَاهِدِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ : مَنْ قَعَدَ مِنْكُنَّ فِيْ بَيْتِهَا فَإِنَّهَا تُدْرِكُ عَمَلَ الْمُجَاهِدِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ . مسند البزار ج ۱۳ ص ۳۳۹ رقم الحديث ۶۹۶۲ ، تفسير ابن كثير ج ٦ ص ۴۰۹ سورة الاحزاب في تشريح آية ۳۳ ، الدرالمنثور في التفسير بالمأثور ج ٦ ص ۶۰۰ .

(۲) المعجم الاوسط رقم الحديث ۲۸۰۷ ، شعب الايمان رقم الحديث ۸۳۶۸ ، مجمع الزوائد بَابُ ثَوَابِ الْمَرْأَةِ عَلَى طَاعَتِهَا لِزَوْجِهَا وَقِيَامِهَا عَلَى مَالِهِ وَخَيْلِهَا وَوَلَدِهَا رقم الحديث ۷۶۲۸ ، الدرالمنثور في التفسير بالمأثور ج ۲ ص ۵۱۸ .

په تاسو کې چې څوک په خپل کور کې خدمت کوي نو په دې سره د الله په لار کې د جهاد کوونکي هومره ثواب مومي.

## زَنانه د پاره په کور کې مونځ کول بهتر دی

د ابوداؤد شريف او مشکوة شريف حديث دی، رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي:

صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي حُجْرَتِهَا . وَصَلَاتُهَا فِي مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي بَيْتِهَا". (۱)

د ښځې د پاره په کمره کې دننه مونځ کول په انگړ کې د مونځ کولو نه ډير بهتر دی، او په کوټګۍ (کومه چې په کمره کې دننه بله وړه کمره وي، په دې) کې مونځ کول ورته په کلاؤ کمره کې د مونځ کولو نه ډير بهتر دی.

يعنى ښځه چې څومره په پټه او پَرده کې مونځ اوکړي نو دا دې د پاره ډير بهتر دی؛ ځکه د ښځې ټول دارو مدار په پَرده باندې دی، نو د کلاؤ صحن په نسبت ورله په کمره کې مونځ بهتر دی، او د کمرې په نسبت ورله په هغه کوټګۍ کې مونځ کول بهتر دی چې هغه په کمره کې دننه جوړه شوې وي. (۲)

---

(۱) سنن ابي داؤد كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ التَّشْدِيدِ فِي ذَلِكَ (اى فى خُرُوجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسْجِدِ) رقم الحديث ۵۷۰ قال الالباني: صحيح. مشكوة المصابيح كتاب الصَّلَاة بَابُ الجَمَاعَةِ وفضلها الفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۱۰۶۳(۱۲)، صحيح ابن خزيمة رقم لاحديث ۱۶۹۰، و رقم الحديث ۱۶۸۸، المعجم الاوسط رقم الحديث ۹۱۰۱، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۹۴۸۲، المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۵۷ وقال الحاكم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. ووافقه الذهبي، السنن الكبرى للبيهقي رقم ۵۳۶۱، شرح السنة للبغوي رقم ۸۶۵، مجمع الزوائد رقم الحديث ۲۱۰۹ .

(۲) (صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِي بَيْتِهَا) أَيِ الدَّاخِلَانِيِّ لِكَمَالِ سَتْرِهَا (أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي حُجْرَتِهَا) أَيْ: صَحْنِ الدَّارِ. قَالَ ابْنُ الْمَلَكِ: أَرَادَ بِالْحُجْرَةِ مَا تَكُونُ أَبْوَابُ الْبُيُوتِ إِلَيْهَا، وَهِيَ أَدْنَى حَالًا مِنَ الْبَيْتِ. (وَصَلَاتُهَا فِي مَخْدَعِهَا): بِضَمِّ الْمِيمِ وَتُفْتَحُ وَتُكْسَرُ مَعَ فَتْحِ الدَّالِ فِي الْكُلِّ، وَهُوَ الْبَيْتُ الصَّغِيرُ الَّذِي يَكُونُ دَاخِلَ الْبَيْتِ الْكَبِيرِ يُحْفَظُ فِيهِ الْأَمْتِعَةُ النَّفِيسَةُ، مِنَ الْخَدْعِ، وَهُوَ إِخْفَاءُ الشَّيْءِ، أَيْ: فِي خِزَانَتِهَا (أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِي بَيْتِهَا): لِأَنَّ مَبْنَى أَمْرِهَا عَلَى التَّسَتُّرِ. مرقاة المفاتيح ج ۳ ص ۸۳۷ في تشريح حديث ۱۰۶۳.

# أمّ حُمَید رضي الله عنها ته نبي عليه السلام په کور کې د مونځ کولو حکم اوکړو

حضرت اُمّ حُمَید رضي الله عنها نبي عليه السلام ته راغله او ورته وې ویل :

يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنِّيْ أُحِبُّ الصَّلَاةَ مَعَكَ .

اې د الله رسوله! زه د تاسو سره (په مسجدِ نبوي کې په جَمعې سره) مونځ کول خوښوم.
نبي عليه السلام ورته اوفرمایل :

قَدْ عَلِمْتُ أَنَّكِ تُحِبِّيْنَ الصَّلَاةَ مَعِيْ، وَصَلَاتُكِ فِيْ بَيْتِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ حُجْرَتِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِيْ حُجْرَتِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ دَارِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِيْ دَارِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ مَسْجِدِ قَوْمِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِيْ مَسْجِدِ قَوْمِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ مَسْجِدِيْ .

ماته معلومه ده چې ته د ما سره مونځ کول خوښوی خو ستا هغه مونځ چې ته یې د کور په کمره کې دننه اوکړی دا ستا د پاره د هغه مونځ نه ډیر بهتر دی کوم چې ته په بهر کمره کې اوکړی (کومه چې د صحن سره نزدې وي) ، او ستا هغه مونځ چې ته یې د صحن سره متّصل کمره کې اوکړی دا د هغه مونځ نه ډیر بهتر دی کوم چې ته د کور په صحن کې اوکړی ، او ستا هغه مونځ چې ته یې د کور په صحن کې اوکړی دا د هغه مونځ نه ډیر بهتر دی چې ته یې د خپل قوم (او قبیلې) په جُما کې اوکړی ، او ستا د پاره د خپل قوم په جُمات کې مونځ کول زما په جُمات (مسجدِ نبوي) کې د مونځ کولو نه ډیر بهتر دی .

راوي د حدیث وایي چې اُمّ حُمَید رضي الله عنها (چې د نبي عليه السلام دا خبرې واورېدی نو دې) حکم اوکړو ، او ددې د پاره د کور په دننه آخري تیاره حصه کې د مانځه د پاره ځای جوړ کړې شو فَكَانَتْ تُصَلِّيْ فِيْهِ حَتّٰى لَقِيَتِ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ .

دې به همیشه په دې دننه کمره کې مونځ کول تر دې چې د الله ﷻ سره یې ملاقات اوشو (یعنی تر د وفاته پورې بهر جُمات ته لا نه ړه بلکه په همدې محفوظ ځای کې یې مونځ کولو) .(۱)

---

(۱) عَنْ أُمِّ حُمَيْدٍ رضي الله عنها امْرَأَةِ أَبِيْ حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ رضي الله عنهما ، أَنَّهَا جَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنِّيْ أُحِبُّ الصَّلَاةَ مَعَكَ . قَالَ : « قَدْ عَلِمْتُ أَنَّكِ تُحِبِّيْنَ الصَّلَاةَ مَعِيْ . وَصَلَاتُكِ فِيْ بَيْتِكِ ←←←←

**د عبرت مقام :** په دې حديث کې ددې دَور زَنانه وُ د پاره ډير لوي عبرت پروت دی چې اُمّ حُمَيد رَضِيَ اللهُ عَنهَا د نبي عليه السلام د وړاندې دا خواهش ظاهر کړو " چې په مسجدِنبوي کې د تاسو پسې شاته فرض مونځ په جَمعې سره اداء کول غواړم " او دا يقيني چې ډير لوي سعادت دی : ځکه اول خو د جَمعې سره د مونځ کولو ثواب د ځانله مونځ کولو نه يو په اُووه ويشت (۲۷) درجې زيات دی ، بيا په مسجد نبوي کې د يو مونځ ثواب په زرهاوُ درجې زيات دی ، بيا خاصکر د نبي عليه السلام پسې د جَمعې مونځ کولو فضيلت خو نور هم زيات وُ ، هاغه وخت د خيرُ القُرُون زمانه وه ، او ښځې هم پاک دَامنې وې خو ددې ټولو فضيلتونو باوجود بيا هم نبي عليه السلام هغې ته نصيحت اوکړو چې ستا د پاره په کور کې مونځ کول ډير بهتر دی .

نو اوس به څنګه د زَنانه وُ د پاره کلاوُ مخ او بې پَردې حالت کې په بازارونو کې د ګرځېدو اجازت وي ؟ حالانکه دا د فتنې دَور دی او هر طرف ته بې حيائي ده .

لهذا د زَنانه وُ د پاره په کور کې په پَرده کې پاتې کيدل او هم هلته عبادت کول ډير بهتر دی .

د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم نه هم نقل دي چې د زَنانه وُ د پاره په کور کې د عبادت کولو ثواب زيات دی . (۱)

---

←←← خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي حُجْرَتِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِي حُجْرَتِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِي دَارِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِي دَارِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِي » ، قَالَ : فَأَمَرَتْ فَبُنِيَ لَهَا مَسْجِدٌ فِي أَقْصَى شَيْءٍ مِنْ بَيْتِهَا وَأَظْلَمِهِ ، فَكَانَتْ تُصَلِّي فِيهِ حَتَّى لَقِيَتِ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۷۰۹۰ ، صحيح ابن خزيمة رقم الحديث ۱۶۸۹ باب اختيار صلاة المرأة في حجرتها ... ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۲۲۱۷ ذِكْرُ الْبَيَانِ بِأَنَّ صَلَاةَ الْمَرْأَةِ كُلَّمَا كَانَتْ أَسْتَرَ كَانَ أَعْظَمَ لِأَجْرِهَا ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۲۱۰۶ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۳۴۰(۱) ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها .

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، قَالَ : إِنَّمَا النِّسَاءُ عَوْرَةٌ ، وَإِنَّ الْمَرْأَةَ لَتَخْرُجُ مِنْ بَيْتِهَا وَمَا بِهَا مِنْ بَأْسٍ فَيَسْتَشْرِفُ لَهَا الشَّيْطَانُ ، فَيَقُولُ : إِنَّكِ لَا تَمُرِّينَ بِأَحَدٍ إِلَّا أَعْجَبْتِهِ ، وَإِنَّ الْمَرْأَةَ لَتَلْبَسُ ثِيَابَهَا فَيُقَالُ : أَيْنَ تُرِيدِينَ ؟ فَتَقُولُ : أَعُودُ مَرِيضًا ، أَوْ أَشْهَدُ جِنَازَةً ، أَوْ أُصَلِّي فِي مَسْجِدٍ ، وَمَا عَبَدَتِ امْرَأَةٌ رَبَّهَا مِثْلَ أَنْ تَعْبُدَهُ فِي بَيْتِهَا . المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۸۹۱۴ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۲۱۱۸ وقال الهيثمي : رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ فِي الْكَبِيرِ وَرِجَالُهُ ثِقَاتٌ . صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۳۴۸(۹) .

# زَنانه به بِلاضرورت بهر ته نه اوځي

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

لَيْسَ لِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ فِي الْخُرُوجِ إِلَّا مُضْطَرَّةً [ يَعْنِي ] لَيْسَ لَهَا خَادِمٌ . إِلَّا فِي الْعِيدَيْنِ الْأَضْحٰى وَالْفِطْرِ . وَلَيْسَ لَهُنَّ نَصِيبٌ فِي الطَّرِيقِ إِلَّا الْحَوَاشِيْ . (۱)

زَنانه ؤ د پاره بهر ته د وتلو حق نشته مګر کله چې مجبوره شي يعنى څوک خادم يې نه وي ( چې د بهر نه ورله ضروريات راپوره کړي ) ، همدارنګې په دواړو اخترونو (عيدُ الاضحىٰ او عيدُ الفطر ) کې هم ورته عيدګاه ته د تللو اجازت شته ، او صرف د لارې په غاړه باندې (يو څنډې طرف ته) ورته د تللو حق دى .

# د پَردې حُکم نازليدو سره سَمدستي صحابياتو په غټ پړوني باندې خپل مخونه پټ کړل

۱ . د بخارې شريف حديث دى ، حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنها فرمايي :

يَرْحَمُ اللهُ نِسَاءَ الْمُهَاجِرَاتِ الْأُوَلَ . لَمَّا أَنْزَلَ اللهُ : {وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوبِهِنَّ} شَقَقْنَ مُرُوطَهُنَّ فَاخْتَمَرْنَ بِهَا . (۲)

الله تعالى دې په اولني مهاجرو ښځو باندې رَحم اوکړي کله چې الله تعالى دا آيت نازل کړو (وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوبِهِنَّ . ترجمه : او دوى دې خپلې لوپټې په خپلو ګريوانونو باندې راواچوي ) نو دوى خپل مضبوط تِهبندونه ( لنګونه او څادرونه) اُوشلول او په هغې سره يې خپل مخونه پټ کړل .

(۱) مجمع الزوائد ومنبع الفوائد بَابُ الْخُرُوجِ إِلَى الْعِيدِ رقم الحديث ۳۲۲۱ ، كنز العمال كتاب النكاح الباب السادس في ترهيبات وترغيبات تختص بالنساء رقم الحديث ۴۵۰۶۲ ، معارف القرآن سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳ ، القول المبسور في تسهيل لباب السور لمولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله .

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ {وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوبِهِنَّ} رقم الحديث ۴۷۵۸ ، سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي قَوْلِهِ {وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوبِهِنَّ} رقم الحديث ۴۱۰۲ .

۲ . په يو بل حديث کې دي ، حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنها فرمايي :

لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الآيَةُ: {وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ} أَخَذْنَ أُزُرَهُنَّ فَشَقَّقْنَهَا مِنْ قِبَلِ الحَوَاشِيْ فَاخْتَمَرْنَ بِهَا .(۱)

کله چې دا آيت (وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ) نازل شو نو دوی خپل تِهبندونه راواخيستل ، د غاړو طرف نه يې اُوشلول ، او په هغې باندې يې خپل مخونه او خپلې سينې پټې کړې .

حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په " فتح الباري " کې د " فَاخْتَمَرْنَ " ترجمه داسې کړې :

أَيْ غَطَّيْنَ وُجُوهَهُنَّ . دوی خپل مخونه پټ کړل .

او ددې طريقه داده چې غټ پړونې په سَر باندې واچوي بيا به يې د خي طرف نه په چَپ ( گس ) طرف باندې وَرواړوي چې په دې سره به يې سينې او مخ پټ شي .(۲)

**د مذکوره حديث نه معلومې شوې خبرې** : د بخاري شريف د مذکوره حديث نه دا صراحةً ثابته شوه چې کله د حِجاب آيت نازل شو نو صحابيانو ورنه دا معلومه کړه چې ددينه د مخ پټول مقصود دي نو ځکه يې خپل تِهبندونه اُوشلول او په هغې سره يې خپل مخونه پټ کړل چې د الله ﷻ په حُکم باندې عمل اوشي .

بله خبره ورنه دا هم معلومه شوه چې د زَنانه د پاره د پرَدو سرو نه پَرده کول او خپل مخ پټول په صحيح احاديثو کې ثابت دي ځکه خو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنها د اوّلني مهاجرو زَنانه وُ تعريف اوکړو .

بل دا چې دې صحابياتو چې د حِجاب د آيت نه د مخ پټول واخيستل نو دا به يې هم د

---

(۱) صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ القُرْآنِ بَابُ {وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ} رقم الحديث ۴۷۵۹ .

(۲) قَوْلُهُ : " فَاخْتَمَرْنَ " أَيْ غَطَّيْنَ وُجُوهَهُنَّ . وَصِفَةُ ذٰلِكَ أَنْ تَضَعَ الخِمَارَ عَلَىٰ رَأْسِهَا وَتَرْمِيَهُ مِنَ الجَانِبِ الأَيْمَنِ عَلَى العَاتِقِ الأَيْسَرِ وَهُوَ التَّقَنُّعُ . قَالَ الفَرَّاءُ : كَانُوا فِي الجَاهِلِيَّةِ تُسْدِلُ المَرْأَةُ خِمَارَهَا مِنْ وَرَائِهَا وَتَكْشِفُ مَا قُدَّامَهَا فَأُمِرْنَ بِالإِسْتِتَارِ . فتح الباري شرح صحيح البخاري لابن حجر العسقلاني الشافعي ج ۸ ص ۴۹۰ (قَوْلُهُ بَابُ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ) في تشريح حديث ۴۷۲۹ .

نبي عليه السلام نه معلوم کړې وي ؛ ځکه نبي عليه السلام هلته موجود ؤ ، دوی به ورنه د دِين د مُشکلو مسئلو پوښتنه کوله ، نو دې صحابياتو چې د آيت تفسير د مخ په پټولو سره کړی نو دا به يې د ځان نه نه وي کړی بلکه د پيغمبر عليه السلام نه به يې پرې ځان پوهه کړې وي . (۱)

۳ . حضرت صفيه بنت شيبة فرمايي چې مونږ د حضرت عائشې رضي الله عنها سره ناستې وو، مونږ د هغې د وړاندې د قريشو د ښځو فضيلت ذکر کړو ، نو هغې اوفرمايل :

يقينًا چې د قريشو ښځو د پاره فضيلت شته خو قسَم په الله ما د انصارو د ښځو نه زياتې د الله ﷻ په کتاب باندې تصديق کوونکې او ايمان لرونکې ښځې نورې ندي ليدلي ؛ ځکه کله چې دا آيت ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ﴾ نازل شو د دوی سړي چې دوی ته ورغلل او دوی ته يې دا آيت تلاوت کړو نو په دوئ کې هره ښځه پاځيده او پَرده يې اوکړه ، صبا سهر چې مانځه ته راغلی نو د ټولو په سَرونو باندې لوپټې وی او خپل مخونه يې پټ کړي وو . (۲)

---

(۱) هٰذَا الحَدِيثُ الصَّحِيحُ صَرِيحٌ فِي أَنَّ النِّسَاءَ الصَّحَابِيَّاتِ المَذْكُورَاتِ فِيهِ فَهِمْنَ أَنَّ مَعْنَى قَوْلِهِ تَعَالَى : ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ﴾ يَقْتَضِي سِتْرَ وُجُوهِهِنَّ ، وَأَنَّهُنَّ شَقَقْنَ أُزُرَهُنَّ فَاخْتَمَرْنَ ، أَيْ: سَتَرْنَ وُجُوهَهُنَّ بِهَا امْتِثَالًا لِأَمْرِ اللهِ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى : ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ﴾ اَلْمُقْتَضِي سَتْرَ وُجُوهِهِنَّ. وَبِهٰذَا يَتَحَقَّقُ الْمُنْصِفُ أَنَّ احْتِجَابَ الْمَرْأَةِ عَنِ الرِّجَالِ وَسَتْرَهَا وَجْهَهَا عَنْهُمْ ثَابِتٌ فِي السُّنَّةِ الصَّحِيحَةِ الْمُفَسِّرَةِ لِكِتَابِ اللهِ تَعَالَى. وَقَدْ أَثْنَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَلَى تِلْكَ النِّسَاءِ بِمُسَارَعَتِهِنَّ لِامْتِثَالِ أَوَامِرِ اللهِ فِي كِتَابِهِ ، وَمَعْلُومٌ أَنَّهُنَّ مَا فَهِمْنَ سَتْرَ الْوُجُوهِ مِنْ قَوْلِهِ : ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ﴾ إِلَّا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَنَّهُ مَوْجُودٌ وَهُنَّ يَسْأَلْنَهُ عَنْ كُلِّ مَا أَشْكَلَ عَلَيْهِنَّ فِي دِينِهِنَّ ، وَاللهُ جَلَّ وَعَلَا يَقُولُ : ﴿ وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ ﴾ فَلَا يُمْكِنُ أَنْ يُفَسِّرْنَهَا مِنْ تِلْقَاءِ أَنْفُسِهِنَّ . اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج ٦ ص ٢٥٠ سورة الاحزاب في تفسير آية ٥٣ .

(۲) وَلِابْنِ أَبِي حَاتِمٍ مِنْ طَرِيقِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُثْمَانَ بْنِ خثيم عَنْ صَفِيَّةَ مَا يُوَضِّحُ ذٰلِكَ وَلَفْظُهُ :ذَكَرْنَا عِنْدَ عَائِشَةَ رضي الله عنها نِسَاءَ قُرَيْشٍ وَفَضْلَهُنَّ . فَقَالَتْ إِنَّ نِسَاءَ قُرَيْشٍ لَفُضَلَاءُ وَلٰكِنِّي وَاللهِ مَا رَأَيْتُ ←←←←

علماؤ لیکلي چې حضرت عائشة رضي الله عنها باوجود د دینه چې لویه عالمه او پوهه وه خو بیا یې هم د اَنصارو زَنانه وُ صفت بیان کړو دا غټ دلیل دَدې دی چې اَنصارو زَنانه وُ د مذکوره آیت نه د مخ پټولو لزوم معلوم کړې وُ ، دا ځکه چې دوی د قرآن کریم تصدیق کولو او په دې باندې یې ایمان لرلو.

ددې حدیث نه صراحةً دا هم ثابته شوه چې د زَنانه وُ د پاره د پرَدو سرو نه مخ پټول د قرآن کریم تصدیق کول او په دې باندې ایمان راوړل دي.

اوس په هغه خلقو باندې تعجّب (او اَفسوس) دی چې هغوی وایي "چې په قرآن کریم او احادیثو کې د ښځو د پاره د پرَدو سرو نه د مخ پټولو تذکره نشته " حالانکه دې صحابیاتو په قرآن کریم باندې عمل کولو سره سمدستي خپل مخونه د پرَدو سرو نه پټ کړل، دا غټ او صریح دلیل دی په دې باندې چې د ټولو زَنانه وُ د پاره د پرَدو سړو د وړاندې خپل مخونه پټول لازمي دي. (۱)

←←←← أَفْضَلَ مِنْ نِسَاءِ الْأَنْصَارِ أَشَدَّ تَصْدِيقًا بِكِتَابِ اللهِ وَلَا إِيمَانًا بِالتَّنْزِيلِ لَقَدْ أُنْزِلَتْ سُورَةُ النُّورِ ﴿وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ﴾ فَانْقَلَبَ رِجَالُهُنَّ إِلَيْهِنَّ يَتْلُونَ عَلَيْهِنَّ مَا أُنْزِلَ فِيهَا مَا مِنْهُنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا قَامَتْ إِلَى مِرْطِهَا فَأَصْبَحْنَ يُصَلِّينَ الصُّبْحَ مُعْتَجِرَاتٍ كَأَنَّ عَلَى رُؤُوسِهِنَّ الْغِرْبَانَ. فتح الباري شرح صحيح البخاري لابن حجر العسقلاني الشافعي ج ۸ ص ۴۹۰ (قَوْلُهُ بَابُ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ).

(۱) فَتَرَى عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مَعَ عِلْمِهَا وَفَهْمِهَا وَتُقَاهَا أَثْنَتْ عَلَيْهِنَّ هٰذَا الثَّنَاءَ الْعَظِيمَ، وَصَرَّحَتْ بِأَنَّهَا مَا رَأَتْ أَشَدَّ مِنْهُنَّ تَصْدِيقًا بِكِتَابِ اللهِ، وَلَا إِيمَانًا بِالتَّنْزِيلِ. وَهُوَ دَلِيلٌ وَاضِحٌ عَلَى أَنَّ فَهْمَهُنَّ لُزُومَ سَتْرِ الْوُجُوهِ مِنْ قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ﴾ مِنْ تَصْدِيقِهِنَّ بِكِتَابِ اللهِ وَ إِيمَانِهِنَّ بِتَنْزِيلِهِ، وَهُوَ صَرِيحٌ فِي أَنَّ احْتِجَابَ النِّسَاءِ عَنِ الرِّجَالِ وَسِتْرَهُنَّ وُجُوهَهُنَّ تَصْدِيقٌ بِكِتَابِ اللهِ وَ إِيمَانٌ بِتَنْزِيلِهِ، كَمَا تَرَى. فَالْعَجَبُ كُلُّ الْعَجَبِ مِمَّنْ يَدَّعِي مِنَ الْمُنْتَسِبِينَ لِلْعِلْمِ أَنَّهُ لَمْ يَرِدْ فِي الْكِتَابِ وَلَا السُّنَّةِ مَا يَدُلُّ عَلَى سَتْرِ الْمَرْأَةِ وَجْهَهَا عَنِ الْأَجَانِبِ، مَعَ أَنَّ الصَّحَابِيَّاتِ فَعَلْنَ ذٰلِكَ مُمْتَثِلَاتٍ أَمْرَ اللهِ فِي كِتَابِهِ إِيمَانًا بِتَنْزِيلِهِ. وَمَعْنَى هٰذَا ثَابِتٌ فِي الصَّحِيحِ، كَمَا تَقَدَّمَ عَنِ الْبُخَارِيِّ. وَهٰذَا مِنْ أَعْظَمِ الْأَدِلَّةِ وَأَصْرَحِهَا فِي لُزُومِ الْحِجَابِ لِجَمِيعِ نِسَاءِ الْمُسْلِمِينَ، كَمَا تَرَى. اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج ٦ ص ۲۵۰ سورة الاحزاب في تفسير آية ۵۳. نضرة النعيم ج ۳ ص ۱۵۱۹ الحجاب ادلة وجوب الحجاب.

## د نبي علیه السلام بیبیانو به هم د پردې ډېر اهتمام کولو

د نبي علیه السلام بیبیانې اگر چې أُمَّهَاتُ الْمُؤمنین یعنی د مؤمنانو مورانې وی خو بیا به هم دوی د پَردې دیر اِهتمام کولو ، دا ځکه چې دوی به پَرده کول عبادت او دِین گنړل او په دې سره به یې د ثواب اُمید لرل .

## اُمّ سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به په کور کې هم لوي پړونې نه لرې کول

حضرت عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمایي :

كَانَتْ أُمُّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لَا تَضَعُ جِلْبَابَهَا عَنْهَا وَهِيَ فِي الْبَيْتِ ، طَلَبًا لِلْفَضْلِ . (۱)

حضرت اُمّ سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به په کور کې هم غټ پړونې نه لرې کول دا ځکه چې دې به په پَردې کولو سره د ثواب اُمید لرل .

## حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د دَروازې د سُوري نه کتل خو بهر نه راوتله

د بخاري شریف حدیث دی ، حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې کله نبي علیه السلام ته د حضرت زید بن حارثه ، حضرت جعفر ، او حضرت عبدالله بن رواحة رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د شهادت خبر ورکړې شو ( چې دوی په غزوه موته کې شهیدان شو ) نو نبي علیه السلام په مسجدِ نبوي کې ناست ؤ په مخ مبارک باندې د غم آثار ښکاره کیدل :

وَأَنَا أَطَّلِعُ مِنْ شَقِّ الْبَابِ . او ما دا هر څه د دَروازې د سُوري نه کتل .... (۲)

د دې حدیث نه معلومه شوه چې د حجاب حُکم نازلیدو نه پس د اَزواج مطهّرات معمول دا ؤ چې په کورونو کې به دننه پاتې کیدی ، بغیر ضرورته به بهَر نه راوتلې .

---

(۱) جامع الأصول في أحاديث الرسول ج ۱۰ ص ٦۴۷ رقم الحديث ۸۲۷۰ النوع السابع: في خُمُر النساء ومُروطهن ، الحجاب في الشرع والفطرة ص ۱٥٦ .

(۲) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ : لَمَّا جَاءَ قَتْلُ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ ، وَجَعْفَرٍ ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ رَوَاحَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ جَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْرَفُ فِيهِ الحُزْنُ ، وَأَنَا أَطَّلِعُ مِنْ شَقِّ البَابِ ..... صحيح البخاري كِتَابُ الجَنَائِزِ بَابُ مَا يُنْهَى مِنَ النَّوْحِ وَالبُكَاءِ وَالزَّجْرِ عَنْ ذَلِكَ رقم الحديث ۱۳۰٥ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۴۳۱۳ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۳۱٥٥ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۳٦۹٦۷ .

حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا داسې اونکړل چې بُرقعه يې اغوستې وی او بهر راوتلې وی بلکې په کور کې دننه موجود وه خو د دَروازې د سُوري نه يې دا هر څه کتل.

## حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به د پَردې په باره کې ډير اِحتياط کولو

حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به د پَردې په باره کې ډير اِحتياط کولو ، د هغې د اِحتياط اندازه به تاسو ته د بخاري شريف او مسلم شريف ددې حديث نه اُولږي :

حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې د حِجاب حکم نازليدو نه پس زما د رَضاعي پلار " ابوقُعَيس " ورور " اَفلح " د ماسره د ملاقات اجازت اُوغوښت ، ما ورته وويل :

لَا آذَنُ لَهُ حَتّٰى أَسْتَأْذِنَ فِيْهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

زه تر هغې پورې ده ته د راتلو اجازت نه ورکوم تر څو پورې چې زه دده په باره کې د نبي عليه السلام نه اجازت وانخلم .

ځکه ( حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ځان سره سوچ اوکړو چې ) ماته خو د افلح ورور ابوقعيس سِينه نده راکړی ( چې ګني د هغه ورور ته اجازت اوکړم ) بلکه ماته خو د ابوقعَيس بي بي سِينه راکړې ده (او اَفلح خو د هغې لېوَر دی) .

کله چې نبي عليه السلام ماته تشريف راوړو نو ما ورته وويل :

يَا رَسُوْلَ اللهِ ! إِنَّ أَفْلَحَ أَخَا أَبِي الْقُعَيْسِ اِسْتَأْذَنَ فَأَبَيْتُ أَنْ آذَنَ لَهُ حَتّٰى أَسْتَأْذِنَكَ .

اې د الله رسوله ! افلح چې د ابوقعيس ورور دی هغه د ماسره د ملاويدو اجازت اُوغوښت خو ما ورته د راتلو نه اِنکار اوکړو تردې چې د تاسو نه اجازت واخلم .

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : وَمَا مَنَعَكِ أَنْ تَأْذَنِيْ عَمُّكِ ؟

تا ولې خپل تره ته د راتلو اجازت ورنکړو ؟

ما ورته وويل : اې د الله رسوله ! ماته خو سړي سِينه نده راکړی بلکه ماته خو د ابوقعيس بي بي سِينه راکړې ده .

نبي عليه السلام اوفرمايل : الله ﷻ دې تا ښه کړي هغه ته اجازت ورکړه ځکه هغه ستا رضاعي تره دی .

حضرت عروه بن زبير رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د همدې د وجې به حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايل :

حَرِّمُوْا مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا تُحَرِّمُوْنَ مِنَ النَّسَبِ .

تاسو چې د نسب په وجه کومې رِشتې حرامې ګنړئ هغه د رضاعت په وجه هم حرامې او ګنړئ . (۱)

( يعنى لکه څرنګې چې زَنانه ؤ ته د خپل حقيقي ورور او حقيقي تره سره نکاح ناجائز ده نو همدغه شان ورته د رضاعي ورور او رضاعي تره سره هم نکاح ناجائز ده ) .

**فائده** : علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په " فتح الباري " کې د دې حديث په باره کې فرمايي :

فِيْهِ وُجُوْبُ احْتِجَابِ الْمَرْأَةِ مِنَ الرِّجَالِ الْأَجَانِبِ . (۲)

په دې حديث کې په دې خبره باندې دليل دی چې د ښځې د پاره د پَردو سړو نه پَرده واجب ده .

**عبرت** : محترمو مسلمانانو ! تاسو ديته سوچ اوکړئ چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به د پَردې په باره کې څومره کلک احتياط کولو ، اَفلح د دې رضاعي تره ؤ ځکه حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا چې ماشومه وه نو د اَفلح د ورور "ابوقعيس" بي بي ديته سِينه ورکړې وه ، خو چونکه ديته اول دا مسئله نه وه معلومه چې ګني د رضاعي تره نه پَرده نشته ، دې دا ګمان کولو چې ماته خو د ابوقعيس بي بي سِينه راکړې ده نو اَفلح خو د هغې لېوَر دی کيدې شي

---

(۱) عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ رَحِمَهُ اللهُ ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ : اِسْتَأْذَنَ عَلَيَّ أَفْلَحُ أَخُوْ أَبِي الْقُعَيْسِ بَعْدَ مَا أُنْزِلَ الحِجَابُ . فَقُلْتُ : لَا آذَنُ لَهُ حَتَّى أَسْتَأْذِنَ فِيْهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَإِنَّ أَخَاهُ أَبَا الْقُعَيْسِ لَيْسَ هُوَ أَرْضَعَنِيْ . وَلٰكِنْ أَرْضَعَتْنِي امْرَأَةُ أَبِي الْقُعَيْسِ ، فَدَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَقُلْتُ لَهُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! إِنَّ أَفْلَحَ أَخَا أَبِي الْقُعَيْسِ اسْتَأْذَنَ فَأَبَيْتُ أَنْ آذَنَ لَهُ حَتَّى أَسْتَأْذِنَكَ . فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « وَمَا مَنَعَكِ أَنْ تَأْذَنِيْ عَمُّكِ ؟ » . قُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! إِنَّ الرَّجُلَ لَيْسَ هُوَ أَرْضَعَنِيْ وَلٰكِنْ أَرْضَعَتْنِي امْرَأَةُ أَبِي الْقُعَيْسِ . فَقَالَ : « اِئْذَنِيْ لَهُ فَإِنَّهُ عَمُّكِ تَرِبَتْ يَمِيْنُكِ » قَالَ عُرْوَةُ رَحِمَهُ اللهُ : فَلِذٰلِكَ كَانَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تَقُوْلُ : « حَرِّمُوْا مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا تُحَرِّمُوْنَ مِنَ النَّسَبِ » . صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ قَوْلِهِ: (إِنْ تُبْدُوا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوهُ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ...) رقم الحديث ۴۷۹۶ ، و رقم الحديث ۶۱۵۶ كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « تَرِبَتْ يَمِينُكِ، وَعَقْرَى حَلْقَى » ، صحيح مسلم كِتَابُ الرَّضَاعِ بَابُ تَحْرِيمِ الرَّضَاعَةِ مِنْ مَاءِ الْفَحْلِ رقم ۵(۱۴۴۵) .

(۲) فتح الباري شرح صحيح البخاري ج ۹ ص ۱۵۲ قَوْلُهُ بَابُ لَبَنِ الْفَحْلِ في تشريح حديث ۵۱۰۳ .

دده نه پَرده ضروري وي نو ځکه يې هغه ته د راتلو اجازت ورنکړو ، خو چې کله يې د نبي عليه السلام نه پوښتنه اوکړه نو هغه ورته اوفرمايل : " افلح ستا رضاعي تره جوړيږي دده نه ستا پَرده ضروري نده " نو بيا يې ورته اجازت ورکړو .

## حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضرت صفوان رضي الله عنه نه خپل مخ پټ کړو

په بخاري شريف او مسلم شريف کې د اِفک واقعه پوره تفصيل سره ذکر ده ، په هغې کې دا هم دي چې حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د قافلې نه پاتې شوې وه ، په هغه ځای ناسته وه ، په ناسته اُوده شوې وه ، کله چې حضرت صفوان رضي الله عنه راغی او حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا يې اُوليده نو إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّآ إِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ يې وويل . حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې زه د هغه په دې إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّآ إِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ويلو سره راپاڅيدم :

... فَخَمَّرْتُ وَجْهِيْ بِجِلْبَابِيْ ، وَوَاللهِ مَا تَكَلَّمْنَا بِكَلِمَةٍ وَلَا سَمِعْتُ مِنْهُ كَلِمَةً غَيْرَ اسْتِرْجَاعِهِ .

پس ما خپل مخ په پړوني ( غټ څادر ) باندې پټ کړو ، په الله قسَم چې مونږ د يو بل سره هيڅ خبره نده کړې او ما د هغه نه د إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّآ إِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ويلو نه بغير بله هيڅ خبره نده اَوريدلې . (۱)

---

(۱) د اِفک پوره واقعه داده : قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا أَقْرَعَ بَيْنَ أَزْوَاجِهِ ، فَأَيَّتُهُنَّ خَرَجَ سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهُ . قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : فَأَقْرَعَ بَيْنَنَا فِيْ غَزْوَةٍ غَزَاهَا فَخَرَجَ فِيْهَا سَهْمِيْ . فَخَرَجْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا أُنْزِلَ الْحِجَابُ ، فَكُنْتُ أُحْمَلُ فِيْ هَوْدَجِيْ وَأُنْزَلُ فِيْهِ ، فَسِرْنَا حَتّٰى إِذَا فَرَغَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَتِهِ تِلْكَ وَقَفَلَ ، دَنَوْنَا مِنَ الْمَدِيْنَةِ قَافِلِيْنَ ، آذَنَ لَيْلَةً بِالرَّحِيْلِ ، فَقُمْتُ حِيْنَ آذَنُوْا بِالرَّحِيْلِ ، فَمَشَيْتُ حَتّٰى جَاوَزْتُ الْجَيْشَ ، فَلَمَّا قَضَيْتُ شَأْنِيْ أَقْبَلْتُ إِلٰى رَحْلِيْ ، فَلَمَسْتُ صَدْرِيْ ، فَإِذَا عِقْدٌ لِيْ مِنْ جَزْعِ ظَفَارِ قَدِ انْقَطَعَ . فَرَجَعْتُ فَالْتَمَسْتُ عِقْدِيْ فَحَبَسَنِي ابْتِغَاؤُهُ ، قَالَتْ : وَأَقْبَلَ الرَّهْطُ الَّذِيْنَ كَانُوْا يُرَحِّلُوْنِيْ ، فَاحْتَمَلُوْا هَوْدَجِيْ فَرَحَلُوْهُ عَلٰى بَعِيْرِيَ الَّذِيْ كُنْتُ أَرْكَبُ عَلَيْهِ ، وَهُمْ يَحْسِبُوْنَ أَنِّيْ فِيْهِ ، وَكَانَ النِّسَاءُ إِذْ ذَاكَ خِفَافًا لَمْ يَهْبُلْنَ ، وَلَمْ يَغْشَهُنَّ اللَّحْمُ ، إِنَّمَا يَأْكُلْنَ الْعُلْقَةَ مِنَ الطَّعَامِ ، فَلَمْ يَسْتَنْكِرِ الْقَوْمُ خِفَّةَ الْهَوْدَجِ حِيْنَ رَفَعُوْهُ وَحَمَلُوْهُ ، وَكُنْتُ جَارِيَةً حَدِيْثَةَ السِّنِّ ، فَبَعَثُوا الْجَمَلَ فَسَارُوْا ، وَوَجَدْتُ عِقْدِيْ بَعْدَ مَا اسْتَمَرَّ الْجَيْشُ ، فَجِئْتُ مَنَازِلَهُمْ وَلَيْسَ بِهَا مِنْهُمْ دَاعٍ وَلَا مُجِيْبٌ ، فَتَيَمَّمْتُ مَنْزِلِيَ الَّذِيْ كُنْتُ بِهِ . ←←←←←←

**فائده** : ددې حدیث نه معلومه شوه چې اُمّهاتُ المؤمنین به د پَردو سره د ورانديٖ خپل مخ نه ښکاره کول، او دا حدیث په دې خبره باندې دلیل دی چې د ښځې د پاره د پَردو سره نه مخ پټول واجب دي. (۱)

## حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا به چې سړو ته د مسئلې جواب ورکولو نو په مینځ کې به یې پَرده راښکله

د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه به چې صحابه کرامو د څه مسئلې تپوس کولو نو په مینځ کې به یې پَرده راښکله، بیا به یې جواب ورکول. (۲)

---

←←← وَظَنَنْتُ أَنَّهُمْ سَيَفْقِدُونِي فَيَرْجِعُونَ إِلَيَّ، فَبَيْنَا أَنَا جَالِسَةٌ فِي مَنْزِلِي، غَلَبَتْنِي عَيْنِي فَنِمْتُ، وَكَانَ صَفْوَانُ بْنُ الْمُعَطَّلِ السُّلَمِيُّ ثُمَّ الذَّكْوَانِيُّ مِنْ وَرَاءِ الْجَيْشِ، فَأَصْبَحَ عِنْدَ مَنْزِلِي، فَرَأَى سَوَادَ إِنْسَانٍ نَائِمٍ فَعَرَفَنِي حِينَ رَآنِي، وَكَانَ رَآنِي قَبْلَ الْحِجَابِ، فَاسْتَيْقَظْتُ بِاسْتِرْجَاعِهِ حِينَ عَرَفَنِي، فَخَمَّرْتُ وَجْهِي بِجِلْبَابِي، وَوَاللَّهِ مَا تَكَلَّمْنَا بِكَلِمَةٍ، وَلَا سَمِعْتُ مِنْهُ كَلِمَةً غَيْرَ اسْتِرْجَاعِهِ، وَهَوَى حَتَّى أَنَاخَ رَاحِلَتَهُ، فَوَطِئَ عَلَى يَدِهَا، فَقُمْتُ إِلَيْهَا فَرَكِبْتُهَا، فَانْطَلَقَ يَقُودُ بِي الرَّاحِلَةَ حَتَّى أَتَيْنَا الْجَيْشَ مُوغِرِينَ فِي نَحْرِ الظَّهِيرَةِ وَهُمْ نُزُولٌ، قَالَتْ: فَهَلَكَ مَنْ هَلَكَ، وَكَانَ الَّذِي تَوَلَّى كِبْرَ الْإِفْكِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ .... صحیح البخاري كِتَابُ الْمَغَازِي بَابُ حَدِيثِ الْإِفْكِ رقم الحديث ۴۱۴۱ ، ورقم الحديث ۴۷۵۰ كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ {لَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بِأَنْفُسِهِمْ خَيْرًا} ، صحيح مسلم كتاب التَّوْبَةِ بَابٌ فِي حَدِيثِ الْإِفْكِ وَقَبُولِ تَوْبَةِ الْقَاذِفِ رقم الحديث ۵۶(۲۷۷۰) .

(۱) قال الشيخ عبد العزيز بن خلف رَحِمَهُ اللَّهُ: وهذا أيضًا من أدلة الوجوب لتخميرها وجهها بالجلباب، لأنه لم يَرِدْ أنّ سترة خاصٌّ بهنّ بأيّ لفظ في القرآن ولا في السنة، ولأنّ الحجابَ غيرُ الإدناء، وهو ظاهر. نظرات في حجاب المرأة المسلمة ص ۹۶ . عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۴۳ .

قال صفيّ الرحمن المباركفوري رَحِمَهُ اللَّهُ: فهٰذا الحديث نصّ في شمول الحجاب للوجه، و يفيد أنّ الحجاب يمنع الرائي من معرفة المرأة بوجهها، لكون الوجه مستورًا تمام الستر. ابراز الحق ص ۴۹ .

وهٰذا يدلّ على أنّ تغطيةَ الوجه عامةٌ لجميع النساء، لانه لم يرِدْ أنّ ذلك خاصٌّ بها ولا غيرها. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۱۷۷ .

(۲) عن يزيد بن بابنوس قال: ذهبتُ أنا وصاحبٌ لي إلى عائشةَ رضي الله عنها فاستأذنا عليها، فألقت إلينا وسادةً، وجلبت إليها الحجاب، فقال صاحبي: ما تقولين في العراك.... عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۴۴ .

يو ځل يو کس ورته څه وويل نو دې ورته وويل :
وَأَنْتَ إِذَا أَرَدْتَ فَاجْلِسْ مِنْ وَرَاءِ الْحِجَابِ فَسَلْنِيْ عَمَّا أَحْبَبْتَ .
که ستا د تپوس کولو اِراده وي نو د پَردې شاته کينه ، بيا دې چې څه خوښه وي پوښتنه اوکړه . (۱)
ازواجِ مطهّرات که به په کور کې ناستې وې يا به چيرته تللې نو د پَردې به يې پوره اهتمام کولو . (۲)

## حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د قبر نه هم حياء ورتلله

حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي :
كُنْتُ أَدْخُلُ بَيْتِيَ الَّذِيْ دُفِنَ فِيْهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِيْ فَأَضَعُ ثَوْبِيْ وَأَقُوْلُ إِنَّمَا هُوَ زَوْجِيْ وَأَبِيْ . فَلَمَّا دُفِنَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَعَهُمْ فَوَاللهِ مَا دَخَلْتُهُ إِلَّا وَأَنَا مَشْدُوْدَةٌ عَلَيَّ ثِيَابِيْ ، حَيَاءً مِنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ .

زما په دې کوم کور کې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او زما پلار (ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) دَفن شوي زه به چې ديته داخليدم نو ما به خپلې د پَردې کپړې ايخودې او ما به د ځان سره (په زړه کې) ويل چې (پَرده ځکه ضروري نده چې په دې کور کې) يو زما خاوند او بل مې پلار دفن دی ، خو چې کله حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د دوی سره دَفن شو نو قسَم په الله چې زه

(۱) عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : إِنَّمَا فَاقَنَا عُرْوَةُ بِدُخُوْلِهِ عَلَيْكِ كُلَّمَا أَرَادَ . قَالَتْ : وَأَنْتَ إِذَا أَرَدْتَ فَاجْلِسْ مِنْ وَرَاءِ الْحِجَابِ فَسَلْنِيْ عَمَّا أَحْبَبْتَ فَإِنَّا لَمْ نَجِدْ أَحَدًا بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْصَلَ لَنَا مِنْ أَبِيْكَ . [وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَحْنِيْ عَلَيْكُنَّ إِلَّا الصَّادِقُ الْبَارُّ وَهُوَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ]. الطبقات الكبرى ج ۸ ص ۱۷۰ ذِكْرُ حَجِّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَزْوَاجِهِ . طبع دار الكتب العلمية بيروت

(۲) عَنْ أُمِّ سِنَانٍ الْأَسْلَمِيَّةِ قَالَتْ : لَمَّا نَزَلْنَا الْمَدِيْنَةَ لَمْ نَدْخُلْ مَنَازِلَنَا حَتّٰى دَخَلْنَا مَعَ صَفِيَّةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مَنْزِلَهَا . وَسَمِعَ بِهَا نِسَاءُ الْمُهَاجِرِيْنَ وَالْأَنْصَارِ فَدَخَلْنَ عَلَيْهَا مُتَنَكِّرَاتٍ فَرَأَيْتُ أَرْبَعًا مِنْ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَنَقِّبَاتٍ : زَيْنَبَ بِنْتَ جَحْشٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وَحَفْصَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وَعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وَجُوَيْرِيَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ...... الطبقات الكبرى ج ۸ ص ۱۰۰ صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ .

اوس کله هم دې کور ته داخله شوې یم، نو ځان مې په کپړو کې راتاؤ کړې وي ځکه چې د حضرت عُمر رضي الله عنه نه حياء راځي. (۱)

سبحان الله. حضرت عائشې رضي الله عنها د پردې دومره اِهتمام کولو چې د مړي د قبر نه یې هم حياء کوله ليکن نن صبا ښځې د ژوندو سړو نه هم حياء نه کوي ښکاره مخ او بې پردې په بازارونو کې ګرځي.

علامه طيبي رحمه الله ليکلي: ددې حديث نه دا معلومه شوه لکه څرنګې چې د يو چا په ژوند کې د هغه اِحترام په کار دی نو همدغه شان د هغه د مرګ نه پس هم د هغه احترام په کار دی. (۲)

## د معمولي شبهې په وجه نبي عليه السلام احتياطا حضرت سودة رضي الله عنها ته د پردې حکم اوکړو

په بخاري شريف کې دا واقعه تفصيلاً ذکر ده، زه یې درته په خپلو الفاظو کې خلاصه رانقل کوم:

د نبي عليه السلام په بيبيانو کې يوه بي بي حضرت سَودة رضي الله عنها هم وه، ددې د پلار

(۱) مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۵٦٦۰، مشكوة المصابيح كتاب الجَنَائِز بَاب زِيَارَة القُبُور الفَصْل الثَّالِث رقم الحديث ۱۷۷۱(۱۰)، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۴۴۰۲ وقال الحاكم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. مجمع الزوائد كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الحَيَاءِ وَالنَّهْيِ عَنِ المُلَاحَاةِ رقم الحديث ۱۲۷۰۴، ورقم الحديث ۱۴۲۷۴ كِتَابُ عَلَامَاتِ النُّبُوَّةِ بَابٌ فِي وَدَاعِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

(۲) قَالَ الطِّيبِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: فِيهِ أَنَّ احْتِرَامَ المَيِّتِ كَاحْتِرَامِهِ حَيًّا. وَفِي شَرْحِ الصُّدُورِ لِلسُّيُوطِيِّ أَخْرَجَ ابْنُ أَبِي شَيْبَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الصَّحَابِيِّ رضي الله عنه قَالَ: لَأَنْ أَطَأَ عَلَى جَمْرَةٍ أَوْ عَلَى حَدِّ سَيْفٍ حَتَّى تُخْطَفَ رِجْلِي أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَمْشِيَ عَلَى قَبْرِ رَجُلٍ، وَمَا أُبَالِي أَفِي القُبُورِ قَضَيْتُ حَاجَتِي أَيْ مِنَ البَوْلِ وَالغَائِطِ أَمْ فِي السُّوقِ بَيْنَ ظَهْرَانَيْهِ وَالنَّاسُ يَنْظُرُونَ. وَأَخْرَجَ ابْنُ أَبِي الدُّنْيَا فِي كِتَابِ القُبُورِ عَنْ سُلَيْمِ بْنِ عَفْرَاكَةَ مَرَّ عَلَى مَقْبَرَةٍ هُوَ حَاقِنٌ قَدْ غَلَبَهُ البَوْلُ. فَقِيلَ لَهُ: لَوْ نَزَلْتَ فَبُلْتَ. قَالَ: سُبْحَانَ اللهِ، وَاللهِ إِنِّي لَأَسْتَحْيِي مِنَ الأَمْوَاتِ كَمَا أَسْتَحْيِي مِنَ الأَحْيَاءِ. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ۴ ص ۱۲٦۰ في شرح حديث ۱۷۷۱.

نوم " زَمعَه " ؤ ، د زَمعه يوه وينځه وه ، ددې وينځې سره عُتبَه زِنا اوكړه ، ددې وينځې حمَل (ماشوم) په ګېډه شو ، عُتبه خپل ورور " حضرت سعد بن ابي وقاص ﷺ " ته وويل : چې ددې وينځې بچې د ما نه دى (يعنى زما ځوي دى ؛ ځكه ما ورسره زِنا كړې) . بيا عُتبه مړ شو .

كله چې دا ماشوم پيدا شو نو په دې باندې د حضرت سعدبن ابي وقاص ﷺ او د زَمعه د ځوي " عَبد " په مينځ كې جګړه پيدا شوه ، حضرت سعد ﷺ ويل چې دا زما وراره دى ؛ ځكه دا حمل د عُتبه نه دى ، او عبد ويل چې دا وينځه زما د پلار وه نو دا بچې د هغه دى . دواړو دا ماشوم رسولُ الله ﷺ ته راوړو .

حضرت سعد بن ابي وقاص ﷺ نبي عليه السلام ته وويل : دا ماشوم زما وراره دى ؛ ځكه ماته خپل ورور " عُتبه " ويلي وو چې دا زما د نُطفي نه پيدا شوى .

عبد بن زمعه وويل : اې د الله رسوله ! دا زما ورور دى ځكه دا زما د پلار د وينځې نه پيدا شوى .

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم دې ماشوم ته اوكتل نو اګر چې دده شكل د عُتبه سره يو شان ؤ (ځكه هغه دې وينځې سره زِنا كړې وه) خو بيا هم نبي عليه السلام قانوني فيصله اوكړه او عبدبن زمعه ته يې وويل ؛

اې عبد بن زَمعه ! دا ماشوم ستا ورور شو ؛ ځكه دا وينځه ستا د پلار وه نو بچې به هم د هغه وي .

نبي عليه السلام اوفرمايل ، اَلوَلَدُ لِلفِرَاشِ وَلِلعَاهِرِ الحَجَرُ .

بچې به د هغه چا وي چې دا وينځه د چا ماتَحت وي ، او د زِناكار د پاره په كاڼړو باندې سَنګسار كول دي .

اوس دا ماشوم د حضرت سَودة ﵂ هم ورور شو ؛ ځكه حضرت سَودة ﵂ هم د زَمعه لور وه ، خو چونكه ددې ماشوم شكل و شباهت د عُتبه په شان ؤ نو رسولُ الله صلى الله عليه وسلم حضرت سَودة ﵂ ته اِحتياطًا اوفرمايل ؛

اِحتَجِبِيْ مِنهُ يَا سَودَةُ .

اې سَودة ! ته د دې هلک نه پَرده کوه (ځکه د ده شکل د عُتبه په شان دی) . (۱)

په مشکوة شریف کې ورسره دا هم دي (کله چې دا هلک غټ شو نو) حضرت سَودة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به د دې هلک نه دومره سخته پَرده کوله چې : فَمَا رَآهَا حَتَّى لَقِيَ اللهَ .

تر مرګه پورې دې هلک حضرت سودة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او نه لیدله . (۲)

**فائده** : د دې حدیث نه معلومه شوه چې نبي علیه السلام به د زَنانه ؤ د پَردې دومره کلک اهتمام کولو چې د معمولي شُبهې په وجه یې حضرت سَودة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د هغه هلک نه د پَردې حکم اوکړو .

بیا حضرت سودة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هم د هغه هلک نه دومره کلکه پَرده اوکړه چې په ټول عُمر کې دې هلک حضرت سَودة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او نه لیدله .

نو اوس تاسو په خپله سوچ اوکړئ چې د زَنانه د پاره د پَردې سرې نه د پَردې څومره اِهتمام په کار دی ؟

---

(۱) پوره حدیث داسې دی : عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : كَانَ عُتْبَةُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ عَهِدَ إِلَى أَخِيهِ سَعْدٍ : أَنْ يَقْبِضَ ابْنَ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ، وَقَالَ عُتْبَةُ : إِنَّهُ ابْنِي . فَلَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ فِي الْفَتْحِ ، أَخَذَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابْنَ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ . فَأَقْبَلَ بِهِ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، وَأَقْبَلَ مَعَهُ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ . فَقَالَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : هٰذَا ابْنُ أَخِي عَهِدَ إِلَيَّ أَنَّهُ ابْنُهُ . قَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ : يَا رَسُولَ اللهِ ! هٰذَا أَخِي هٰذَا ابْنُ زَمْعَةَ وُلِدَ عَلَى فِرَاشِهِ . فَنَظَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى ابْنِ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ ، فَإِذَا أَشْبَهُ النَّاسِ بِعُتْبَةَ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « هُوَ لَكَ هُوَ أَخُوكَ يَا عَبْدُ بْنَ زَمْعَةَ » مِنْ أَجْلِ أَنَّهُ وُلِدَ عَلَى فِرَاشِهِ . وَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « اِحْتَجِبِي مِنْهُ يَا سَوْدَةُ » لِمَا رَأَى مِنْ شَبَهِ عُتْبَةَ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ . قَالَ ابْنُ شِهَابٍ : قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ » . صحیح البخاري كِتَابُ الْمَغَازِي رقم الحدیث ۴۳۰۳ ، و رقم ۲۵۳۳ كِتَابُ الْعِتْقِ بَابُ أُمِّ الْوَلَدِ .

وفي روایة : عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ، قَالَتْ : اِخْتَصَمَ سَعْدٌ وَابْنُ زَمْعَةَ ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « هُوَ لَكَ يَا عَبْدُ بْنَ زَمْعَةَ ، اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ ، وَاحْتَجِبِي مِنْهُ يَا سَوْدَةُ » . زَادَ لَنَا قُتَيْبَةُ عَنِ اللَّيْثِ : « وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ » . صحیح البخاري كِتَابُ الْحُدُودِ بَابٌ : لِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ رقم الحدیث ۶۸۱۷ .

(۲) مشکوة المصابیح کتاب النکاح باب اللعان الفصل الأول رقم الحدیث ۳۳۱۲ (۹) .

# د نبي ﷺ په زمانه کې د حُرّې (آزادې ښځې) د پاره پَرده ضروري وه

د نبي عليه السلام په زَمانه کې د حُرّې يعنی آزادې ښځې د پاره پَرده ضروري وه ، بلکه د صحابه کرامو رضي الله عنهم په نزد به د آزادې ښځې علامه دا وه چې هغې به پَرده کوله . ددې آئنده واقعې نه به تاسو ته دا خبره پوره معلومه شي :

د غزوه خيبر په قيديانو کې حضرت صَفِيّة بنت حُيَيّ رضي الله عنها هم وه ، په دې جنګ کې ددې خاوند قتل شو ، نبي عليه السلام دا آزاده کړه ، بيا يې ورسره نکاح اوکړه .

نبي عليه السلام د خيبر او مدينې منوّرې په مينځ کې درې (۳) ورځې قيام اوکړو ، حضرت صَفِيّة رضي الله عنها هم ورسره وه .

په مسلمانانو کې بعضو خلقو ته پوره معلومه نه وه چې دا نبي عليه السلام آزاده کړې (اُمّ المؤمنين يې جوړه کړې) ، او که وينځه يې جوړه کړې ؟

بيا مسلمانانو په خپل مينځ کې سره وويل :

إِنْ حَجَبَهَا فَهِيَ مِنْ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ . وَإِنْ لَمْ يَحْجُبْهَا فَهِيَ مِمَّا مَلَكَتْ يَمِيْنُهُ .

که نبي عليه السلام دا په پَرده کې اُوساتله نو دا به بيا اُمّ المؤمنين وي (يعنی آزاده ښځه به وي او نبي ﷺ به ورسره نکاح کړې وي) ، او که دا يې په پَرده کې اُو نه ساتله نو دا به دوی وينځه جوړه کړې وي .

کله چې پيغمبر عليه السلام ددې ځای نه کوچ کولو نو په خپله سوَرلی باندې يې ددې د پاره شاته د کينولو ځای جوړ کړو وَمَدَّ الْحِجَابَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ النَّاسِ او ددې او د خلقو په مينځ کې يې پَرده راښکله .

(پس صحابه کرام پوهه شو چې دا نبي عليه السلام آزاده کړې او نکاح يې ورسره کړې ، نو اُمّ المؤمنين ده) . (۱)

(۱) عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه ، قَالَ: « أَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ خَيْبَرَ وَالْمَدِيْنَةِ ثَلَاثًا . يُبْنَى عَلَيْهِ بِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ . فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِيْنَ إِلَى وَلِيْمَتِهِ . فَمَا كَانَ فِيْهَا مِنْ خُبْزٍ وَلَا لَحْمٍ . أَمَرَ بِالْأَنْطَاعِ فَأُلْقِيَ فِيْهَا مِنَ التَّمْرِ وَالْأَقِطِ وَالسَّمْنِ . فَكَانَتْ وَلِيْمَتَهُ » فَقَالَ الْمُسْلِمُوْنَ: إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ . أَوْ مِمَّا مَلَكَتْ يَمِيْنُهُ . فَقَالُوْا : إِنْ حَجَبَهَا فَهِيَ مِنْ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ . وَإِنْ لَمْ يَحْجُبْهَا فَهِيَ مِمَّا مَلَكَتْ يَمِيْنُهُ . « فَلَمَّا ارْتَحَلَ وَطَّى لَهَا خَلْفَهُ . ←←←←

په يو روايت کې راځي :

... وَسَتَرَهَا رَسُوْلُ اللهِ وَحَمَلَهَا وَرَاءَهُ وَجَعَلَ رِدَاءَهُ عَلٰى ظَهْرِهَا وَوَجْهِهَا ...

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ددې پَرده اوکړه ، شاته يې په اُوښ باندې د ځان پسې کينوله ، او خپل څادر يې ددې په شا او مخ باندې واچول . (۱)

**فائده** : ددې واقعې نه دا معلومه شوه چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم په ذِهنونو کې دا خبره يقيني وه چې د حُرّې ( آزادې ) ښځې د پاره پَرده ضروري ده ځکه خو صحابه کرامو په خپله فيصله اوکړه چې که نبي ﷺ ددې د پَردې اِنتظام اوکړو نو دا به آزاده ښځه وي .

او دا هم ورنه معلومه شوه چې پَرده د اُمّهاتُ الـمُؤمنين سره خاص نه وه بلکه د ټولو آزادو ښځو د پاره لازم وه ځکه صحابه کرامو رضي الله عنهم ته په يقين سره دا معلومه وه چې که نبي عليه السلام د حضرت صَفِيّة رضي الله عنها پَرده اوکړه نو دا به ددې علامه ددې وي چې نبي عليه السلام دا آزاده کړې او نکاح يې ورسره کړې . (۲)

---

←←←← وَمَدَّ الْحِجَابَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ النَّاسِ » . صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ الْبِنَاءِ فِي السَّفَرِ رقم الحديث ۵۱۵۹ ، ورقم الحديث ۵۰۸۵ كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ اتِّخَاذِ السَّرَارِيِّ وَمَنْ أَعْتَقَ جَارِيَتَهُ ثُمَّ تَزَوَّجَهَا ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۳۷۸۶ ، سنن النسائي رقم الحديث ۳۳۸۲ .

(۱) .... فَلَمَّا قُرِّبَ الْبَعِيْرُ لِرَسُوْلِ اللهِ لِيَخْرُجَ وَضَعَ رَسُوْلُ اللهِ رِجْلَهُ لِصَفِيَّةَ رضي الله عنها لِتَضَعَ قَدَمَهَا عَلٰى فَخِذِهِ فَأَبَتْ وَوَضَعَتْ رُكْبَتَهَا عَلٰى فَخِذِهِ . وَسَتَرَهَا رَسُوْلُ اللهِ وَحَمَلَهَا وَرَاءَهُ وَجَعَلَ رِدَاءَهُ عَلٰى ظَهْرِهَا وَوَجْهِهَا ثُمَّ شَدَّهُ مِنْ تَحْتِ رِجْلِهَا وَتَحَمَّلَ بِهَا وَجَعَلَهَا بِمَنْزِلَةِ نِسَائِهِ . الطبقات الكبرى لابن سعد ذِكْرُ أَزْوَاجِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ ج ۸ ص ۹۶ طبع دار الكتب العلمية بيروت

(۲) وقال الشيخ أبو هشام الأنصاري في معرض رَدّه على مَن احتجّ بقصة صفية رضي الله عنها على أنّ الحجاب خاصٌ بنساء النبي صلى الله عليه وسلم : قلتُ : إنّ قصةَ صفيّة رضي الله عنها هذه لا تدلّ على اختصاص الحجاب بأمّهات المؤمنين ، بل على عكس من ذلك تدلّ على عمومه لهنّ وللنساء المسلمين ، لأنّ السياقَ يصرح تمام التصريح بانّ الصّحابة كانوا متردّدين في أمر صفية رضي الله عنها ألها مملوكة سُرية أو حرة متزوجة ؟ وألهم كانوا على جزم صارم بانّ النّبيّ صلى الله عليه وسلم لَو حجبَها فهي أمارة على أنّه أعتقها وتزوجها . ولم يكن جزمهم هذا إلّا لأنّهم كانوا يعرفون أنّ الحجابَ مختصٌ بالحرائر . وأنّه أكبر ميزة وأعظم فارق في معرفة الحرة من المملوكة ←←←

همدارنګې په دې واقعه کې دا هم ذکر شو چې رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک د حضرت صَفِیّة رضي الله عنها د پاره د پردې انتظام اوکړو او ددې ټول بدن یې پټ کړو ، پس دا واقعه غټ دلیل دی په دې باندې چې د آزادې مسلمانې ښځې د پاره د پردو سرو د وراندې د مخ او ټول بدن پټول واجب دي . که چیرته د پردې په باره کې نور نصوصِ شرعیه نه وې راغلي نو همدا یو حدیث هم د عمل د پاره کافي ؤ .(۱)

## نبي علیه السلام د حضرت عائشې رضي الله عنها د پاره پرده اوکړه

د بخاري شریف او مسلم شریف حدیث دی ، حضرت عائشة رضي الله عنها فرمایي :

رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتُرُنِيْ بِرِدَائِهِ . وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَى الحَبَشَةِ يَلْعَبُوْنَ فِي المَسْجِدِ ، حَتَّى أَكُوْنَ أَنَا الَّتِيْ أَسْأَمُ .

ما نبي علیه السلام اُولید چې ما له یې په خپل څادر سره پَرده کړې وه او ما د حبشو هغه خلقو ته کتل چې هغوی په جُمات کې ( د نېزه بازۍ ) لوبه کوله ، تردې چې زه پخپله ستړې شوم ( او واپس راغلم ) .

حضرت عائشة رضي الله عنها فرمایي چې تاسو پخپله اَندازه اُولږوئ چې ځوانه جینۍ د لوبو کتلو څومره شَوقي وي ؟ (یعنی زه دیر وخت ولاړه ووم نبي علیه السلام زما دومره لحاظ

←←← فإذا حَجَبَها فلابدّ وأنْ تكونَ حرّة، والحرّةُ لا تصلح أنْ تكون سُرِّيَّة فهي إذن من أزواجه وأمّهات المؤمنين . فالصّحابة رضي الله عنهم إنّما جعلوا الحجابَ أمارة على العِتق والتزويج، لأنّ صفية رضي الله عنها كانت سبيًا مملوكة، نعم لو كانتْ من الحرائر المؤمنات من قبل، ثم جعلوا الحجاب أمارة على كونها من أمّهات المؤمنين لكان في ذلك دليلٌ على اختصاصِ الحجاب بهنّ ، وأمّا إذ ليس فليس . عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۴۸

(۱) قال الشيخ عبد العزيز بن خلف حفظه الله : وهذا الحديثُ من أدلّة الوجوب أيضًا، لأنّه من فعله صلى الله عليه وسلم بيده الكريمة، فهو عملٌ كاملٌ، حيث إنّه صلى الله عليه وسلم ستر جسمها كلّه، وهذا هو الحقّ الذي يجب اتباعه، فهو القدوة الحسنة، ولو لم يكن دليلٌ مِن النّصوص الشّرعيّة على وجوب ستر المسلمة وجهها وجميع بدنها ومقاطع لحمها إلا هذا الحديث الصحيح، لكفى به موجبًا وموجها إلى أكمل الصفات . نظرات في حجاب المرأة المسلمة ص ۹۷ ، عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۴۷ .

ساتل چې تر آخره پورې ولاړوُ او زما پَرده يې کړې وه). (۱)

**فائده**: ددې حديث نه هم معلومه شوه چې د زنانه د پاره د پَردو سرو نه پَرده ضروري ده ځکه خو پيغمبر عليه السلام د حضرت عائشې رضي الله عنها د پاره په خپل څادر باندې پَرده کړې وه.

## نبي عليه السلام د حضرت صَفِيّة رضي الله عنها د پاره د اوښ نه غور ځيدو په وخت د پَردې اِهتمام اوکړو

د بخارې شريف حديث دی، حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې زه او ابوطلحه رضي الله عنه د نبي عليه السلام سره (په يو سفر کې) وو، د نبي عليه السلام سره اُمّ المؤمنين حضرت صَفِيّة رضي الله عنها هم په اُوښه باندې شاته ناسته وه، په لاره کې په يو ځای کې اُوښه اُوخويده، پيغمبر عليه السلام او حضرت صفيّة رضي الله عنها دواړه ورنه رااُوغورځيدل.

حضرت ابوطلحة رضي الله عنه د خپل اُوښ نه وَرټوپ کړل، رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورغی او ورته وې فرمايل:

يَا نَبِيَّ اللهِ! جَعَلَنِيَ اللهُ فِدَاءَكَ هَلْ أَصَابَكَ مِنْ شَيْءٍ؟

اې د الله پيغمبره! الله تعالی دې ما په تا باندې قربان کړي زخمي شوې خو نه يې؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل: لَا، وَلٰكِنْ عَلَيْكَ بِالْمَرْأَةِ.

نه (زخمي نه يم) خو د اول د ښځې (صفيّة رضي الله عنها) خبر واخله.

فَأَلْقَىٰ أَبُوْ طَلْحَةَ رضي الله عنه ثَوْبَهُ عَلَىٰ وَجْهِهِ. فَقَصَدَ قَصْدَهَا. فَأَلْقَىٰ ثَوْبَهُ عَلَيْهَا.

---

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ: «رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتُرُنِي بِرِدَائِهِ، وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَى الحَبَشَةِ يَلْعَبُوْنَ فِي المَسْجِدِ، حَتَّى أَكُوْنَ أَنَا الَّتِي أَسْأَمُ»، فَاقْدُرُوْا قَدْرَ الجَارِيَةِ الحَدِيْثَةِ السِّنِّ، الحَرِيْصَةِ عَلَى اللَّهْوِ. صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ نَظَرِ المَرْأَةِ إِلَى الحَبَشِ وَنَحْوِهِمْ مِنْ غَيْرِ رِيْبَةٍ رقم الحديث ۵۲۳۶، و رقم الحديث ۴۵۴ كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ أَصْحَابِ الحِرَابِ فِي المَسْجِدِ، صحيح مسلم كِتَابُ صَلَاةِ العِيْدَيْنِ بَابُ الرُّخْصَةِ فِي اللَّعِبِ الَّذِي لَا مَعْصِيَةَ فِيْهِ فِي أَيَّامِ العِيْدِ رقم الحديث ۱۷(۸۹۲)، و رقم الحديث ۱۸(۸۹۲).

نو ابوطلحه ﷺ په خپل مخ باندې کپړه واچوله، حضرت صفيّه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته ورغی او په هغې باندې يې هم کپړه واچوله. نو هغه راپاڅيده، بيا ابوطلحه ﷺ د دوی دواړو د پاره سورلي صحيح کړه، دوی وربانديې سواره شو، او روان شو ..... (۱)

**فائده** : ددې واقعې نه هم معلومه شوه چې نبي عليه السلام د حضرت صفيّة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د پَردې پوره اهتمام اوکړو، بيا ابوطلحة ﷺ د اُمّ المؤمنين د پَردې دومره کلک اِنتظام اوکړو چې اول يې په خپل مخ باندې څادر واچول، بيا يې په هغې باندې کپړه واچوله، بيا يې په پَرده کې په اُوښ باندې سوَره کړه.

## د حج په دَوران کې هم صحابياتو د پَردې اِهتمام کولو

۱ . حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي :

كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّوْنَ بِنَا، وَنَحْنُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْرِمَاتٌ. فَإِذَا حَاذَوْا بِنَا أَسْدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا عَلَى وَجْهِهَا، فَإِذَا جَاوَزُوْنَا كَشَفْنَاهُ. (۲)

---

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّهُ أَقْبَلَ هُوَ وَأَبُوْ طَلْحَةَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفِيَّةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مُرْدِفُهَا عَلَى رَاحِلَتِهِ. فَلَمَّا كَانُوْا بِبَعْضِ الطَّرِيْقِ عَثَرَتِ النَّاقَةُ. فَصُرِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمَرْأَةُ. وَإِنَّ أَبَا طَلْحَةَ اِقْتَحَمَ عَنْ بَعِيْرِهِ، فَأَتَى رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ هَلْ أَصَابَكَ مِنْ شَيْءٍ؟ قَالَ: « لَا. وَلٰكِنْ عَلَيْكَ بِالْمَرْأَةِ ». فَأَلْقَى أَبُوْ طَلْحَةَ ثَوْبَهُ عَلَى وَجْهِهِ، فَقَصَدَ قَصْدَهَا. فَأَلْقَى ثَوْبَهُ عَلَيْهَا. فَقَامَتِ الْمَرْأَةُ. فَشَدَّ لَهُمَا عَلَى رَاحِلَتِهِمَا فَرَكِبَا. فَسَارُوْا حَتَّى إِذَا كَانُوْا بِظَهْرِ الْمَدِيْنَةِ ـ أَوْ قَالَ أَشْرَفُوْا عَلَى الْمَدِيْنَةِ ـ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « آيِبُوْنَ تَائِبُوْنَ عَابِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ ». فَلَمْ يَزَلْ يَقُوْلُهَا حَتَّى دَخَلَ الْمَدِيْنَةَ. صحيح البخاري كِتَابُ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ بَابُ مَا يَقُوْلُ إِذَا رَجَعَ مِنَ الْغَزْوِ رقم الحديث ۳۰۸۶ ، و رقم الحديث ۶۱۸۵ كِتَابُ الْأَدَبِ بَابُ قَوْلِ الرَّجُلِ: جَعَلَنِي اللهُ فِدَاكَ . مجمع الزوائد باب ارداف المرأة رقم الحديث ۲۲۸۲ .

(۲) مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۴۰۲۱ ، سنن ابي داود كِتَابُ الْمَنَاسِكِ بَابٌ فِي الْمُحْرِمَةِ تُغَطِّي وَجْهَهَا رقم الحديث ۱۸۳۳ ، السنن الكبرى للبيهقي جِمَاعُ أَبْوَابِ الْإِحْرَامِ وَالتَّلْبِيَةِ بَابُ الْمُحْرِمَةِ تَلْبَسُ الثَّوْبَ مِنْ عَلُوٍ فَيَسْتُرُ وَجْهَهَا وَتُجَافِي عَنْهُ رقم الحديث ۹۰۵۱ ، مشكوة المصابيح باب مايجتنبه المحرم الفصل الثاني رقم الحديث ۲۶۹۰(۱۳)، شرح السنة للبغوي ج۷ ص ۲۴۰ .

(د حج په سفر کې) حاجيان به مونږ زَنانه ؤ سره نژدې تيريدل او مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د حج احرام تړلې ؤ (چونکه د احرام په حالت کې زَنانه د پاره د مخ ښکاره کول لازمي وي او بل طرف ته د حج په سفر کې پَرده هم ضروري وه نو زمونږ مخونه به ښکاره وو) کله به چې حاجيان د مونږ سره نژدې تيريدل نو مونږ به خپل غټ پړونې د سَر طرف نه په مخ باندې راځوړند کړو ، کله به چې دوی تير شو نو مونږ به مخونه ښکاره کړل .

**د مذکوره حديث تشريح** : نبي عليه السلام چې حج ته تللو نو خپلې بيبيانې يې هم د ځان سره روانې کړی ، ټولو احرام تړلې ؤ ، او په احرام کې لکه څرنګې چې د سړو د پاره سَر پټول منع دي نو همدغه شان د ښځو د پاره مخ پټول هم منع دي .

ليکن بل طرف ته پَرده هم ضروري وه چې پرَدي سړي د زَنانه ؤ مخونه اُو نه ګوري ، نو حضرت عائشة رضي الله عنها فرمايي چې مونږ به په اُوښانو باندې ناستې وو په تَندي باندې به مو لرګي ليږولي وو او مخونه به مو ښکاره وو ، خو چې کله به د پرَدو سړو قافله يا پرَدي سړي مخې ته راغلل نو مونږ به په دې لرګي باندې غټ څادر راواچول چې پَرده هم اوشي او څادر هم د مخ سره اُو نه لږي .

اوس هم د ښځو د پاره په احرام کې دا حکم دی چې د احرام په حالت کې به داسې طريقه کوي چې د پرَدو سړو نه يې مخ هم پټ وي او د مخ سره يې کپړه هم اُو نه لږي .

نن صبا ددې د پاره چَجَه داره ټوپۍ ملاويږي ، زَنانه د هغې د پاسه نِقاب اچوي ، په دې سره پَرده هم راځي او د مخ سره يې نِقاب هم نه لږي .

دا حديث په دې خبره باندې دليل دی چې د ښځې د پاره د پرَدو سړو د وړاندې مخ پټول واجب دي ځکه که دا واجب نه وی نو بيا دوی ولې د خپلو مخونو د پاسه غټ څادر راچول ؟ حالانکه د زَنانه د پاره د احرام په حالت کې مخ پټول منع دي .

که چيرته پَرده ضروري نه وی نو بيا په کار ده چې دوی د پرَدو سړو د وړاندې خپل مخونه ښکاره ساتلي وی .

دا حکم لکه څرنګې چې د اُمّهاتُ المؤمنين د پاره ؤ نو همدغه شان د ټولو زَنانه ؤ د پاره هم دی چې دوی به د احرام په حالت کې داسې طريقه کوي چې پرَدو سړو ته يې مخونه هم نه ښکاري او د مخ د پاسه يې څادر هم رانشي .

بهر حال حضرت عائشي رضي الله عنها او نورو بيبيانو به د پردې او مخ پټولو ډير اهتمام کولو . (۱)

۲ . د حضرت عُمر رضي الله عنه په دورِ خلافت کې چې کله حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه امّهاتُ المؤمنين د حج د پاره بوتللى نو د دوى د پردې يې پوره انتظام کړې وُ ، د سرو نه جدا يې روانې کړې وى ، او په هره موقع به يې د دوى د پردې لحاظ ساتل . (۲)

۳ . حضرت اَسماء بنت ابوبکر رضي الله عنها فرمايي :

كُنَّا نُغَطِّي وُجُوهَنَا مِنَ الرِّجَالِ، وَكُنَّا نَتَمَشَّطُ قَبْلَ ذٰلِكَ فِي الْإِحْرَامِ . (۳)

---

(۱) ففي قولها: « فإذا جاوزونا » تعني الركبان «سدلت إحدانا جلبابها على وجهها» دليلٌ على وجوب سترِ الوجه لأنّ المشروعَ في الإحرام كشفه. فلولا وجود مانع قوي من كشفه حينئذ لوجب بقاؤه مكشوفاً. وبيانُ ذلك أنّ كشفَ الوجه في الإحرام واجبٌ على النساء عند الأكثر من أهل العلم والواجب لا يعارضه إلّا ما هو واجبٌ. فلولا وجوب الاحتجاب وتغطية الوجه عن الأجانب ما ساغ ترك الواجب من كشفه حال الإحرام. وقد ثبت في الصحيحين وغيرها أنّ المرأة المحرمة تنهى عن النقاب والقفازين. رسالة الحجاب ص ۲۱ .

(۲) عَنْ أُمِّ مَعْبَدٍ بِنْتِ خَالِدِ بْنِ خُلَيْفٍ قَالَتْ: رَأَيْتُ عُثْمَانَ وَعَبْدَ الرَّحْمٰنِ رضي الله عنهما فِي خِلَافَةِ عُمَرَ رضي الله عنه حَجَّا بِنِسَاءِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَيْتُ عَلَى هَوَادِجِهِنَّ الطَّيَالِسَةَ الْخُضْرَ وَهُنَّ حِجْرَةٌ مِنَ النَّاسِ يَسِيْرُ أَمَامَهُنَّ ابْنُ عَفَّانَ رضي الله عنه عَلَى رَاحِلَتِهِ يَصِيْحُ إِذَا دَنَا مِنْهُنَّ أَحَدٌ. إِلَيْكَ إِلَيْكَ. وَابْنُ عَوْفٍ رضي الله عنه مِنْ وَرَائِهِنَّ يَفْعَلُ مِثْلَ ذٰلِكَ . فَنَزَلْنَ بِقُدَيْدٍ قَرِيْبًا مِنْ مَنْزِلِي اعْتَزَلْنَ النَّاسَ وَقَدْ سَتَرُوْا عَلَيْهِنَّ الشَّجَرَ مِنْ كُلِّ نَاحِيَةٍ . فَدَخَلْتُ عَلَيْهِنَّ وَهُنَّ ثَمَانٍ جَمِيْعًا.... الطبقات الكبرى لابن سعد ج ۸ ص ۱۶۹ ذِكْرُ حَجِّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَزْوَاجِهِ

وفي رواية : إِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضي الله عنه أَذِنَ لِأَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَجِّ فِي آخِرِ حَجَّةٍ حَجَّهَا وَبَعَثَ مَعَهُنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ وَعَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ رضي الله عنهما . قَالَ: كَانَ عُثْمَانُ يُنَادِيْ أَلَا لَا يَدْنُوْ إِلَيْهِنَّ أَحَدٌ وَلَا يَنْظُرْ إِلَيْهِنَّ أَحَدٌ . وَهُنَّ فِي الْهَوَادِجِ عَلَى الْإِبِلِ.... الطبقات الكبرى لابن سعد ج ۸ ص ۱۶۹ ذِكْرُ حَجِّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَزْوَاجِهِ .

(۳) المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۱۶۶۸ وقال الحاكم : هٰذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ، وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. صحيح ابن خزيمة كِتَابُ الْمَنَاسِكِ بَابُ إِبَاحَةِ تَغْطِيَةِ الْمُحْرِمَةِ وَجْهَهَا مِنَ الرِّجَالِ رقم الحديث ۲۶۹۰ ، نضرة النعيم ج ۴ ص ۱۵۲۶ الحجاب .

مونږ به د پَردو سرو نه خپل مخونه پټول او مونږ به ددینه مخکښ په احرام کښ سَرونه کومنزول.

٤ . حضرت فاطمة بنت مُنذر رحمها الله فرمايي :

كُنَّا نُخَمِّرُ وُجُوْهَنَا وَنَحْنُ مُحْرِمَاتٌ ، وَنَحْنُ مَعَ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيْقِ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا . (۱)

مونږ به په خپلو مخونو باندې (د چَچه داره ټوپۍ د پاسه) څادر راچول حالانکه مونږ به په احرام کښ وو او د حضرت أسماء بنت ابوبکر رضي الله عنها سره به وو.

**فائده** : دا دواړه احادیث هم په دې باندې دلیل دی چې د صحابه کرامو په زمانه کښ او د هغې نه روستو زمانه کښ به هم زَنانه وُ د پَردو سرو نه خپل مخونه پټول ، او په پَرده کښ د همدې مخ پټول مقصود دي . (۲)

---

(۱) موطا الإمام مالک كِتَابُ الْحَجِّ بَابُ تَخْمِيرِ الْمُحْرِمِ وَجْهَهُ رقم الحديث ١٦ .

(۲) وفي تعبير أسماء رضي الله عنها بصيغة الجمع في قولها: " كنا نغطي وجوهنا من الرجال " دليل على أنّ عمل النساء في زمن الصحابة رضي الله عنهم كان على تغطية الوجوه من الرجال الأجانب والله أعلم.

أما حديث فاطمة بنت المنذر فيفيد أنّ تغطية الوجه في الإحرام كان عامًا في النساء لا في زمن الصحابة فقط بل فيما بعدهم أيضًا. عودة الحجاب ج۳ ص ۳۵۲ .

قال صفي الرحمن المباركفوري رَحِمَهُ اللَّهُ : و هذا الحديث ايضًا صريح في شمول الحجاب للوجوه . بل و يفيد أن تغطية الوجوه كان هو المقصود بأمر الحجاب . و حكم هذا الحديث عام لجميع نساء المؤمنين ؛ فإنّ المراد بضمائر جمع المتكلم ليست أمهات المؤمنين فحسب كما يزعمه الزاعمون . إبراد الحق للمباركفوري ص ۴۹ ، إظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ١٦٥ .

# صحابیاتو به پوره پَرده کوله

که مونږ د احادیثو په ذخیره باندې نظر واچوو نو دا به راته معلومه شي چې صحابیاتو او د اول دَور زَنانهٔ به پوره پَرده کوله ، خپل مخونه به یې د پَردو سرو د وړاندې پټ وو ، دوی به پَرده عبادت او دِین گڼڕله ، بلکه دوی به چې په کورونو کې وی نو هم د ثواب حاصلولو په خاطر به یې پَرده کوله. (۱)

لکه حضرت اُمّ سَلَمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به په کور کې هم غټ پړونې نه لرې کول ؛ ځکه چې دې به په دې سره د ثواب حاصلولو اُمید لرل. (۲)

د یو څو صحابیاتو د پَردې واقعات درته ذکر کوم :

## د قمیص په لستوڼړي سره پَرده کول

د اَنصارو یوه زَنانه فرمایي چې زه په اُمّ المؤمنین " حضرت اُمّ سَلَمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا " باندې داخله شوم ، په دې وخت کې نبي علیه السلام راننوت ، غصه معلومیدو ،

فَاسْتَتَرْتُ بِكُمِّ دِرْعِيْ . پس ما د خپل قمیص په لستوڼړي سره ځان پټ کړو . (۳)

---

(۱) مَنْ نَظَرَ فِي الْأَحَادِيْثِ وَالْآثَارِ بَعْدَ فَرْضِ الْحِجَابِ وَجَدَ أَنَّ نِسَاءَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالصَّحَابِيَاتِ وَالتَّابِعِيَاتِ وَنِسَاءَ الصَّدْرِ الْأَوَّلِ عَلَى تَسَتُّرٍ دَائِمٍ ، يُغَطِّيْنَ وُجُوْهَهُنَّ فَضْلًا عَنْ غَيْرِ ذٰلِكَ مِنْ أَبْدَانِهِنَّ ، وَيَنْظُرْنَ إِلَى ذٰلِكَ عَلَى أَنَّهُ عِبَادَةٌ وَ دِيْنٌ . حَتّٰى كَانَ مِنْهُنَّ مَنْ يَتَتَبَّعْنَ فَضَائِلَ السَّتْرِ بَعْدَ مَا فَعَلْنَ وَاجِبَاتِهِ ، وَ يَحْتَسِبْنَ الْأَجْرَ بِالسَّتْرِ وَهُنَّ فِيْ بُيُوْتِهِنَّ . الحجاب فی الشرع والفطرة ص ۱۵۵ .

(۲) عَن عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قال: كَانَتْ أُمُّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لَا تَضَعُ جِلْبَابَهَا عَنْهَا وَهِيَ فِي الْبَيْتِ ، طَلَبًا لِلْفَضْلِ . جامع الاصول في احاديث الرسول ج ۱۰ ص ۶۲۷ رقم الحديث ۸۲۷۰ النوع السابع: في خُمُر النساء وموضوعها عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمایي چې ، حضرت اُمّ سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به په کور کې هم غټ پړونې نه لرې کول دا ځکه چې دې به په پَردې کولو سره د ثواب اُمید لرل.

(۳) عَنِ امْرَأَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ .... قَالَتْ: دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَدَخَلَ عَلَيْهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَأَنَّهُ غَضْبَانُ. فَاسْتَتَرْتُ بِكُمِّ دِرْعِيْ .... مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۶۵۲۷ ، و رقم الحديث ۲۷۳۵۱ . معرفة الصحابة لابي نعيم ج ۶ ص ۳۵۸۵ رقم الحديث ۸۰۸۱ .

# اُمِّ خَلَّاد رضي الله عنها د ځوي د شهادت په وخت هم په مخ باندې نقاب اچولې ؤ

ښځه به په هر حالت کې د پردې لحاظ ساتي ، تر دې چې د غم او مصیبت په وخت به هم د پردې اِهتمام کوي . په احادیثو کې دا واقعه ذکر ده : حضرت قیس بن شمّاس رضي الله عنه فرمایي :
یوه ښځه نبي علیه السلام ته راغله چې هغې ته اُمِّ خَلَّاد ویلې شوه ، په مخ باندې یې نقاب اچولې ؤ ، دې د نبي علیه السلام نه د خپل ځوي متعلق معلومات کولو ، د دې ځوي په یوه غزا کې شهید شوې ؤ . یو صحابي دې ته وویل : جِئْتِ تَسْأَلِيْنَ عَنِ ابْنِكِ وَأَنْتِ مُنْتَقِبَةٌ ؟
ته راغلې یې د خپل ځوي متعلق تپوس کوی حالانکه تا نقاب اچولې دی ؟ (یعنی مخ دې پټ کړې دی) .
هغې ورته وویل : إِنْ أُرْزَأْ اِبْنِيْ فَلَنْ أُرْزَأَ حَيَائِيْ.
که چیرته ماته د خپل ځوي په باره کې مصیبت رارسیدلې وي (او هغه شهید شوې وي) نو حیاء خو مې نده ختمه شوی . (لهذا زه د خپلې حیاء لحاظ ساتم) .
رسولُ الله صلی الله علیه وسلم ورته (د ځوي په باره کې) اوفرمایل :
اِبْنُكِ لَهُ أَجْرُ شَهِيْدَيْنِ. ستا د ځوي د پاره د دوه شهیدانو اَجر دی .
اُمّ خَلاد رضي الله عنها ورنه پوښتنه اوکړه : اې د الله رسوله ! زما د ځوي د پاره د دوه شهیدانو اَجر په څه وجه دی ؟ نبي علیه السلام ورته اوفرمایل :
ځکه هغه اهلِ کتابو شهید کړې دی . (۱)

(۱) عَنْ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ رضي الله عنه قَالَ : جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لَهَا أُمُّ خَلَّادٍ رضي الله عنها وَهِيَ مُنْتَقِبَةٌ تَسْأَلُ عَنِ ابْنٍ لَهَا وَهُوَ مَقْتُوْلٌ . فَقَالَ لَهَا بَعْضُ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : جِئْتِ تَسْأَلِيْنَ عَنِ ابْنِكِ وَأَنْتِ مُنْتَقِبَةٌ ؟ فَقَالَتْ : إِنْ أُرْزَأْ اِبْنِيْ فَلَنْ أُرْزَأَ حَيَائِيْ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : "اِبْنُكِ لَهُ أَجْرُ شَهِيْدَيْنِ" . قَالَتْ : وَلِمَ ذَاكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ ؟ قَالَ : "لِأَنَّهُ قَتَلَهُ أَهْلُ الْكِتَابِ . السنن الکبری للبیهقي كِتَابُ السِّيَرِ جِمَاعُ أَبْوَابِ السِّيَرِ بَابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ قِتَالِ الرُّوْمِ وَقِتَالِ الْيَهُوْدِ رقم الحدیث ۱۸۵۹۱ ، سنن ابي داؤد كِتَابُ الْجِهَادِ بَابُ فَضْلِ قِتَالِ الرُّوْمِ عَلَى غَيْرِهِمْ مِنَ الْأُمَمِ رقم الحدیث ۲۴۸۸ .

**په مذکوره واقعه کې د زَنانه ؤ د پاره عبرت** : په دې واقعه کې د زَنانه ؤ د پاره ډير لوي عبرت پروت دی چې د غم او مصيبت په وخت کې به هم د پَردې لحاظ ساتي.

ډيرې ښځې داسې دي چې په کور کې يې څه غم اوشي يا څه مصيبت وَراُورسي نو بيا چَغې او سُورې جورې کړي ، ګريوان اُوشلوي ، مخ او سَر وهي ، د خُلې نه کُفري الفاظ رااُوباسي ، او ځان بې پَردې کړي حالانکه د انسان امتحان د غم او ښادۍ په وخت اخيستلې شي " چې آيا دا د شرعي احکاماتو لحاظ ساتي او که نه؟ "

تاسو د اُمِّ خَلّاد رضي الله عنها غيرتي جواب ته اُوسوچ اوکړئ چې هغې اُوفرمايل : " که ځوي مې لاړ نو حياء خو مې نده تللی چې ځان بې پَردې کړم "

**د حياء اَهميت** : حياء خو د اِيمان حصه ده ، رسولُ الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

اَلْحَيَاءُ مِنَ الْإِيْمَانِ. حياء د اِيمان حصه ده. (۱)

چې تر څو پورې په انسان کې حياء وي نو اِيمان به هم وي ، او چې حياء لاړه شي نو اِيمان به څه پاتې شي؟

رسولُ الله ﷺ فرمايي : اَلْحَيَاءُ وَالْإِيْمَانُ قُرِنَا جَمِيْعًا ، فَإِذَا رُفِعَ أَحَدُهُمَا رُفِعَ الْآخَرُ. (۲)

حياء او اِيمان دواړه ملګري دي کله چې يو پورته شي نو بل هم ورسره پورته کيږي.

## د سختې بيمارۍ باوجود د ستر پټولو اهتمام

صحابياتو سره به د پَردې کولو او ستَر پټولو دومره اِهتمام ؤ چې د سختې بيمارۍ باوجود يې هم دا نه برداشت کول چې ستَر يې ښکاره شي.

---

(۱) صحيح مسلم كِتَابُ الإِيمَانَ بَابُ شُعَبِ الإِيمَانِ رقم الحديث ۵۹ (۳۶) ، صحيح البخاري رقم الحديث ۲۴، و رقم الحديث ۶۱۱۸.

په يو حديث کې راځي ، اَلْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الْإِيْمَانِ. حياء د ايمان شعبه (څانګه) ده. صحيح البخاري كِتَابُ الإِيمَانِ بَابُ أُمُورِ الإِيمَانِ رقم الحديث ۹. صحيح مسلم كِتَابُ الإِيمَانَ بَابُ شُعَبِ الإِيمَانِ رقم الحديث ۵۷ (۳۵).

(۲) المستدرک علی الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۵۸ وقال الحاكم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِهِمَا، فَقَدِ احْتَجَّا بِرُوَاتِهِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ بِهَذَا اللَّفْظِ. شعب الايمان رقم الحديث ۷۳۳۱ ، الادب المفرد مخرجا رقم الحديث ۱۳۱۳ ، مشكاة المصابيح رقم الحديث ۵۰۹۳(۲۶) ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۳۹۹۷.

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی : عطاء بن ابي رَباح رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې ماته ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا اوفرمايل :

أَلَا أُرِيكَ امْرَأَةً مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟ آيا زه تاته جنّتي ښځه اُوښايم؟

ما ورته وويل : آو . هغه راته وويل : دا (مخامخ) توره ښځه نبي عليه السلام ته راغله ، و ورته وې ويل : إِنِّي أُصْرَعُ، وَإِنِّي أَتَكَشَّفُ، فَادْعُ اللهَ لِي.

په ما باندې مِرګي راځي او زما ستَر ښکاره کيږي پس ته د الله ﷻ نه زما د پاره دُعا اوکړه (چې زما دا بيماري ختمه کړي) .

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : که ستا خوښه وي نو صبر اوکړه تاته به ددې په عِوض کې جنت ملاويږي ، او که ستا خوښه وي نو زه به د الله ﷻ نه دُعا اوغواړم تاته به ددې بيمارۍ نه نِجات درکړي .

هغې وويل : زه به (په دې مرض باندې) صبر اوکړم . بيا يې وويل :

إِنِّي أَتَكَشَّفُ، فَادْعُ اللهَ لِي أَنْ لَا أَتَكَشَّفَ.

د مِرګي راتلو په وخت (بې اِختياره) زما ستَر کلاويږي تاسو د الله ﷻ نه زما د پاره دُعا اوغواړئ چې په دې وخت کې زما ستَر نه کلاويږي .

نو نبي عليه السلام ديته دُعا اوکړه . (۱)

سبحان الله ، دې زَنانه د سختې بيمارۍ په وخت هم د پَردې او ستَر پټولو لحاظ ساتل څکه خو يې نبي ﷺ ته د دُعاؤ درخواست اوکړو چې په دې وخت کې هم زما ستَر ښکاره نشي .

(۱) عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ رَحِمَهُ اللهُ ، قَالَ: قَالَ لِي ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا : أَلَا أُرِيكَ امْرَأَةً مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟ قُلْتُ: بَلَى . قَالَ: هٰذِهِ الْمَرْأَةُ السَّوْدَاءُ، أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: إِنِّي أُصْرَعُ، وَإِنِّي أَتَكَشَّفُ، فَادْعُ اللهَ لِي . قَالَ: « إِنْ شِئْتِ صَبَرْتِ وَلَكِ الْجَنَّةُ، وَإِنْ شِئْتِ دَعَوْتُ اللهَ أَنْ يُعَافِيَكِ » فَقَالَتْ : أَصْبِرُ . فَقَالَتْ: إِنِّي أَتَكَشَّفُ، فَادْعُ اللهَ لِي أَنْ لَا أَتَكَشَّفَ . فَدَعَا لَهَا . صحيح البخاري كِتَابُ الْمَرْضَى بَابُ فَضْلِ مَنْ يُصْرَعُ مِنَ الرِّيحِ رقم الحديث ۵۶۵۲ ، صحيح مسلم كتاب الْبِرِّ وَالصِّلَةِ وَالْآدَابِ بَابُ ثَوَابِ الْمُؤْمِنِ فِيمَا يُصِيبُهُ مِنْ مَرَضٍ، أَوْ حُزْنٍ، أَوْ نَحْوِ ذٰلِكَ حَتَّى الشَّوْكَةِ يُشَاكُهَا رقم الحديث ۵۴ (۲۵۷۶) ، مسند احمد مخرجا رقم ۳۲۴۰ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۷۴۴۸ .

# د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د پردې اهتمام

حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به په ژوند کې د پردې ډیر اهتمام کولو ، تر دې چې ډیر غم به ورسره ددې هم ؤ چې زما د وفات کیدو نه پس زما د بدن حجم خلقو ته ښکاره نشي .
(یعنی زما په لاش باندې هم د چا نظر او نه لړي) . ددې په باره کې به ډیره فکرمنده وه .
یو ځل یې حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وویل چې خلق د زنانه وفات کیدو نه پس صرف ددې په بدن باندې کپړه واچوي نو په دې سره بیا هم ددې د بدن حجم خلقو ته ښکاري ، دا زما نه خوښیږي .
حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورته وویل : زه تاته یو څیز ښایم چې هغه ما په حبشو کې لیدلې دی ، بیا حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا یو څو لښتې ( څانګې ) راأوغوښتې ، د هغې نه یې ( په کټ باندې ) ډولۍ شان جوړه کړه ، او د پاسه یې پرې کپړه واچوله .
حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا چې دا أولیده نو ډیره خوشحاله ده ، او حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته یې وویل چې زما د وفات نه پس هم زما په کټ باندې دا ډولۍ شان جوړه کړئ چې پردې سرې زما د بدن حجم او نه ګوري .
بیا همداسې أوشوه چې ددې د وفات نه پس ددې په لاش باندې دا ډولۍ شان جوړه کړې شوه . (۱)

---

(۱) په احادیثو کې د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا واقعه داسې ذکر ده ، عَنْ أُمِّ جَعْفَرٍ ، أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ : " يَا أَسْمَاءُ ! إِنِّي قَدِ اسْتَقْبَحْتُ مَا يُصْنَعُ بِالنِّسَاءِ ، إِنَّهُ يُطْرَحُ عَلَى الْمَرْأَةِ الثَّوْبُ فَيَصِفُهَا " ، فَقَالَتْ أَسْمَاءُ : يَا بِنْتَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أُرِيكِ شَيْئًا رَأَيْتُهُ بِأَرْضِ الْحَبَشَةِ ؟ فَدَعَتْ بِجَرَائِدَ رَطْبَةٍ فَحَنَّتْهَا ، ثُمَّ طَرَحَتْ عَلَيْهَا ثَوْبًا ، فَقَالَتْ فَاطِمَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : " مَا أَحْسَنَ هٰذَا وَأَجْمَلَهُ يُعْرَفُ بِهِ الرَّجُلُ مِنَ الْمَرْأَةِ فَإِذَا أَنَا مِتُّ فَاغْسِلِينِي أَنْتِ وَعَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَلَا تُدْخِلِي عَلَيَّ أَحَدًا " . فَلَمَّا تُوُفِّيَتْ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا جَاءَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تَدْخُلُ ، فَقَالَتْ أَسْمَاءُ : لَا تَدْخُلِي . فَشَكَتْ أَبَا بَكْرٍ . فَقَالَتْ : إِنَّ هٰذِهِ الْخَثْعَمِيَّةَ تَحُولُ بَيْنِي وَبَيْنَ ابْنَةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، وَقَدْ جَعَلَتْ لَهَا مِثْلَ هَوْدَجِ الْعَرُوسِ . فَجَاءَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَوَقَفَ عَلَى الْبَابِ ، وَقَالَ : يَا أَسْمَاءُ ! مَا حَمَلَكِ أَنْ مَنَعْتِ أَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلْنَ عَلَى ابْنَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعَلْتِ لَهَا مِثْلَ هَوْدَجِ الْعَرُوسِ ؟ فَقَالَتْ : ←←←←←←←←

**فائده** ددې واقعې نه معلومه شوه چې حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د مرګ نه پس دا خوښه نکړه چې ددې په لاش باندې د پړدو سره نظر اولړي نو اوس به څنګه د پړدې سرې د پاره د ژوندې ښځې مخ او نور بدن ته کتل جائز شي ؟ (۱)

د حضرت زينب بنت جَحش رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د وفات نه پس هم د هغې په لاش باندې دا ډولې شان جوړه کړې شوه ، حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې په ليدلو خوشحال شو ، او وې فرمايل :

مَا أَحْسَنَ هٰذَا مَا أَسْتَرَ هٰذَا .

دا څومره ښه ده ، په دې کې خو د زَنانه د پاره ( د مرګ نه پس هم ) ډيره ښه پَرده راځي . (۲)

## نبي عليه السلام به زَنانهؤ ته د بهَر وتلو په وخت د پَردې تاکيد کول

کله چې نبي عليه السلام زَنانهؤ ته عيدګاه ته د تللو حکم اوکړو نو يوې زَنانه ورنه پوښتنه اوکړه : أَعَلَى إِحْدَانَا بَأْسٌ إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهَا جِلْبَابٌ أَنْ لَا تَخْرُجَ ؟

کله چې په موږ کې د چا سره څادر ( غټ پړونې ) نه وي نو آيا په دې باندې څه ګناه شته چې دا عيدګاه ته اُو نه اُوځي ؟

←←←← أَمَرَتْنِي أَنْ لَا تُدْخِلِيْ عَلَيَّ أَحَدًا وَأَرَيْتُهَا هٰذَا الَّذِيْ صَنَعْتُ وَهِيَ حَيَّةٌ فَأَمَرَتْنِيْ أَنْ أَصْنَعَ ذٰلِكَ لَهَا . فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: فَاصْنَعِيْ مَا أَمَرَتْكِ . ثُمَّ انْصَرَفَ وَغَسَّلَهَا عَلِيٌّ، وَأَسْمَاءُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا . السنن الكبرى للبيهقي كِتَابُ الْجَنَائِزِ جُمَّاعُ أَبْوَابِ وَقْتِ الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَائِزِ بَابُ مَا وَرَدَ فِي النَّعْشِ لِلنِّسَاءِ رقم الحديث ۶۹۳۰ ، حلية الاولياء وطبقات الاصفياء ج ۲ ص ۴۳ ، كنز العمال رقم الحديث ۲۷۷۵۹ موتها رضي الله عنها .

(۱) الشاهد منه أن فاطمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا استقبحت أن يصف الثوب المرأة وهي ميتة. فلا شك أن وصفه إياها وهي حية أقبح وأقبح . عودة الحجاب ج ۳ ص ۱۰۹ .

(۲) عَنْ نَافِعٍ وَغَيْرِهِ أَنَّ الرِّجَالَ وَالنِّسَاءَ كَانُوْا يَخْرُجُوْنَ بِهِمْ سَوَاءً . فَلَمَّا مَاتَتْ زَيْنَبُ بِنْتُ جَحْشٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَمَرَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مُنَادِيًا فَنَادٰى : أَلَا لَا يَخْرُجُ عَلَى زَيْنَبَ إِلَّا ذُوْ رَحِمٍ مِنْ أَهْلِهَا . فَقَالَتْ بِنْتُ عُمَيْسٍ : يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! أَلَا أُرِيْكَ شَيْئًا رَأَيْتُ الْحَبَشَةَ تَصْنَعُهُ لِنِسَائِهِمْ ؟ فَجَعَلَتْ نَعْشًا وَغَشَّتْهُ ثَوْبًا . فَلَمَّا نَظَرَ إِلَيْهِ قَالَ : مَا أَحْسَنَ هٰذَا ! مَا أَسْتَرَ هٰذَا ! فَأَمَرَ مُنَادِيًا فَنَادٰى أَنِ اخْرُجُوْا عَلَى أُمِّكُمْ . الطبقات الكبرى لابن سعد ذِكْرُ أَزْوَاجِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْنَبُ بِنْتُ جَحْشٍ ج ۸ ص ۸۸ . سير اعلام النبلاء ۲/ ۲۱۳ .

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

لِتُلْبِسْهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا وَلْتَشْهَدِ الْخَيْرَ وَدَعْوَةَ الْمُسْلِمِيْنَ .

په كار ده چې ددې ملگرې ديته د خپل څادر يوه حصه ور واغوندي ، په خېر او د مسلمانانو په دُعاگانو كې شريكه شي.(۱)

**تشريح** : ددې حديث نه معلومه شوه چې په صحابياتو كې دا عادت ؤ چې بغير د غټ څادر يا بُرقعې به بهَر بالكل نه وتلې ، نو چې كله نبي عليه السلام دوى ته حكم اوكړو چې عيدگاه ته لاړې شئ نو دوى تپوس اوكړو چې كه د چا سره غټ څادر نه وي نو هغه به څه كوي؟ نبي ﷺ ورته اوفرمايل چې د بلې ملگرې سره دې په غټ څادر كې لاړه شي.

باوجود ددينه چې نبي عليه السلام دوى ته عيدگاه ته د تللو حكم كړې ؤ خو بيا يې بغير د غټ څادر نه دوى ته عيدگاه ته د تللو اجازت ورنكړو .

اوس تاسو په خپله سوچ اوكړئ چې كله پيغمبر ﷺ بغير د غټ څادر نه دوى ته عيدگاه ته د تللو اجازت ورنكړو حالانكه عيدگاه ته تلل د دوى د پاره جائز وو نو اوس بې بُرقعې به ښځو ته په بازار كې بِلاضرورته د چكر وهلو اجازت وي؟

ددې حديث نه دا هم معلومه شوه چې كله ښځه د كور نه بهر اُوځي نو تر ټولو پورې يې چې په غټ څادر يا بُرقعې سره پَرده نه وي كړي ديته وتل حرام دي ، كه خپل څادر يا بُرقعه

(۱) عَنْ حَفْصَةَ ، قَالَتْ: كُنَّا نَمْنَعُ عَوَاتِقَنَا أَنْ يَخْرُجْنَ فِي الْعِيدَيْنِ، فَقَدِمَتِ امْرَأَةٌ، فَنَزَلَتْ قَصْرَ بَنِي خَلَفٍ، فَحَدَّثَتْ عَنْ أُخْتِهَا، وَكَانَ زَوْجُ أُخْتِهَا غَزَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ غَزْوَةً، وَكَانَتْ أُخْتِي مَعَهُ فِي سِتٍّ، قَالَتْ: كُنَّا نُدَاوِي الكَلْمَى، وَنَقُومُ عَلَى المَرْضَى، فَسَأَلَتْ أُخْتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَعَلَى إِحْدَانَا بَأْسٌ إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهَا جِلْبَابٌ أَنْ لاَ تَخْرُجَ؟ قَالَ: « لِتُلْبِسْهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا وَلْتَشْهَدِ الخَيْرَ وَدَعْوَةَ المُسْلِمِينَ »
.... صحيح البخاري كِتَابُ الحَيْضِ بَابُ شُهُودِ الحَائِضِ العِيدَيْنِ وَدَعْوَةَ المُسْلِمِينَ، وَيَعْتَزِلْنَ المُصَلَّى رقم الحديث ۳۲۴ .

وفي رواية : عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نُخْرِجَهُنَّ فِي الْفِطْرِ وَالْأَضْحَى، الْعَوَاتِقَ، وَالْحُيَّضَ، وَذَوَاتِ الْخُدُورِ، فَأَمَّا الْحُيَّضُ فَيَعْتَزِلْنَ الصَّلَاةَ، وَيَشْهَدْنَ الْخَيْرَ، وَدَعْوَةَ الْمُسْلِمِينَ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِحْدَانَا لَا يَكُونُ لَهَا جِلْبَابٌ، قَالَ: « لِتُلْبِسْهَا أُخْتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا » . صحيح مسلم كِتَابُ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ بَابُ ذِكْرِ إِبَاحَةِ خُرُوجِ النِّسَاءِ فِي الْعِيدَيْنِ إِلَى الْمُصَلَّى وَشُهُودِ الْخُطْبَةِ، مُفَارِقَاتٍ لِلرِّجَالِ رقم الحديث ۱۲ (۸۹۰).

ورسره نه وي نو د بلې بنځې نه دې أوغواړي. (۱)

## نبي ﷺ هغې زنانه ته د لوپټې په سَر کولو حکم اوکړو چې بغير لوپټې يې بيتُ الله ته پياده د تللو نذر کړې ؤ

حضرت عقبه بن عامر جُهني رضي الله عنه فرمايي چې زما خور دا نذَر اوکړو چې بيتُ الله ته به پياده (بربَنډې خپې) او بغير لوپټې (سَرتور سَر) ځي.

نو ما د نبي عليه السلام نه ددې په باره کې پوښتنه اوکړه، هغوی راته اوفرمايل:

مُرْ أُخْتَكَ فَلْتَخْتَمِرْ، وَلْتَرْكَبْ، وَلْتَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ. (۲)

خپلې خور ته حکم اوکړه چې (بيتُ الله ته د تللو په وخت) لوپټه په سَر کړي (ځکه سَر

---

(۱) فهذا الحديثُ يدلّ على أنّ المعتادَ عند نساء الصّحابةِ أنْ لا تخرجَ المرأة إلا بجلبابٍ، وأنّها عند عدمه لا يمكن أن تخرج. ولذلك ذَكَرْنَ رضي الله عنهنّ هذا المانع لرسول الله صلى الله عليه وسلّم حينما أمرهنّ بالخروج إلى مصلى العيد. فبيّن النّبيُّ صلّى الله عليه وسلّم لهنّ حلّ هذا الإشكال بأن تلبسها أختها من جلبابها ولم يأذن لهنّ بالخروج بغير جلباب، مع أنّ الخروج إلى مصلى العيد مشروع مأمور به للرجال والنّساء. فإذا كان رسولُ الله صلى الله عليه وسلّم لم يأذنْ لهنّ بالخروج بغير جلباب فيما هو مأمورٌ به فكيف يرخّص لهنّ في ترك الجلباب لخروج غير مأمور به ولا محتاجٍ إليه؟! بل هو التجوّل في الأسواق والإختلاط بالرّجال والتفرج الذي لا فائدة منه. وفي الأمر بلبس الجلباب دليلٌ على أنّه لابدّ من التستر. والله أعلم. رسالة الحجاب ص ۱۸ ادلة وجوب الحجاب ادلة السنة.

(۲) عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ رضي الله عنه قَالَ: نَذَرَتْ أُخْتِيْ أَنْ تَمْشِيَ إِلَى بَيْتِ اللهِ حَافِيَةً غَيْرَ مُخْتَمِرَةٍ. فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: «مُرْ أُخْتَكَ فَلْتَخْتَمِرْ وَلْتَرْكَبْ وَلْتَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ». مصنف ابن ابي شيبة كِتَابُ الحَجِّ الرَّجُلُ يَجْعَلُ عَلَيْهِ الْمَشْيَ إِلَى بَيْتِ اللهِ فَيَمْشِي بَعْضَ الطَّرِيقِ. ثُمَّ يَعْجِزُ رقم الحديث ۱۳۵۷۷، مصنف عبدالرزاق الصنعاني كِتَابُ الأَيْمَانِ وَالنُّذُورِ بَابٌ: مَنْ نَذَرَ مَشْيًا ثُمَّ عَجَزَ رقم الحديث ۱۵۸۷۱. مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۷۳۰۶، سنن ابن ماجة باب من نذر ان يحج ماشيا رقم الحديث ۲۱۳۳، سنن ابي داؤد باب من راى عليه كفارة اذا كان معصية رقم الحديث ۳۲۹۳، سنن الترمذي رقم الحديث ۱۵۴۴، سنن النسائي رقم الحديث ۳۸۱۵، مشكوة المصابيح بَابٌ فِي النُّذُورِ الْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۴۴۲(۱۷)، شرح السنّة للبغوي ج ۱۰ ص ۲۷، شرح معاني الآثار رقم الحديث ۳۸۱۶.

ښکاره کول عورت دی او دا ګناه ده (۱)) ، په سوَرلی دې سوَره شي ، او درې (۳) ورځې روژې دې اونيسي (چې دا به د هغه قسَم کفاره شي کوم يې چې د نذر په وجه په ځان لازم کړې وُ (۲)) .

**مسئله** : که يوه زَنانه دا نذر اوکړي چې زه به لوپټه نه په سَر کوم نو ددې د پاره دا نذر پوره کول صحيح ندی ، ځکه د ښځې د پاره لوپټه نه په سَر کول ګناه ده او د ګناه نذر پوره کول صحيح ندی ، بلکه په داسې ښځه باندې واجب دي چې دا قسَم مات کړي ، کفاره ورکړي او لوپټه په سَر کړي . (۳)

## د نبي ﷺ په زمانه کې به چې زَنانه جُمات ته راتللی نو په غټ ځادر کې به يې ټول بدن پټ کړې وُ

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، حضرت عائشة رضي الله عنها فرمايي :

كُنَّ نِسَاءُ الْمُؤْمِنَاتِ يَشْهَدْنَ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْفَجْرِ مُتَلَفِّعَاتٍ بِمُرُوْطِهِنَّ ، ثُمَّ يَنْقَلِبْنَ إِلَى بُيُوْتِهِنَّ حِيْنَ يَقْضِيْنَ الصَّلَاةَ ، لَا يَعْرِفُهُنَّ أَحَدٌ مِنَ الْغَلَسِ . (۴)

---

(۱) (فَلْتَخْتَمِرْ) : لِأَنَّ كَشْفَ رَأْسِهَا عَوْرَةٌ وَهِيَ مَعْصِيَةٌ . مرقاة المفاتيح بَابٌ فِي النُّذُوْرِ اَلْفَصْلُ الثَّانِي ج ٦ ص ۲۲۵۳ في تشريح الحديث ۳۴۴۲ .

(۲) قَالُوْا : فَتِلْكَ الثَّلَاثَةُ الْأَيَّامِ إِنَّمَا كَانَتْ كَفَّارَةً لِيَمِيْنِهَا الَّتِيْ كَانَتْ بِهَا حَالِفَةً ، بِقَوْلِهَا : لِلّٰهِ عَلَيَّ أَنْ أَحُجَّ مَاشِيَةً . شرح معاني الآثار ج ۳ ص ۱۲۰ رقم ۴۸۱۸ بَابٌ: الرَّجُلُ يُوْجِبُ عَلَى نَفْسِهِ الْمَشْيَ إِلَى بَيْتِ اللهِ

(۳) وَقَالَ الْمُظْهِرُ: أَمَّا أَمْرُهُ إِيَّاهَا بِالْإِخْتِمَارِ وَالْإِسْتِتَارِ فَلِأَنَّ النَّذْرَ لَمْ يَنْعَقِدْ فِيْهِ ، لِأَنَّ ذٰلِكَ مَعْصِيَةٌ ، وَالنِّسَاءُ مَأْمُوْرَاتٌ بِالْإِخْتِمَارِ وَالْإِسْتِتَارِ . قُلْتُ : قَدْ تَقَدَّمَ أَنَّ النَّذْرَ يَنْعَقِدُ فِي الْمَعْصِيَةِ ، لٰكِنْ لَا وَفَاءَ بِهِ أَيْ: لَا يَنْبَغِيْ أَنْ يُحْفَظَ هٰذَا النَّذْرُ ، بَلْ يَجِبُ أَنْ يَحْنَثَ وَيُكَفِّرَ ، وَهٰذَا هُوَ الْمَذْهَبُ عِنْدَنَا ، وَهُوَ الظَّاهِرُ مِنَ الْأَحَادِيْثِ . مرقاة المفاتيح ج ٦ ص ۲۲۵۳ في تشريح حديث ۳۴۴۲ .

(۴) صحيح البخاري كِتَابُ مَوَاقِيْتِ الصَّلَاةِ بَابُ وَقْتِ الْفَجْرِ رقم الحديث ۵۷۸ ، و رقم الحديث ۸۶۷ بَابُ خُرُوْجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِاللَّيْلِ وَالْغَلَسِ . صحيح مسلم كِتَابُ الْمَسَاجِدِ وَمَوَاضِعِ الصَّلَاةِ بَابُ اسْتِحْبَابِ التَّبْكِيْرِ بِالصُّبْحِ فِي أَوَّلِ وَقْتِهَا... رقم الحديث ۲۳۰ (۶۴۵) ، سنن ابي داؤد رقم الحديث ۴۲۳ .

مؤمناني ښځې به د رسولُ الله صلی الله علیه وسلم سره د سهر په مانځه کې په داسې حالت کې حاضریدی چې په غټ څادر کې به یې ټول بدن (او مخ) پټ کړي ؤ ، بیا به یې چې کله مونځ اوکړو او خپلو کورونو ته به واپس کیدلی نو د تیارې په وجه به چا نه شوی پیژندلی . (۱)

**فائده**: ددې حدیث نه هم معلومه شوه چې صحابیاتو به د پَردې ډیر اِهتمام کولو، نو زمونږ بیبیانو له هم په کار دي چې د هغوی پیروي اوکړي او د پَردې کلک اهتمام اوکړي . (۲)

( **نوټ** : ددې حدیث نه اګر چې دا معلومیږي چې د سهر مونځ په تیاره کې په کار دی لیکن د نورو ډیرو احادیثو نه معلومیږي چې په لږه رَڼا کې یې کول بهتر دی ). (۳)

## د نبي ﷺ په زمانه کې به چې زنانه بهَر وتله نو په پَرده کې به وه

د نبي علیه السلام په زمانه کې به چې زَنانه د څه ضرورت د پاره د کوره بهَر وتله نو په پَرده کې به یې مخ پټ ؤ ، چا به نه شوه پیژندلی چې دا څوک ده ؟

حضرت عبدالله بن عَمرو بن العاص ﷺ فرمایي چې مونږ د رسولُ الله صلی الله علیه وسلم سره یو کس دَفن کړو ، کله چې مونږ راواپس شو او ددې مړي د کور دَروازې ته نزدې شو ناڅاپه مو دلته یوه ښځه اُولیده : لَا نَظُنُّهُ عَرَفَهَا .

---

(۱) (مُتَلَفِّعَاتٍ) متلحفات من التّلفّع وهو شد اللّفاع وهو ما يغطى الوجه ويتلحف به . تعليق مصطفى البغا على صحيح البخاري في تشريح حديث ۵۷۸ .

(۲) والدّلالة في هذا الحديث من وجهين: أحدهما: أنّ الحجابَ والتّستّر كان من عادة نساء الصّحابة الذين هم خير القرون، وأكرمها على الله عز وجل، وأعلاها أخلاقًا وآدابًا، وأكملها إيمانًا، وأصلحها عملًا فهم القدوة الّذين رضي الله عنهم وعمّن اتبعوهم بإحسان .... فإذا كانتْ تلك طريقة نساء الصّحابة فكيف يليق بنا أن نحيد عن تلك الطريقة الّتي في اتباعها بإحسان رضى الله تعالى عمّن سلكها واتبعها. وقد قال الله تعالى : { وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا } ( سورة النساء آية ۱۱۵ ). رسالة الحجاب ص ۱۹ .

(۳) پوره تفصيل په فلهم البخاري ج ۱ ص ۲۸۳ کې ذکر دی . ابوالشمس علي عنه .

زمونږ په نبي عليه السلام باندې دا ګمان نه ؤ چې ګني دوی به دا ښځه اُوپيژني (ځکه ددې ښځې مخ په پَرده کې پټ ؤ) .

خو نبي عليه السلام دا اُوپيژنده او ورته وې فرمايل :

يَا فَاطِمَةُ ! مِنْ أَيْنَ جِئْتِ؟ اې فاطمې ! د کوم ځای نه راغلی ؟

هغې ورته وويل : ددې مړي کور واله نه راغلم ، د دوی سره مې غَم رازي کوله او تسلّي مې ورته ورکړه ... (۱)

**فائده** : ددې حديث نه هم دا معلومه شوه چې د نبي عليه السلام په زمانه کې به د ښځو مخونه په پَرده کې پټ وو ځکه خو صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د نبي عليه السلام په باره کې دا ګمان کولو چې ګني دوی به دا ښځه اُو نه پيژني . خو نبي عليه السلام بيا هم اُوپيژنده . که چيرته ددې مخ ښکاره وی نو بيا صحابه کرامو دا ګمان ولې کولو ؟ ځکه بيا خو هر چا پيژندې شوه . (۲)

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ العَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ، قَالَ : قَبَرْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا ، فَلَمَّا رَجَعْنَا وَحَاذَيْنَا بَابَهُ إِذْ هُوَ بِامْرَأَةٍ لَا نَظُنُّهُ عَرَفَهَا ، فَقَالَ: « يَا فَاطِمَةُ ! مِنْ أَيْنَ جِئْتِ ؟ » قَالَتْ: جِئْتُ مِنْ أَهْلِ الْبَيْتِ رَحِمْتُ إِلَيْهِمْ مَيِّتَهُمْ وَعَزَّيْتُهُمْ ..... المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۱۳۸۲ ، و رقم الحديث ۱۳۸۳ وقال الحاكم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ، وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۴۵ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۷۰۹۰ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۷۰۸۲ .

(۲) قد ظنّ الصّحابةُ رضي الله عنهم أنّ النّبيّ صلى الله عليه وسلم لم يعرف هذه المرأة الّتي مرّت من عنده. لأنّها كانت مستترةً، ولكنه عرفها، وقال لها: "يا فاطمة" كما عرف عائشة رضي الله عنها وسط الناس وهي ملتقبة . عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۶۳ .

عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ، قَالَتْ: لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وَهُوَ عَرُوْسٌ بِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ جِئْنَ نِسَاءُ الْأَنْصَارِ فَأَخْبَرْنَ عَنْهَا، قَالَتْ: فَتَنَكَّرْتُ وَتَنَقَّبْتُ فَذَهَبْتُ، فَنَظَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى عَيْنِيْ فَعَرَفَنِيْ... سنن ابن ماجة كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ حُسْنِ مُعَاشَرَةِ النِّسَاءِ رقم الحديث ۱۹۸۰ .

# صحابه کرامو به د زَنانه ؤ د پَردې ډیر اِهتمام کول

صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به د زَنانه ؤ د پَردې ډیر اِهتمام کول ، بې پَردګي او بغیر ضرورته به یې د زَنانه ؤ بهر وتل نه خوښول. ددې په باره کې درته یو څو واقعات ذکر کوم :

## یو صحابي چې خپله بي بي د کور دَروازې سره بهَر اُولیده نو غیرَت ورغی

صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به بِلاضرورته ښځه د کور نه بهَر وتل لوي جُرم ګڼل ، تر دې چې کله یو صحابي د ورځې خپله بي بي د کور دَروازې سره بهَر اُولیده نو دومره غیرَت ورغی چې په نېزه باندې یې د هغې د وهلو اِراده اوکړه خو ښځې ورته بهَر ته د راوتلو سبب بیان کړو نو بیا د وهلو نه منع شو .

په مسلم شریف او مشکوٰة شریف کې دا واقعه پوره تفصیل سره ذکر ده :

حضرت سائب رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې یوه ورځ زه د حضرت ابوسعید خُدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کور ته ورغلم ، ما هغه اُولید چې مونځ یې کولو ، زه کیناستم ، اِنتظار مې کولو چې مونځ خلاص کړي ، په دې وخت کې ما په لرګو کې د حرکت (خوَزیدو) آواز واورید ، دا لرګي د کور په یو ګَټ کې ایخي وو.

(په یو روایت کې راځي چې د ابوسعید خُدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تخت لاندې مې د حرکت آواز واورید )

ما چې اُوکتل نو هغه مار وُ ، ما وَرټوپ کړل چې وې وژنم ، ابوسعید خُدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ماته په مانځه کې اِشاره اوکړه چې کېنه ( مه یې وَژنه ) . نو زه کیناستم .

کله چې هغه د مونځ نه فارِغ شو نو هغه ماته د کور په حویلۍ کې یوې کمرې طرف ته اِشاره اوکړه او راته وې ویل : آیا ته دا کمره ګورې؟ ما ورته وویل : آو (ګورم یې) .

هغه وویل : پدې کې زمونږ د خاندان یو ځلمې اُوسیدو چې هغه نوې نوې واده کړې وُ ، مونږ ټول د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره غزوه خَندق ته لاړو ، دا ځلمې هم راسره وُ ، دې ځلمي به په هره ورځ د غرمې په وخت د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه کور ته د تللو اِجازت غوښتو (ځکه نوې نوې واده یې کړې وُ ) ، نبي علیه السلام به ورته اجازت ورکولو ، (او کور ته به تللو ، شپه به یې په کور کې تېروله ، صبا سهَر وختي به واپس راتللو ، او د غزوه خندق د مجاهدینو سره به یو ځای کیدلو ) .

يوه ورځ دې ځلمي د معمول موافق د نبي ﷺ نه کورته د تللو اجازت اوغوښت، رسول الله ﷺ ورته اجازت ورکړو او ورته وې فرمايل:

د ځان سره اَسلحه واخله؛ ځکه د ماسره دا يَره ده چې چيرته بنوقريظه په تا باندې حمله اونکړي.

(بنو قريظه په مدينه منوّره کې د يهوديانو يوه قبيله وه چې په دې وخت کې د مکې کافرانو سره ملګري وو، نو ځکه نبي عليه السلام دې صحابي ته اوفرمايل چې د ځان سره اَسلحه واخله).

دې ځلمي د ځان سره اَسلحه راواخيسته او کورته رارِوان شو، کورته چې رااُورسيد:

فَإِذَا امْرَأَتُهُ بَيْنَ الْبَابَيْنِ قَائِمَةً فَأَهْوَى إِلَيْهَا الرُّمْحَ لِيَطْعُنَهَا بِهِ وَأَصَابَتْهُ غَيْرَةٌ.

ناګهانه يې اُوکتل چې دده ښځه د دواړو دَروازو (يعني د کور دَننه او بهَر دروازې) په مينځ کې ولاړه وه، دې ځلمي نېزه راپورته کړه چې دا وربانديې اُووهي؛ ځکه دده ته د ښځې په بهَر ليدلو سره غيرت ورغی.

ښځې ورته وويل: خپله نېزه د ځان سره سَنبال (اِيساره) کړه او کورته لړ راننوځه نو ته به په خپله اوګورې چې زه څه شي دلته بهر راويستې يم.

کله چې دا ځلمی کورته داخل شو نو ناڅاپه يې يو لوي مار اُوليد چې په بِستره باندې تاؤ شوي پروت ؤ. دې ځلمي په هغه باندې حمله اوکړه او نېزه يې په هغه کې ننويسته، په کې تاؤ راتاؤ يې کړه، بيا د کمرې نه بهَر رااُووت او د کور په اَنګر کې يې نېزه اُوتومبله، مار د زخمي کيدو باوجود په دې ځلمي باندې حمله اوکړه (ده له يې ټک ورکړو)، بيا معلومه نه شوه چې په دې دواړو کې کوم يو مخکې مَړ شو؟ دا مار مخکې مَړ شو او که دا ځلمی؟

حضرت ابوسعيد خُدري رضي الله عنه فرمايي چې ددې واقعې نه پس مونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلو او ټوله واقعه بيانولو نه پس مو ورته اوفرمايل:

اې د الله رسوله! تاسو د الله ﷻ نه دا دُعا اوغواړئ چې دا ځلمي زمونږ د پاره راژوندې کړي. رسول الله ﷺ ورته اوفرمايل: اِسْتَغْفِرُوا لِصَاحِبِكُمْ.

تاسو د خپل ملګري د پاره اِستغفار اُوغواړئ. (ځکه دا مَړ شوې دی نو استغفار ورته

فائده ورکوي (۱)).

يا نبي ﷺ اوفرمايل : إِنَّ بِالْمَدِينَةِ جِنًّا قَدْ أَسْلَمُوا، فَإِذَا رَأَيْتُمْ مِنْهُمْ شَيْئًا، فَآذِنُوهُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، فَإِنْ بَدَا لَكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ، فَاقْتُلُوهُ، فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ.

بيشکه په مدينه منوّره کې څه جِنّات هم دي چې مسلمانان شوي دي ، کله چې په تاسو کې څوک دوی د مار په شکل کې اوګوري نو درې (۳) ورځې هغه خبردار کړئ (چې دداي ځای نه لاړ شه) ، که د درې ورځو نه پس هم تاسو ته ښکاره شي نو بيا هغه اُووژنئ ؛ ځکه دا شيطان دی ، (يعنی کافر جِن دی ، يا شرير مار دی ، وژل يې درته جائز دي) . (۲)

---

(۱) (اِسْتَغْفِرُوا لِصَاحِبِكُمْ) ، وَقَالَ الطِّيبِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ : يُرِيدُ أَنَّ الَّذِي يَنْفَعُهُ هُوَ اسْتِغْفَارُكُمْ لَا الدُّعَاءُ بِالْإِحْيَاءِ ؛ لِأَنَّهُ مَضَى سَبِيلُهُ اهـ. وَلَيْسَ فِيهِ عَجْزُهُ عَنِ الْمُعْجِزَةِ مِنْهُ . بَلْ سَدٌّ لِهٰذَا الْبَابِ، وَبِهِ يَتِمُّ الْجَوَابُ ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ . مرقاة المفاتيح ۷ ص ۲۶۷۰ في تشريح حديث ۴۱۱۷ .

(۲) قَالَ أَبُو السَّائِبِ رَحِمَهُ اللّٰهُ ، مَوْلَى هِشَامِ بْنِ زُهْرَةَ ﷺ إِنَّهُ دَخَلَ عَلَى أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ ﷺ فِي بَيْتِهِ ، قَالَ : فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّي ، فَجَلَسْتُ أَنْتَظِرُهُ حَتَّى يَقْضِيَ صَلَاتَهُ ، فَسَمِعْتُ تَحْرِيكًا فِي عَرَاجِينَ فِي نَاحِيَةِ الْبَيْتِ ، فَالْتَفَتُّ فَإِذَا حَيَّةٌ فَوَثَبْتُ لِأَقْتُلَهَا ، فَأَشَارَ إِلَيَّ أَنِ اجْلِسْ فَجَلَسْتُ، فَلَمَّا انْصَرَفَ أَشَارَ إِلَى بَيْتٍ فِي الدَّارِ ، فَقَالَ: أَتَرَى هٰذَا الْبَيْتَ ؟ فَقُلْتُ : نَعَمْ ، قَالَ : كَانَ فِيهِ فَتًى مِنَّا حَدِيثُ عَهْدٍ بِعُرْسٍ، قَالَ: فَخَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْخَنْدَقِ فَكَانَ ذٰلِكَ الْفَتَى يَسْتَأْذِنُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَنْصَافِ النَّهَارِ فَيَرْجِعُ إِلَى أَهْلِهِ، فَاسْتَأْذَنَهُ يَوْمًا ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : خُذْ عَلَيْكَ سِلَاحَكَ فَإِنِّي أَخْشَى عَلَيْكَ قُرَيْظَةَ . فَأَخَذَ الرَّجُلُ سِلَاحَهُ ، ثُمَّ رَجَعَ فَإِذَا امْرَأَتُهُ بَيْنَ الْبَابَيْنِ قَائِمَةً فَأَهْوَى إِلَيْهَا الرُّمْحَ لِيَطْعُنَهَا بِهِ وَأَصَابَتْهُ غَيْرَةٌ . فَقَالَتْ لَهُ: اُكْفُفْ عَلَيْكَ رُمْحَكَ وَادْخُلِ الْبَيْتَ حَتَّى تَنْظُرَ مَا الَّذِي أَخْرَجَنِي، فَدَخَلَ فَإِذَا بِحَيَّةٍ عَظِيمَةٍ مُنْطَوِيَةٍ عَلَى الْفِرَاشِ فَأَهْوَى إِلَيْهَا بِالرُّمْحِ فَانْتَظَمَهَا بِهِ، ثُمَّ خَرَجَ فَرَكَزَهُ فِي الدَّارِ فَاضْطَرَبَتْ عَلَيْهِ، فَمَا يُدْرَى أَيُّهُمَا كَانَ أَسْرَعَ مَوْتًا الْحَيَّةُ أَمِ الْفَتَى، قَالَ : فَجِئْنَا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرْنَا ذٰلِكَ لَهُ وَقُلْنَا : ادْعُ اللّٰهَ يُحْيِيهِ لَنَا فَقَالَ: «اِسْتَغْفِرُوا لِصَاحِبِكُمْ» ثُمَّ قَالَ: «إِنَّ بِالْمَدِينَةِ جِنًّا قَدْ أَسْلَمُوا، فَإِذَا رَأَيْتُمْ مِنْهُمْ شَيْئًا، فَآذِنُوهُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، فَإِنْ بَدَا لَكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ، فَاقْتُلُوهُ، فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ» . صحيح مسلم كتاب السَّلَامِ بَابُ قَتْلِ الْحَيَّاتِ وَغَيْرِهَا رقم الحديث ۱۳۹ (۲۲۳۶) ، مشكوة المصابيح كتاب الصَّيْدِ والذبائح بَابُ مَا يَحِلُّ أَكْلُهُ وَمَا يَحْرُمُ الْفَصْلُ الأول رقم الحديث ۴۱۱۸(۱۵) ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۶۳۷ ، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۲۶۴ .

د مسلم شريف په يو روايت کې د همدې واقعې په آخر کې ذکر دي چې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم اوفرمايل:

إِنَّ لِهٰذِهِ الْبُيُوْتِ عَوَامِرَ، فَإِذَا رَأَيْتُمْ شَيْئًا مِنْهَا فَحَرِّجُوْا عَلَيْهَا ثَلَاثًا، فَإِنْ ذَهَبَ، وَإِلَّا فَاقْتُلُوْهُ فَإِنَّهُ كَافِرٌ.

بيشکه په دې کورونو کې پيريان هم اُوسيږي، پس کله چې تاسو په دوی کې څوک د مار په صورت کې اوګورئ نو درې ځله يا درې ورځې په دوی باندې تَنګي اوکړئ (يعنې ورته اُووايئ چې که چيرته تاسو اُو نه وتلئ نو مونږ به مو قتل کړو)، پس که دا لاړ نو ډيره ښه ده کني بيا يې اُووژنئ، ځکه دا به ګڼرلې شي چې دا کافر جِن دی (او د کافر لحاظ نشي ساتلی).

بيا نبي عليه السلام د دې ځلمي د دَفن کولو حکم اوفرمايلو. (۱)

## د مذکوره واقعې نه معلوم شوي فوائد

د دې واقعې نه مُحدِّثينو ډير فوائد معلوم کړي خو چې د کوم مقصد د پاره ما دا دلته ذکر کړې هغه دا دی چې کله دا ځلمې صحابي کور ته رااُورسيد او خپله ښځه يې بهر په دروازه کې اُوليده نو د غيرت په وجه يې دا دومره لوي جُرم اوګڼرل چې اِراده يې اوکړه چې دا په نيزه باندې اُووهي او وې وژني، خو چې کله ورته ښځې بهر ته د راوتلو سبب بيان کړو نو بيا منع شو.

اګر چې په دې وخت کې په مدينه منوّره کې هيڅوک سړی نه ؤ ځکه ټول غزوه خندق ته تللي وو خو بيا هم چې دې صحابي خپله بي بي بهر اُوليده نو د غيرت په وجه يې د دې د وهلو اِراده اوکړه.

---

(۱) عَنْ أَبِي السَّائِبِ رَحِمَهُ اللّٰهُ، قَالَ: دَخَلْنَا عَلَى أَبِي سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ رضي الله عنه، فَبَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوْسٌ إِذْ سَمِعْنَا تَحْتَ سَرِيْرِهِ حَرَكَةً، فَنَظَرْنَا فَإِذَا حَيَّةٌ، وَسَاقَ الْحَدِيْثَ بِقِصَّتِهِ نَحْوَ حَدِيْثِ مَالِكٍ عَنْ صَيْفِيٍّ، وَقَالَ فِيْهِ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ لِهٰذِهِ الْبُيُوْتِ عَوَامِرَ، فَإِذَا رَأَيْتُمْ شَيْئًا مِنْهَا فَحَرِّجُوْا عَلَيْهَا ثَلَاثًا، فَإِنْ ذَهَبَ، وَإِلَّا فَاقْتُلُوْهُ، فَإِنَّهُ كَافِرٌ» وَقَالَ لَهُمْ: «اِذْهَبُوْا فَادْفِنُوْا صَاحِبَكُمْ». صحيح مسلم كتاب السلام باب قتل الحيات وغيرها رقم الحديث ۱۴۰ (۲۲۳۶).

ددینه معلومه شوه چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم په نزد زَنانه ؤ د پاره بِلاضرورت د کور نه بهر راوتل لوې جُرم ؤ . که چیرته د نبي علیه السلام په زمانه کې زَنانه ؤ ته بلاضرورت بهر ته د راوتلو رِواج وی نو بیا دې صحابي ته څنګه دومره لوي غیرت ورتللو؟

په دې واقعې سره په هغه خلقو هم صراحةً رَد اوشو چې هغوی وایي :

" پَرده د مُلیانو اِیجاد دی او دا د نبي علیه السلام په زمانه کې نه وه " .

## په کور کې د مار راښکاره کیدو په وجه ورته اول خبرداري ورکول

د مذکوره حدیث نه دویمه فائده دا معلومه شوه چې کله په کور کې مار راښکاره شي نو درې پیرې ورته د کور نه د وتلو خبرداري په کار دی ؛ ځکه په دې سره انسان بیا د ډیرو مشکلاتو نه بچ کیږي .

په احادیثو کې ذکر دي چې درې پیرې یا درې ورځې ورته دا ویل په کار دي :

أُنْشِدُكُمْ بِالْعَهْدِ الَّذِيْ أَخَذَ عَلَيْكُمْ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ أَنْ لَّا تُؤْذُوْنَا وَلَا تَظْهَرُوْا لَنَا .

زه تاسو ته د هغه عهد (اِقرار) په واسطه قسَم درکوم کوم چې حضرت سلیمان بن داؤد علیهما السلام د تاسو نه اخیستې ؤ چې مونږ ته ضرر مه رارَسوئ او مونږ ته مه راښکاره کیږئ .

په احادیثو کې دا هم ذکر دي چې دا ورته ویل په کار دي :

أَسْأَلُكِ بِعَهْدِ نُوْحٍ وَبِعَهْدِ سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ أَنْ لَا تُؤْذِيْنَا .

زه تانه د حضرت نوح علیه السلام او حضرت سلیمان علیه السلام د عهد په وجه سوال کوم چې تاسو مونږ ته ضرر مه رارَسوئ .

علماء کرامو دا خبره هم ذکر کړې چې دا به ورته اُووایي :

بِاللهِ عَلَيْكَ أَنْ لَا تَعُوْدُوْا لِمِثْلِهٖ أَبَدًا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِيْنَ .

مونږ تاسو ته په الله باندې قسَم درکوو چې که چیرته تاسو مؤمنان یئ نو بیا دغه شان راښکاره نه شئ .

که درې پیرې ددې خبرداري ورکولو نه پس هم مار په کور کې راښکاره شي نو د هغې

وژل جائز دي.(۱)

## د مخ په ښکاره کولو سره حضرت عبدالرحمن بن ابي بکر رضي الله عنهما خپلې خور " حضرت عائشې رضي الله عنها " ته تنبیه ورکړه

د مسلم شریف حدیث دی ، حضرت عائشة رضي الله عنها فرمایي چې ما نبي علیه السلام ته اوفرمایل : اې د الله رسوله ! خلق به دوه ثوابونه کټلو سره واپس شي او زه به یو ثواب کټلو سره واپس شم .

(یعنی نورو خلقو حج او عُمره دواړه اوکړل او ما نه چونکه د حیض په وجه په اول کې عُمره پاتې شوې وه ، صرف حج مې اوکړو) .

(۱) (فَحَرِّجُوا) أَيْ ضَيِّقُوا (عَلَيْهَا ثَلَاثًا) . أَيْ قُولُوا لَهَا : أَنْتِ فِي حَرَجٍ أَيْ ضِيقٍ إِنْ عُدْتِ إِلَيْنَا فَلَا تَلُومِينَا أَنْ نُضَيِّقَ عَلَيْكُمْ بِالتَّتَبُّعِ وَالطَّرْدِ وَالْقَتْلِ. كَذَا فِي النِّهَايَةِ. وَفِي شَرْحِ مُسْلِمٍ لِلنَّوَوِيِّ قَالَ الْقَاضِي عِيَاضٌ : رَوَى ابْنُ الْحَبِيبِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ يَقُولُ : «أُنْشِدُكُمْ بِالْعَهْدِ الَّذِي أَخَذَ عَلَيْكُمْ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ أَنْ لَا تُؤْذُونَا وَلَا تَظْهَرُوا لَنَا» ...... قَالَ شَارِحٌ : أَيْ شَدِّدُوا عَلَى الْحَيَّةِ وَنَفِّرُوهَا. فَإِنْ نَفَرَ وَتَوَارَى فَذَاكَ . وَإِلَّا فَاقْتُلُوهُ . فَإِنَّهُ كَافِرٌ أَيْ كَالْكَافِرِ فِي جَرَاءَتِهِ وَصَوْلَتِهِ وَقَصْدِهِ وَكَوْنِهِ مُؤْذِيًا . وَقِيلَ: أَرَادَ بِعَوَامِرِ الْبَيْتِ سُكَّانَهَا مِنَ الْجِنِّ أَيْ أَنَّهَا جِنًّا تُشَكَّلُ بِشَكْلِ الْحَيَّاتِ. وَأَرَادَ بِالتَّحْرِيجِ التَّشْدِيدَ بِالْحَلِفِ عَلَيْهِ. كَمَا جَاءَ فِي الْحَدِيثِ أَنْ يُقَالَ لَهَا: (أَسْأَلُكِ بِعَهْدِ نُوحٍ وَبِعَهْدِ سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ أَنْ لَا تُؤْذِينَا) ...... (فَآذِنُوهُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ) أَمْرٌ مِنَ الْإِيذَانِ بِمَعْنَى الْإِعْلَامِ. وَالْمُرَادُ بِهِ الْإِنْذَارُ وَالْإِعْتِذَارُ. وَالْمَعْنَى قُولُوا لَهُ نَحْوَ مَا تَقَدَّمَ . أَوْ حَلِّفُوهُ وَقُولُوا: " بِاللهِ عَلَيْكَ أَنْ لَا تَعُودُوا لِمِثْلِهِ أَبَدًا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ " . (فَإِنْ بَدَا) أَيْ ظَهَرَ (لَكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ فَاقْتُلُوهُ. فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ) . أَيْ فَلَيْسَ بِجِنِّيٍّ مُسْلِمٍ . بَلْ هُوَ إِمَّا جِنِّيٌّ كَافِرٌ. وَإِمَّا حَيَّةٌ. وَإِمَّا وَلَدٌ مِنْ أَوْلَادِ إِبْلِيسَ. أَوْ سَمَّاهُ شَيْطَانًا لِتَمَرُّدِهِ وَعَدَمِ ذَهَابِهِ بِالْإِيذَانِ. وَكُلُّ مُتَمَرِّدٍ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ وَالدَّابَّةِ يُسَمَّى شَيْطَانًا . وَفِي شَرْحِ مُسْلِمٍ لِلنَّوَوِيِّ رَحِمَهُ اللهُ قَالَ الْعُلَمَاءُ : إِذَا لَمْ يَذْهَبْ بِالْإِنْذَارِ عَلِمْتُمْ أَنَّهُ لَيْسَ مِنْ عَوَامِرِ الْبُيُوتِ. وَلَا مِمَّنْ أَسْلَمَ مِنَ الْجِنِّ. بَلْ هُوَ شَيْطَانٌ. فَلَا حُرْمَةَ لَهُ فَاقْتُلُوهُ وَلَنْ يَجْعَلَ اللهُ لَهُ سَبِيلًا إِلَى الْإِضْرَارِ بِكُمْ. مرقاة المفاتيح ۷ ص ۲۶۷۰ في شرح حديث ۴۱۱۷ .

نو نبي عليه السلام زما ورور " عبدالرحمن بن ابي بكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا " ته حكم اوكړو چې دا تَنعِيم ته بوځه ( چې د هغې ځای نه د عُمرې اِحرام رااُوتړي ) . نو عبدالرحمن زه په خپل اُوښ باندې شاته د ځان پسې كينولم .

حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې ( كله به څوک نه وو نو ) ما به خپل غټ پړونې د خپل څټ نه لرې كول فَيَضرِبُ رِجْلِيْ بِعِلَّةِ الرَّاحِلَةِ.

هغه به ( د غېرت په وجه ) زما خپه د اُوښ په لرګي باندې وهله ( چې پړونې د څټ نه ولې لرې كوې ؟ )

ما به ورته ويل : وَهَلْ تَرٰى مِنْ أَحَدٍ؟ آيا ته څوک ګورې ؟

( يعنى مونږ خو په داسې خالي ميدان كې يو چې دلته پرَدې سړې نشته چې زه ورنه پَرده اوكړم ، نو ځكه مې غټ پړونې د څټ نه لرې كړې دى ) .

حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې بيا ما د عُمرې اِحرام ( د تَنعِيم نه ) رااُوتړل ، او واپس رارروان شو ، تر دې چې مونږ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته رااُورسيدو او هغوى په حصبه مقام كې ؤ .(۱)

**فائده** : په حضرت عبدالرحمن بن ابي بكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا كې دومره غېرت ؤ چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته يې د څټ نه د پړونې په لرې كولو سره تَنبِيه وركړه ، اګر چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا ځكه ښكاره كول چې په دې ځای كې څوک پرَدې سړې نه ؤ .(۲)

---

(۱) قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! أَيَرْجِعُ النَّاسُ بِأَجْرَيْنِ وَأَرْجِعُ بِأَجْرٍ؟ «فَأَمَرَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنْ يَنْطَلِقَ بِهَا إِلَى التَّنْعِيمِ». قَالَتْ: فَأَرْدَفَنِيْ خَلْفَهُ عَلَى جَمَلٍ لَهُ. قَالَتْ: فَجَعَلْتُ أَرْفَعُ خِمَارِيْ أَحْسُرُهُ عَنْ عُنُقِيْ . فَيَضْرِبُ رِجْلِيْ بِعِلَّةِ الرَّاحِلَةِ . قُلْتُ لَهُ : وَهَلْ تَرٰى مِنْ أَحَدٍ؟ قَالَتْ: فَأَهْلَلْتُ بِعُمْرَةٍ. ثُمَّ أَقْبَلْنَا حَتَّى انْتَهَيْنَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِالْحَصْبَةِ . صحيح مسلم كِتَابُ الْحَجِّ بَابُ بَيَانِ وُجُوهِ الإِحْرَامِ رقم الحديث ۱۳۲ (۱۲۱۱).

(۲) ( فَيَضْرِبُ رِجْلِيْ بِعِلَّةِ الرَّاحِلَةِ ) .... وَالصَّوَابُ فَيَضْرِبُ رِجْلِيْ بِنَعْلَةِ السَّيْفِ يَعْنِيْ أَنَّهَا لَمَّا حَسَرَتْ خِمَارَهَا ضَرَبَ أَخُوْهَا رِجْلَهَا بِنَعْلَةِ السَّيْفِ . فَقَالَتْ : وَهَلْ تَرٰى مِنْ أَحَدٍ؟ . هٰذَا كَلَامُ الْقَاضِي . ←←←←←←←

# حضرت عثمان ﷺ د شهادت په وخت هم د خپلې بي بي د پَردې لحاظ اوساتل

کله چې ظالمان د حضرت عثمان ﷺ کور ته د دوی د شهید کولو د پاره وَرداخل شو نو دده بي بي " نائلې " اِراده اوکړه چې حضرت عثمان ﷺ په خپلو ویښتانو ( او لوپټه ) باندې پټ کړي ، نو حضرت عثمان ﷺ ورته اوفرمایل :

خُذِيْ خِمَارَكِ . فَلَعَمْرِيْ مَا دُخُوْلُهُمْ عَلَيَّ أَعْظَم مِنْ حُرْمَةِ شَعْرِكِ .

خپله لوپټه په سَر کړه ، قسَم په الله د دوی زما د شهید کولو د پاره راتلل دومره لویه خبره نده څومره چې ماته ستا د ویښتانو اِحترام أهم دی . (۱)

# د زَنانه لوپټه غورځیدو په وخت د صحابه کرامو وار خطائي

صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنهُم به د زَنانهؤ د پَردې ډیر اِهتمام کولو ، که چیرته په خطائي کې به د زَنانه د سَر نه پړوني اُوغورځید نو سمدستي به يې د هغې د پَردې اِهتمام کولو .

یو ځل یوې زَنانه په مړي کې چغې او سُورې وهلی ، حضرت عُمر ﷺ راغی او هغه يې په دُرّه باندې اُووهله ، په دې سره د هغې زَنانه د سَر نه لوپټه اُوغورځیده ، صحابه کرامو

←←←← قُلْتُ : وَيُحْتَمَلُ أَنَّ الْمُرَادَ فَيَضْرِبُ رِجْلِيْ بِسَبَبِ الرَّاحِلَةِ أَيْ يَضْرِبُ رِجْلِيْ عَامِدًا لَهَا فِيْ صُوْرَةِ مَنْ يَضْرِبُ الرَّاحِلَةَ ، وَيَكُوْنُ قَوْلُهَا " بِعِلَّةِ " مَعْنَاهُ : بِسَبَبٍ . وَالْمَعْنٰى أَنَّهُ يَضْرِبُ رِجْلَهَا بِسَوْطٍ أَوْ عَصًا أَوْ غَيْرِ ذٰلِكَ حِيْنَ تَكْشِفُ خِمَارَهَا عَنْ عُنُقِهَا غَيْرَةً عَلَيْهَا . فَتَقُوْلُ لَهُ هِيَ : وَهَلْ تَرٰى مِنْ أَحَدٍ ؟ أَيْ نَحْنُ فِيْ خَلَاءٍ لَيْسَ هُنَا أَجْنَبِيٌّ أَسْتَتِرُ مِنْهُ . شرح النووي على مسلم ج ۸ ص ۱۵۷ .

( فَيَضْرِبُ رِجْلِيْ بِعِلَّةِ الرَّاحِلَةِ ) المعنى أنه يضربُ رجل أخته بعود بيده عامدا لها في صورة من يضرب الراحلة حين تكشف خمارها غيرةً عليها . شرح محمد فؤاد عبد الباقي على صحيح مسلم في تشريح حديث ۱۳۲(۱۲۱۱) .

(۱) ولمّا دخل الثوار المتمردون على أمير المؤمنين عثمان بن عفان رضي الله عنه ليقتلوه حاولتْ زوجته نائلةُ بنت الفرافصة أنْ تسـتره بشعرها . فقال لها أمير المؤمنين رضي الله عنه : خذي خمارك . فلَعمري مَا دخولُهم عليَّ أعظم من حُرْمَةِ شعرك . عودة الحجاب ج ۳ ص ۱۰٦ .

حضرت عُمر ﷺ ته وویل :

يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! اَلْمَرْأَةَ الْمَرْأَةَ ! قَدْ وَقَعَ خِمَارُهَا.

اې امیر المؤمنین ! دا زَنانه ده ، دا زَنانه ده ، د سَر نه یې لوپټه اُوغورځیده .

حضرت عُمر ﷺ ورته اوفرمایل : ددې ناجائز کار ( یعنی په مرې باندې د چغې او سورو وهلو ) په وجه اوس ددې عزت نشته . (۱)

**فائده** : کله چې د زَنانه د سَر نه پړونې اُوغورځید نو صحابه کرامو رضي الله عنهم څومره وارخطاء شو چې دا زَنانه ده . ددینه معلومه شوه چې صحابه کرامو رضي الله عنهم به د زَنانه د پَردې دیر اِهتمام کولو . (۲)

# د صحابیاتو مخونه به په عامو حالاتو کې د پړدو سره نه پټ وو

د صحابیاتو مخونه به په عامو حالاتو کې د پرَدو سره نه پټ وو ، هر چا ته به ددې کتل آسان نه وو .

دا شرعي مسئله ده چې که څوک د کومې ښځې سره د نکاح کولو اِراده لري نو دده د پاره د هغې مخ ته کتل جائز دي . (۳)

---

(۱) وَرُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَ نَائِحَةً فَأَتَاهَا فَضَرَبَهَا بِالدِّرَّةِ حَتَّى وَقَعَ خِمَارُهَا عَنْ رَأْسِهَا. فَقِيْلَ : يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! اَلْمَرْأَةَ الْمَرْأَةَ ! قَدْ وَقَعَ خِمَارُهَا. فَقَالَ : إِنَّهَا لَا حُرْمَةَ لَهَا. تفسير القرطبي ج ۱۸ ص ۷۵ سورة الممتحنة في تفسير آية ۱۲ .

(۲) والشاهد جزع الصّحابة رضي الله عنهم لمّا انحسر الخمار عن رأسها. عودة الحجاب ج ۳ ص ۱۰٦ .

(۳) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمْ اِمْرَأَةً فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهَا إِذَا كَانَ إِنَّمَا يَنْظُرُ إِلَيْهَا لِخِطْبَةٍ وَإِنْ كَانَتْ لَا تَعْلَمُ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۳٦۰۲ ، و رقم الحديث ۲۳٦۰۳ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۹۱۱ ، مجمع الزوائد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ إِلَىٰ مَنْ يُرِيْدُ تَزْوِيْجَهَا رقم الحديث ۷۲۵۵ وقال الهيثمي : رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالطَّبَرَانِيُّ فِي الْأَوْسَطِ، وَالْكَبِيْرِ، وَرِجَالُ أَحْمَدَ رِجَالُ الصَّحِيْحِ . شرح معاني الآثار رقم الحديث ۴۲۷۹۰ .
کله چې په تاسو کې څوک یوې ښځې ته د نکاح پیغام ورلیږي نو په ده باندې څه گناه نشته چې هغې ته اوگوري خو شرط دادی چې دا هغې ته د نکاح کولو په غرض گوري اگر چې هغه پوهه نه وي . ( خو دلذت حاصلولو په غرض به نه ورگوري ) .

نو په صحابه کرامو کې به چې چا د کومې ښځې سره د نکاح کولو اِراده اوکړه او د هغې مخ به يې کتل غوښتل نو په آسانه به يې نه شو کتلی ، بلکه مختلف حيلې به يې ورته جوړولی ، نو که د زَنانه ؤ مخونه هر وخت ښکاره وی نو بيا دومره حيلو جوړولو ته څه ضرورت ؤ ؟ ددې په باره کې درته يو څو احاديث ذکر کوم :

۱ . حضرت جابر ﷺ د نبي عليه السلام دا حديث نقل کوي :

إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمُ الْمَرْأَةَ فَإِنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَا يَدْعُوهُ إِلَى نِكَاحِهَا فَلْيَفْعَلْ .

کله چې په تاسو کې يو کس يوې ښځې ته د نکاح پيغام ورليږي ( يعنی د هغې سره د نکاح کولو اِراده لري ) نو که دده طاقت وي چې د هغې هغه ځای ( مخ او لاسونو ) ته اوګوري چې ده ته پرې د هغې سره د نکاح کولو رغبت پيدا کيږي نو دا کار دې اوکړي ( يعنی هغې ته دې اوګوري ) .

حضرت جابر ﷺ فرمايي چې ما يوې جينۍ ته د نکاح پيغام وراُوليږل بيا به زه د هغې ليدلو ته پټيدم ، تر دې چې ما د هغې هغه ځای ( مخ ) اُوليد چې ماته يې د هغې سره د نکاح رغبت راپيدا کړو ، بيا ما د هغې سره نکاح اوکړه .(۱)

**د مذکوره حديث نه معلومې شوې خبرې** : ددې حديث نه معلومه شوه چې څوک د کومې ښځې سره د نکاح کولو اراده لري هغې ته يو نظر کتل جائز دي ځکه که په کتلو سره يې خوَښه شي نو د نکاح نه پس به بيا پښيمانه نه وي ځکه ده به ځان ته پخپله خوَښه کړي وي

ددې حديث نه بله خبره دا هم معلومه شوه چې د صحابياتو مخونه به په عامو حالاتو کې د پَردو سره د وړاندې پټ وو ؛ ځکه که چيرته هر وخت د هغوی مخونه ښکاره وی نو بيا نبي عليه السلام ولې فرمايل :

---

(۱) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمُ الْمَرْأَةَ فَإِنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَا يَدْعُوهُ إِلَى نِكَاحِهَا فَلْيَفْعَلْ » ، قَالَ: فَخَطَبْتُ جَارِيَةً فَكُنْتُ أَتَخَبَّأُ لَهَا حَتَّى رَأَيْتُ مِنْهَا مَا دَعَانِي إِلَى نِكَاحِهَا وَتَزَوُّجِهَا فَتَزَوَّجْتُهَا . سنن ابي داؤد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَنْظُرُ إِلَى الْمَرْأَةِ وَهُوَ يُرِيدُ تَزْوِيجَهَا رقم الحديث ۲۰۸۲ قال الالباني : حسن . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۴۵۸۶ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۱۷۳۸۹ .

فَإِنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَنْظُرَ . که دده د هغې د لیدلو طاقت وي .

ددینه معلومه شوه چې د زَنانه ؤ مخونه کتل به آسان نه وو .

بل دا چې که د زَنانه ؤ مخونه کتل آسان وی نو بیا ولې حضرت جابر ﷺ د هغې زَنانه د لیدلو د پاره پټیدلو ؟

پس معلومه شوه چې د زَنانه ؤ مخونه به په عامو حالاتو کې پټ وو ، مخ به یې صرف په هغه ځای کې ښکاره کولو چې هغې ته به معلومه چې دلته څوک پرَدي سړي نشته . (۱)

۲ . محمد بن مسلمة ﷺ فرمایي :

خَطَبْتُ امْرَأَةً . فَجَعَلْتُ أَتَخَبَّأُ لَهَا حَتَّى نَظَرْتُ إِلَيْهَا فِي نَخْلٍ لَهَا .

ما د یوې ښځې سره د نکاح کولو اراده اوکړه نو زه به د هغې لیدلو ته پټیدم ، تر دې چې ما هغې ته د هغې د قجورو په اُونو کې اوکتل .

محمد بن سلمة ﷺ ته چا وویل :

أَتَفْعَلُ هٰذَا وَأَنْتَ صَاحِبُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟

آیا ته دا کار کوی (یعنی پرَدی ښځې ته ګوری) حالانکه ته خو د رسولُ الله ﷺ صحابي یی ؟

ده ورته وویل : ما د رسولُ الله صلی الله علیه وسلم نه اَوریدلي دي چې فرمایل یی :

إِذَا أَلْقَى اللهُ فِيْ قَلْبِ امْرِئٍ خِطْبَةَ امْرَأَةٍ . فَلَا بَأْسَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهَا .

کله چې الله تعالی د یو کس په زړه کې د یوې ښځې سره د نکاح کولو اِراده واچوي نو بیا

(۱) وفي هذا الحديث دليلٌ مِن وجهين: الأوّل: أنّ قوله صلى الله عليه وسلم: "فإن استطاع أن ينظر..." يدلّ على أنّ النظرَ إلى النّساء لم يكن سهلاً. بل كان لاهنّ لهنّ من حيل وتصرفات. ولو كانت النساء يخرجْنَ سافرات الوجوه في ذلك الزمان لم يكن لاشتراط الاستطاعة في النظر إليهن معنى.

والثاني: ما فعله جابر ﷺ من الاختباء تحت الكرب دليلٌ على أنّ النّساء لم يكن يترُكْنَ الحجاب إلّا إذا علِمْنَ أنّهن في أمنٍ مِن نظر الرّجال. عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۵۲ .

څه پرواه نشته چې هغې ته اوګوري. (۱)

۴. حضرت مغيره بن شعبه ﷜ فرمايي چې زه نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته راغلم او دوی ته مې د يوې ښځې تذکره اوکړه چې زه د هغې سره نکاح کول غواړم ، دوی راته اوفرمايل : اِذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَجْدَرُ أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا .

ته لاړ شه ، هغه اوګوره ځکه دا ډيره ښه ده چې ستاسو په مينځ کې محبت دائمي پاتې شي.

حضرت مغيره ﷜ فرمايي چې زه د أنصارو يوې ښځې ته راغلم ، ددې مور او پلار ته مې ددې د نکاح پيغام ورکړو ( چې دا ماته په نکاح راکړئ ) ، او ما ورته د نبي عليه السلام خبره هم اوکړه " چې ورشه وې ګوره " .

فَكَأَنَّهُمَا كَرِهَا ذٰلِكَ . ګويا چې دوی ددې ښځې کتل بَد اوګنړل.

نو ما د هغه ښځې خبرې واوريدی حالانکه هغه په پَرده کې ناسته وه ، وې ويل :

إِنْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَكَ أَنْ تَنْظُرَ . فَانْظُرْ . وَإِلَّا فَأَنْشُدُكَ .

که چيرته رسولُ الله ﷺ تاته زما د کتلو حکم کړې وي نو بيا ماته اوګوره ، او که حکم يې درته نه وي کړی نو بيا زه تاته د الله ﷻ قسَم درکوم چې ماته مه ګوره .

نو دې ښځې هم د رسولُ الله ﷺ د حکم نه بغير کتل ډيره غټه د ګناه خبره اُوګنړله .

حضرت مغيره بن شعبة ﷜ فرمايي : بيا ما هغې ښځې ته اُوکتل او نکاح مې ورسره اوکړه . (۲)

---

(۱) عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مَسْلَمَةَ ﷜ . قَالَ : خَطَبْتُ امْرَأَةً . فَجَعَلْتُ أَتَخَبَّأُ لَهَا حَتَّى نَظَرْتُ إِلَيْهَا فِي نَخْلٍ لَهَا . فَقِيْلَ لَهُ: أَتَفْعَلُ هٰذَا وَأَنْتَ صَاحِبُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقَالَ : سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: « إِذَا أَلْقَى اللهُ فِي قَلْبِ امْرِئٍ خِطْبَةَ امْرَأَةٍ . فَلَا بَأْسَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهَا » . سنن ابن ماجة كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ إِلَى الْمَرْأَةِ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا رقم الحديث ۱۸۶۴ قال الالباني: صحيح . مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۱۷۳۹۰ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۵۰۰ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۷۹۷۶ ، سنن سعيد بن منصور رقم الحديث ۵۱۹ ، شرح معاني الآثار ۱۳/۳ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۰۴۲ ، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم ۱۲۸۲

(۲) عَنِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ ﷜ . قَالَ : أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ لَهُ امْرَأَةً أَخْطُبُهَا . فَقَالَ : «اِذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَجْدَرُ أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا » . فَأَتَيْتُ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ . فَخَطَبْتُهَا إِلَى أَبَوَيْهَا . ←←←

**فائده** : ددې دوه احادیثو نه یو څو خبرې معلومې شوی :

اول دا چې د زَنانه وُ د پاره پَرده لازم ده ، بغیر ضرورته د سرو د پاره هغې ته کتل جائز ندي ، ځکه خو خلقو د محمد بن سلمة ﷺ د هغه زَنانه لیدلو ته پټیدل بَد اوګنړل ، خو چې کله ده ورته د نبي علیه السلام خبره اوکړه چې هغوی ددې اجازت کړی " چې د چا د کومې ښځې سره د نکاح کولو اِراده وي نو هغې ته کتل جائز دي " نو بیا هغه خلق مطمئن شو .

همدارنګې چې کله حضرت مغیره بن شعبة ﷺ د هغه جینۍ مور او پلار ته خبره اوکړه چې زه دیته کتل غواړم نو هغوی دا خبره بده اُوګنړله ، خو بیا هغه جینۍ د رسولُ الله صلی الله علیه وسلم حکم ته اُوکتل او ددې اجازت یې ورکړو .

نو که د سړي د پاره پرَدو ښځو ته بِلا ضرورت کتل جائز وی نو بیا دوی ولې دا کار ناآشنا ګنړل ؟

د مذکوره احادیثو نه بله خبره دا هم معلومه شوه چې صحابیاتو به د پرَدو سړو نه پوره پَرده کوله ، ځکه که چیرته د پرَدو سړو د وړاندې د دوی مخونه ښکاره وی نو بیا صحابه کرامو د هغو ښځو د کتلو د پاره دومره حیلې ولې کولی د کومو سره یې چې د نکاح کولو اِراده لرله ؟ او بیا یې ولې د دوی د لیدلو د پاره دومره مشقّتونه برداشت کول ؟ (۱)

---

←←←← وَأَخْبَرْتُهُمَا بِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، فَكَأَنَّهُمَا كَرِهَا ذٰلِكَ ، قَالَ : فَسَمِعَتْ ذٰلِكَ الْمَرْأَةُ ، وَهِيَ فِي خِدْرِهَا ، فَقَالَتْ : إِنْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَكَ أَنْ تَنْظُرَ ، فَانْظُرْ ، وَإِلَّا فَأَنْشُدُكَ . كَأَنَّهَا أَعْظَمَتْ ذٰلِكَ ، قَالَ : فَنَظَرْتُ إِلَيْهَا فَتَزَوَّجْتُهَا . فَذَكَرَ مِنْ مُوَافَقَتِهَا . سنن ابن ماجة كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ إِلَى الْمَرْأَةِ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا رقم الحديث ۱۸۶۶ قال الالباني : صحيح . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۸۱۳۷ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۵۲ ، سنن سعيد بن منصور رقم الحديث ۵۱۶ ، سنن الترمذي أَبْوَابُ النِّكَاحِ بَابُ مَا جَاءَ فِي النَّظَرِ إِلَى الْمَخْطُوبَةِ رقم الحديث ۱۰۸۷ ، سنن النسائي رقم الحديث ۳۲۳۵ .

(۱) قال التويجري رَحِمَهُ اللهُ : وفي هٰذا الحديث والحديثين قبله دليلٌ على مشروعيّة احتجاب النّساء مِنَ الرّجال الأجانب ، ولهذا أنكروا على محمد بن مسلمة ﷺ لمّا أخبرهم أنّه تخبأ لمخطوبته حتى نظر إليها وهي لا تشعر . فأخبرهم أنّ النّبيّ صلى الله عليه وسلم قد رخّص في ذلك للخاطب .

وكذلك المغيرة بن شعبة رضي الله عنه لما طلب النّظر إلى المخطوبة كَرِه ذلك والداها ، وأعظمت ذلك المرأة وشدّدت على المغيرة ثم مكّنته من النظر إليها طاعة لأمر رسول الله صلى الله عليه وسلم . ←←←←←←

که چیرته مونږ په احادیثو کې د صحابه کرامو او تابعینو د بیبیانو احوال اوګورو نو د ټولو په باره کې راځي چې د پَرَدو سرو د ورانديې به يې مخونه پټ وو ، د داسې يوې څوانې ښځې "صحابيې او تابعيې" په باره کې ندي نقل شوي چې هغې د پَرَدو سرو د ورانديې خپل مخ ښکاره کول ، او که چیرته د کومې زَنانه په باره کې منقول وي نو هغه به د يوې مَجهولې زَنانه حال نقل وي هلته به صراحةً دا ذکر نه وي " چې دا څوانه وه او که بوډۍ ؟ آزاده وه او که وينځه وه ؟ "

لهذا د ټولو صحابياتو او تابعياتو مخونه به د پَرَدو سرو د ورانديې پټ وو .(۱)

←←←← وفي هذه الأحاديث أيضا بيان ما كان عليه نساء الصّحابة رضي الله عنهم من المبالغة في التّستّر من الرّجال الأجانب. ولهذا لم يتمكن جابر ومحمد بن مسلمة رضي الله عنهما من النّظر إلى المخطوبة إلّا من طريق الاختباء والاغتفال. وكذلك المغيرة ﷺ لم يتمكن من النّظر إلى مخطوبته إلّا بعد إذنها له في النّظر إليها . الصارم المشهور ص ۹۴ .

وقال الشيخ أبو هشام الأنصاري رَحِمَهُ اللَّهُ معلقا على حديث المغيرة رضي الله عنه: وهٰذا الحديث يدلّ أيضًا على أنّ النساء كنّ قائمات بالتستّر بحيث لم يكن الرجل يقدر على أنْ يراهنّ إلا بالحيل والتّصرفات. أو إلّا أن يسمحن له بالرؤية. ولو كنّ يخرجنَ سافرات الوجوه. كاشفات الخدين. مكتحلات العينين. مخضوبات الكفين لم يكن الرّجال يحتاجون إلى تجشّم هذه المشقات في رؤيتهن . عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۵۳ .

(۱) مَنْ تَتَبَّعَ حَالَ الصَّحَابِيَّاتِ وَالتَّابِعِيَّاتِ وَجَدَ أَنَّ حِجَابَهُنَّ وَسَتْرَهُنَّ لَا يَخْتَلِفُ فِي السَّتْرِ التَّامِّ لِلْمَرْأَةِ ، وَأَنَّ عَمَلَهُنَّ كُلَّهُنَّ عَلَى تَغْطِيَةِ الْوُجُوهِ . وَلَا أَعْلَمُ صَحَابِيَّةً وَلَا تَابِعِيَّةً حُرَّةً شَابَّةً مَعْرُوفَةَ الْحَالِ تَكْشِفُ وَجْهَهَا . وَإِنْ نُقِلَ فَيُنْقَلُ عَنْ مَجْهُولَةِ الْحَالِ . فَلَا يُبَيِّنُ النَّصُّ الْمَنْقُولُ حَالَهَا عَجُوزًا أَمْ شَابَّةً . حُرَّةً أَمْ أَمَةً . وَقَدْ كَانَ عَمَلُهُنَّ عَلَى تَغْطِيَةِ الْوَجْهِ . وَقَدْ جَاءَ ذٰلِكَ فِي أَحَادِيثَ كَثِيرَةٍ . الحجاب في الشرع والفطرة ص ۱۲۴ .

# د لېوَر نه د پَردې حکم

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوفرمايل:

إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ.

تاسو پرَدی (اَجنبي) ښځو ته د ورتللو نه ځان اُوساتئ، (ځانله ورسره مه کينئ).

د اَنصارو يو سړي عرض اوکړو: يَا رَسُوْلَ اللهِ! أَفَرَأَيْتَ الْحَمْوَ؟

اې د الله رسوله! د لېوَر (د خاوَند ورور) په باره کې څه حکم دی؟ (آيا دده د پاره هم همدا حکم دی؟)

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل: اَلْحَمْوُ الْمَوْتُ. لېوَر خو مرګ دی. (۱)

**د حديث تشريح**: "حَمْو" په عربي کې د خاوند نزدې رِشته دارو ته وايي خو بغير د خاوند د پلار او د خاوند د ځوي نه. نو د "حَمْو" نه مراد: د خاوند ورور، د خاوند وَراره، د خاوند تره، د خاوند د تره ځوي، او د خاوند نور نزدې رِشته دار مراد دي. (۲)

---

(۱) عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ» فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! أَفَرَأَيْتَ الْحَمْوَ؟ قَالَ: «اَلْحَمْوُ الْمَوْتُ». صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا ذُو مَحْرَمٍ. وَالدُّخُولُ عَلَى الْمُغِيبَةِ رقم الحديث ۵۲۳۲، صحيح مسلم كتاب السَّلَامِ بَابُ تَحْرِيمِ الْخَلْوَةِ بِالْأَجْنَبِيَّةِ وَالدُّخُولِ عَلَيْهَا رقم الحديث ۲۰(۲۱۷۲). سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۱، مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ إِلَى الْمَخْطُوبَةِ وَبَيَانِ الْعَوْرَاتِ اَلْفَصْلُ الاول رقم الحديث ۳۱۰۲(۵).

(۲) (أَفَرَأَيْتَ الْحَمْوَ؟) قَالَ ابْنُ الْمَلَكِ: أَيْ أَخْبِرْنِي عَنْ دُخُولِ الْحَمْوِ عَلَيْهِنَّ وَهُوَ بِفَتْحِ الْحَاءِ وَكَسْرِهَا وَسُكُونِ الْمِيمِ وَاحِدُ الْإِحْمَاءِ وَهُمْ أَقَارِبُ الزَّوْجِ غَيْرِ آبَائِهِ وَأَبْنَائِهِ. مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۱.

قال الامام النووي رَحِمَهُ اللهُ: وَالْمُرَادُ بِالْحَمْوِ هُنَا أَقَارِبُ الزَّوْجِ غَيْرُ آبَائِهِ وَأَبْنَائِهِ. فَأَمَّا الْآبَاءُ وَالْأَبْنَاءُ فَمَحَارِمُ لِزَوْجَتِهِ تَجُوزُ لَهُمُ الْخَلْوَةُ بِهَا وَلَا يُوصَفُونَ بِالْمَوْتِ. وَإِنَّمَا الْمُرَادُ: الْأَخُ وَابْنُ الْأَخِ. وَالْعَمُّ وَابْنُهُ وَنَحْوُهُمْ مِمَّنْ لَيْسَ بِمَحْرَمٍ. شرح النووي على مسلم ج ۱۲ ص ۱۵۴.

امام ترمذي رَحِمَهُ اللَّهُ د " حَمُو " نه مراد د خاوند ورور اخیستې دی. (۱)

په دې حدیث کې نبي علیه السلام سرې ددینه منع کړل چې پردو ښځو ته ورشي او د هغوی سره ځانله کیني. کله چې یو کس د لېوَر په باره کې پوښتنه اوکړه چې دده څه حکم دی؟ نو نبي علیه السلام ورته اوفرمایل؛ لېور خو مرګ دی. یعنی لکه څرنګې چې د مرګ نه ځان ساتل په کار دي نو همدغه شان د ښځې د پاره د لېوَر (او د خاوند د نورو رِشته دارو) نه هم ځان ساتل په کار دي.

زَنانه دا ګمان کوي چې ګني دا زما د خاوند رِشته دار دي نو پَرده ورنه نه کوي، او دا خلق هم کور ته آزادانه طریقې سره ډېر ځي راځي، حالانکه فِتنه د دوی نه ډېره زر پیدا کیږي، د پرَدې ګاوندي نه دومره خطره نه وي څومره چې د خاوند د نزدې خپلوانو نه وي؛ ځکه دوی ته د دې ښځو سره د ځانله کیناستلو موقع ډېره پیدا کیږي، نو د فِتنې خطر ورنه هم زیات وي. نو ځکه رسولُ الله صلی الله علیه وسلم د لېوَر نه د پَردې کولو سخت تاکید اوکړو، چې لکه څرنګې د مرګ نه ځان ساتل په کار دي نو همدغه شان د ښځې د پاره د خپل لېوَر نه هم ځان ساتل په کار دي. (۲)

---

(۱) امام ترمذي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي: وَمَعْنَى قَوْلِهِ: «اَلْحَمْوُ»، يُقَالُ: هُوَ أَخُو الزَّوْجِ. كَأَنَّهُ كَرِهَ لَهُ أَنْ يَخْلُوَ بِهَا.
سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ في تشريح رقم الحديث ۱۱۷۱.

(۲) (قَالَ: اَلْحَمْوُ الْمَوْتُ) أَيْ دُخُولُهُ كَالْمَوْتِ مُهْلِكٌ يَعْنِي الْفِتْنَةَ مِنْهُ أَكْثَرُ لِمُسَاهَلَةِ النَّاسِ فِي ذٰلِكَ. وَهٰذَا عَلَى حَدِّ الْأَسَدِ الْمَوْتُ وَالسُّلْطَانِ النَّارُ أَيْ قُرْبُهُمَا كَالْمَوْتِ وَالنَّارِ، أَيْ فَالْحَذَرُ عَنْهُ كَمَا يُحْذَرُ عَنِ الْمَوْتِ. قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ: مَعْنَاهُ: فَلْيَمُتْ وَلَا يَفْعَلْ ذٰلِكَ. أَوْ مَعْنَاهُ خَلْوَةُ الرَّجُلِ مَعَ الْحَمُوَّةِ يُؤَدِّي إِلَى زِنَاهَا عَلَى وَجْهِ الْإِحْصَانِ فَيُؤَدِّي ذٰلِكَ إِلَى الرَّجْمِ. مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۱.

قال الامام النووي رَحِمَهُ اللَّهُ: وَأَمَّا قَوْلُهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اَلْحَمْوُ الْمَوْتُ " فَمَعْنَاهُ: أَنَّ الْخَوْفَ مِنْهُ أَكْثَرُ مِنْ غَيْرِهِ وَالشَّرُّ يُتَوَقَّعُ مِنْهُ وَالْفِتْنَةُ أَكْثَرُ، لِتَمَكُّنِهِ مِنَ الْوُصُولِ إِلَى الْمَرْأَةِ وَالْخَلْوَةِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُنْكَرَ عَلَيْهِ بِخِلَافِ الأجنبي..... وَعَادَةُ النَّاسِ الْمُسَاهَلَةُ فِيهِ وَيَخْلُو بِامْرَأَةِ أَخِيهِ فَهٰذَا هُوَ الْمَوْتُ وَهُوَ أَوْلَى بِالْمَنْعِ مِنَ الْأَجْنَبِيِّ. شرح النووي على مسلم ج ۱۴ ص ۱۵۴.

قَالَ ابْنُ الْأَثِيرِ رَحِمَهُ اللَّهُ: يَعْنِي أَنَّ خَلْوَةَ الْحَمِ مَعَهَا أَشَدُّ مِنْ خَلْوَةِ غَيْرِهِ مِنَ الْغُرَبَاءِ، لِأَنَّهُ رُبَّمَا ←←←

دا حديث واضح دليل دی پدې باندې چې سرې به په پردی بنځو باندې نه داخليږي او د هغوی سره به ځانله نه کيني .

همدارنګې په دې حديث کې نبي عليه السلام بنځه په ډيرې واضحې طريقې سره د لېوَر نه يرولی ، چې ليوَر ته مرګ ويل شوی ، حالانکه په دُنيا کې په انسان باندې غټه حادِثه د مرګ ده . (۱)

محترمو مسلمانانو ! تاسو د حديث دې الفاظو ته سوچ اوکړئ چې نبي عليه السلام لېوَر د دينه منع کړی چې په ورَندار باندې ورداخل شي ، نو چې صرف داخليدل حرام شو نو بيا د ورَندار سره ځانله کيناستل ، يا د هغې سره ګپ شپ لږول خو په طريقِ اولی باندې حرام دي . (۲)

←←← حَسَّن لَهَا أَشْيَاءَ وحَمَلَهَا عَلَى أُمُورٍ تَثْقُلُ عَلَى الزَّوجِ مِنَ الِتِمَاسِ مَا لَيْسَ فِي وُسْعِهِ ، أَوْ سُوءِ عِشْرَةٍ أَوْ غَيْرِ ذَلِكَ. وَلِأَنَّ الزَّوْجَ لَا يُؤْثِرُ أَنْ يَطَّلِعَ الحَمُ عَلَى بَاطِنِ حَالِهِ بِدُخُولِ بَيْتِهِ . النهاية في غريب الحديث والأثر ج ۱ ص ۴۴۸ مادة حما .

( اَلْحَمْوُ الْمَوْتُ ) لقاؤه الهلاك لأن دخوله أخطر من دخول الأجنبي وأقرب إلى وقوع الجريمة لأن الناس يتساهلون بخلطة الرجل بزوجة أخيه والخلوة بها فيدخل بدون نكير . فيكون الشر منه أكثر والفتنة به أمكن . تعليق مصطفى البغا على صحيح البخاري في تشريح حديث ۵۲۳۲ .

(۱) قال الأمين الشنقيطي رَحِمَهُ اللهُ : (قَالَ : اَلْحَمْوُ الْمَوْتُ) فَهَذَا الحَدِيثُ الصَّحِيحُ صَرَّحَ فِيهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالتَّحْذِيرِ الشَّدِيدِ مِنَ الدُّخُولِ عَلَى النِّسَاءِ، فَهُوَ دَلِيلٌ وَاضِحٌ عَلَى مَنْعِ الدُّخُولِ عَلَيْهِنَّ وَسُؤَالِهِنَّ مَتَاعًا إِلَّا مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ؛ لِأَنَّ مَنْ سَأَلَهَا مَتَاعًا لَا مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ فَقَدْ دَخَلَ عَلَيْهَا، وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَذَّرَهُ مِنَ الدُّخُولِ عَلَيْهَا، وَلَمَّا سَأَلَهُ الأَنْصَارِيُّ عَنِ الحَمْوِ الَّذِي هُوَ قَرِيبُ الزَّوْجِ الَّذِي لَيْسَ مَحْرَمًا لِزَوْجَتِهِ، كَأَخِيهِ وَابْنِ أَخِيهِ وَعَمِّهِ وَابْنِ عَمِّهِ وَنَحْوِ ذَلِكَ قَالَ لَهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « اَلْحَمْوُ الْمَوْتُ » . فَسَمَّى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دُخُولَ قَرِيبِ الرَّجُلِ عَلَى امْرَأَتِهِ وَهُوَ غَيْرُ مَحْرَمٍ لَهَا بِاسْمِ الْمَوْتِ، وَلَا شَكَّ أَنَّ تِلْكَ الْعِبَارَةَ هِيَ أَبْلَغُ عِبَارَاتِ التَّحْذِيرِ ، لِأَنَّ الْمَوْتَ هُوَ أَفْظَعُ حَادِثٍ يَأْتِي عَلَى الإِنْسَانِ فِي الدُّنْيَا . اضواء البيان في إيضاح القرآن بالقرآن ج ۶ ص ۲۴۸ سورة البقرة في تشريح آية ۵۳ ، نضرة النعيم ج ۴ ص ۱۵۱۴ الحجاب .

(۲) قال الحافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ : وَتَضَمَّنَ مَنْعُ الدُّخُولِ مَنْعَ الخَلْوَةِ بِهَا بِطَرِيقِ الأَوْلَى . فتح الباري ۹/ ۳۳۱

## د ورندار سره لاس ملاوول

په **فتاوى عثمانيه** کې ذکر دي : د شرعي ضرورت نه بغير د پردې ښځې مخ ، لاس ، خپې ، يا د بدن نورې حصې مَسه کول حرام دي.

ورَندار ( يعنى د وورور ښځه ) هم نَامَحرَمه ده ، د لېوَر د پاره د ( ځوانې ) ورَندار سره لاس ملاوُول ناجائز دي.

فقهاؤ ليکلي : وَلَا تَحِلُّ الْمُصَافَحَةُ إِنْ كَانَتْ تَشْتَهِيْ .(۱)

که چيرته (پرَدې ښځه) مُشتهاته وه نو بيا ورسره مصافحه کول حلال نده.(۲)

## د زَنانه ؤ غلطي

د بعضې ښځو سره په کور کې يو ځاى وروکې لېوَر وي ، چې کله دا غټ شي نو دا ښځه ورنه بيا پَرده نه کوي ، که څوک دينه د پَردې اُوواييي نو دا ورته په جواب کې وايي :

" چې دا خو د ماسره وروکې راغټ شوى دا خو زما د ځوي په ځاى دى ، نو څنګه دده نه پَرده اوکړم ؟ "

ددې جواب دادى چې په مذکوره حديث کې خو لېوَر ته مرګ ويل شوى ، يعنى دده نه داسې ځان ساتل په کار دي لکه د مرګ نه چې څوک ځان ساتي . اوس ددې حديث په مقابله کې د ځان نه خبرې کول ندي په کار.

او که ښځې ته خاوند دا اجازت هم اوکړي " چې ددې پرَدي سړي نه پَرده مه کوه " نو په دې کې د خاوند اجازت معتبر ندى ، ځکه پرده د شريعت حق دى ، زَنانه ته چې د کومو خلقو نه د پَردې حکم شوې وي دا به د هغوى نه پَرده کوي ، د خاوند خلافِ شريعت خبرو ته هيڅ

---

(۱) د فائدې د پاره درته پوره عبارت رانقل کوم : وَأَمَّا الْمَسُّ فَيحرم سَوَاء عَن شَهْوَة أَو عَن غير شَهْوَة . وَهٰذَا إِذَا كَانَت شَابة . فَإِنْ كَانَت عجوزا فَلَا بَأْس بالمصافحة إِنْ كَانَ غَالب رَأْيه أَنَّه لَا يَشْتَهِي وَلَا تحل المصافحة إِن كَانَت تشْتَهِيْ وَإِن كَانَ الرجل لَا يَشْتَهِي . فَإِن كَانَ عِند الضَّرُورَة فَلَا بَأْس بِالنظر وَإِن كَانَ يَشْتَهِي كَالْقَاضِي وَالشَّاهِد ينظر إِلَى وَجههَا عِند الْقَضَاء وَتحمل الشَّهَادَة . أَو كَانَ يُرِيد تزوجهَا لِأَن الْغَرَض لَيْسَ هُوَ اقْتِضَاء الشَّهْوَة على مَا رُوِيَ عَن النَّبِي عَلَيْهِ السَّلَام أَنه قَالَ لِلْمُغِيرَة بن شُعْبَة رضي الله عنه : لَو نَظَرت إِلَيْهَا لَأَحْرَى أَن يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا . تحفة الفقهاء ج ۳ ص ۳۳۳ کتاب الإستحسان

(۲) فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۹۲ الحجاب .

اعتبار نشته . (۱) لهذا د زَنانه د پاره د خپل خاوند په ژوند کې او د خاوند د مرګ نه پس هم د لېوَر نه پَرده په کار ده . (۲)

## د تره ښځې او ماما ښځې نه هم پَرده ضروري ده

د تره ښځه او ماما ښځه شرعًا اَجنبي (نامَحرَمې) دي ، د دوی نه هم داسې پَرده ضروري ده لکه د پرَديو ښځو نه چې پَرده ضروري ده .

برابره خبره ده که دا یې د سَکه تره او سَکه ماما ښځې وي او که د نَاسکه تره او ناسکه ماما ښځې یې وي خو د دواړو نه پَرده ضروري ده . (۳)

دا قاعده ده چې د کومې ښځې سره نکاح جائز وي د هغې نه پَرده هم ضروري ده .

کله چې د تره ښځه کونډه شي ، یا ورته خاوند طلاق ورکړي نو ددې سره نکاح جائز ده . لهذا پَرده ورنه هم ضروري ده .

یعنی ښځه به د خپل لېوَر زي ( د لېور د ځوي ) نه هم پَرده کوي . (۴)

## پرَدي کس ته ځوي ، یا ورور یا پلار ویلو سره پَرده نه معاف کیږي

که یوه ښځه پرَدي کس ته ځوي اُووایي ، یا ورته ورور اُووایي ، یا ورته پلار اُووایي نو په دې سره دا کس ددې ځوي ، ورور او پلار نه جوړیږي ، دا به اوس هم د هغه نه پَرده کوي .

ځکه په شریعت کې چاته د ځوي ویلو ، یا ورور ویلو یا پلار ویلو هیڅ حیثیت نشته ، بلکه دا اوس هم اَجنبي دي ، په قرآن کریم کې خو صراحةً چاته د ځوي ویلو نه منع راغلې .

---

(۱) شرعی پردہ لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۴۵ .

(۲) فتاوی محمودیہ ج ۲۸ ص ۹۷ جن سے پردہ ضروری ہے .

(۳) (عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِيَّاكُمْ وَالدُّخُوْلَ عَلَى النِّسَاءِ ) أَيْ عِنْدَ الْمُحَرَّمَاتِ عَلَى طَرِيْقِ التَّخْلِيَةِ أَوْ عَلَى وَجْهِ التَّكَشُّفِ . مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۱ في تشريح حديث ۳۱۰۲ ، فتاوی محموديه ج ۲۸ ص ۱۰۳ جن سے پردہ ضروری ہے . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۵۲ پردہ . امداد الفتاوی ج ۴ ص ۱۷۷ طبع دار العلوم کراچي .

(۴) وَقَوْلُهُ: { وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَلِكُمْ } أَيْ: ما عدا من ذكرن مِنَ الْمَحَارِمِ هُنَّ لَكُمْ حَلَالٌ. قَالَهُ عَطَاءٌ وَغَيْرُهُ. تفسير ابن كثير ( تفسير القرآن العظيم ) ج ۲ ص ۲۵۸ النساء آية ۲۴ . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۷۰ پردہ .

بعضې زَنانه دا غلطي کوي چې یو کس ته خُوي یا ورور اُووایي نو بیا د هغه نه پَرده نه کوي. همدارنګې بعضې سړي هم دا غلطي کوي چې یوې ښځې ته لور یا خور یا مور اُووایي او بیا ورنه پَرده نه کويْ حالانکه په اسلام کې ددې هیڅ حیثیت نشته.

ځکه پَردی ښځې ته لور یا خور یا مور ویلو نه پس هم د هغې سره نکاح جائزه ده، او چې د چا سره نکاح جائز وي د هغې نه پَرده ضروري ده. (۱)

دا مسئله ده چې که زَنانه ته بل څوک یو هلک ورکړي او دا یې راغټ کړي، خُوي ورته اُووایي (یعنی مُتَبَنّٰی یې جوړ کړي)، او ددې هلک سره ددې زَنانه د مَحرَمِیَت څه رِشته نه وي او دې زَنانه دې ماشوم ته سِینه هم نه وي ورکړي نو چې کله دا هلک راغټ شي دا زَنانه به ورنه پَرده کوي، ځکه صرف په خُله ویلو سره پَردې هلک د چا خُوي نه جوړیږي.

په قرآن کریم کې ذکر دي: ﴿ وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَاءَكُمْ أَبْنَاءَكُمْ ذَٰلِكُمْ قَوْلُكُم بِأَفْوَاهِكُمْ ﴾. (۲)

ترجمه: او الله تعالی ستاسو د خُلې ویلي ځامن (یعنی مُتَبَنّاګان) ستاسو حقیقي ځامن ندي ګرځولي، دا خو هسې ستاسو د خُلې (بې اَصله) خبره ده.

(یعنی که تاسو چاته په خُله باندې خُوي اُووایئ نو صرف په دې سره هغه ستاسو حقیقي خُوي نه جوړیږي).

## زَنانه به د خپل استاذ او خپل پیر نه هم پَرده کوي

زَنانه به د خپل اُستاذ او خپل پیر نه هم پَرده کوي؛ ځکه نبي ﷺ ته به چې کله زَنانه د څه مسئلې تپوس کولو یا د څه څیز ورکولو د پاره راتللی نو د پَردې شاته به ناستې وې.

د ابوداؤد شریف او مشکوة شریف حدیث دی، حضرت عائشة رضي الله عنها فرمایي چې د یوې ښځې سره په لاس کې څه خط وُ، دې د پَردې شاته رسول الله ﷺ ته ددې خط

(۱) ﴿ وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَاءَكُمْ أَبْنَاءَكُمْ ذَٰلِكُمْ قَوْلُكُم بِأَفْوَاهِكُمْ وَاللَّهُ يَقُولُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيلَ ۝ ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِندَ اللَّهِ فَإِن لَّمْ تَعْلَمُوا آبَاءَهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَمَوَالِيكُمْ ﴾. سورة الاحزاب آیة ۴، ۵.

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ ... صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ لاَ يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلاَّ ذُو مَحْرَمٍ. وَالدُّخُولُ عَلَى الْمُغِيبَةِ رقم ۵۲۳۲ . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۷۷ ، و ص ۸۵ پرده

(۲) الاحزاب آیة ۴ . فتاوی حقانیه ج ۱۰ ص ۹۳ الحجاب.

ورکولو اشاره اوکړه ( یعنی دا ښځه د پردې شاته ناسته وه ، لاس یې د پردې نه دومره معمولي رادیخوا کړو چې صرف د لاس ګوتې یې ښکاره کیدی ، په لاس کې ورسره خط ؤ ، دا یې نبي ﷺ ته ورکول غوښتل ) فَقَبَضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ .

نبي علیه السلام ورنه خپل لاس مبارک رادیخوا کړو .(خط یې ورنه وا نه خیست).

او وې فرمایل : مَا أَدْرِي أَيَدُ رَجُلٍ أَمْ يَدُ امْرَأَةٍ ؟

ماته پته نشته چې دا د سړي لاس دی او که د ښځې لاس دی ؟

هغې ورته وویل : دا د ښځې لاس دی .

( دې چونکه د لاس په نوکونو باندې نکریزې نه وې ایخی نو دا نه شو پیژندل چې دا د سړي لاس دی او که د ښځې ) ، نبي علیه السلام ورته اوفرمایل :

« لَوْ كُنْتِ امْرَأَةً لَغَيَّرْتِ أَظْفَارَكِ » يَعْنِي بِالْحِنَّاءِ .

که چیرته ته ښځه وی نو تا به ضرور خپل نوکونه په نکریزو سره بدل کړي وی ( یعنی نکریزې به دې پرې ایخې وی ) .(۱)

## د نن دور زنانه ؤ د پاره عبرت

د مذکوره حدیث نه دا معلومه شوه چې پردی زنانه به نبي علیه السلام ته مخامخ نه راتللی ، که د څه مسئلې تپوس به یې کولو یا به یې څه څیز ورکولو نو د پردې شاته به ناسته وه ، لکه دې زنانه چې نبي ﷺ ته خط ورکولو نو د پردې شاته یې دومره معمولي لاس رادیخوا کړو چې نبي ﷺ دا اُونه پیژندو چې دا د سړي لاس دی او که د ښځې؟ که دې لاس ډیر رادیخوا کړې وی نو نبي علیه السلام به ضرور دا د کپړو یا د لاس د ښکړو نه معلومه کړې وی چې دا ښځه ده ، خو چونکه دې صرف معمولي لاس رااُوویست نو ځکه

---

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : أَوْمَتْ اِمْرَأَةٌ مِنْ وَرَاءِ سِتْرٍ بِيَدِهَا كِتَابٌ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَقَبَضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ . فَقَالَ : « مَا أَدْرِي أَيَدُ رَجُلٍ أَمْ يَدُ امْرَأَةٍ؟ » قَالَتْ : بَلِ امْرَأَةٌ ، قَالَ: « لَوْ كُنْتِ امْرَأَةً لَغَيَّرْتِ أَظْفَارَكِ » يَعْنِي بِالْحِنَّاءِ . سنن ابی داود كِتَابُ التَّرَجُّلِ بَابٌ فِي الْخِضَابِ لِلنِّسَاءِ رقم ۴۱۶۶ قال الالباني: حسن. مشكوة المصابيح كتاب اللباس بَاب التَّرَجُّل الْفَصْل الثَّانِي رقم الحديث ۴۴۶۷ (۴۹) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۶۲۵۸ ، سنن النسائي كِتَابُ الزِّينَةِ الْخِضَابُ لِلنِّسَاءِ رقم الحديث ۵۰۸۹ .

نبي علیه السلام اُو نه پیژندو او خپل لاس یې ورنه رادیخوا کړو .

په دې حدیث کې د هغه ښځو د پاره ډیر لوي عبرت پروت دی چې هغوی تَش په نامه پیرانو مخې ته ښکاره مخ راځي او دا وایي چې " پیر خو د انسان مور او پلار وي دده نه پَرده نشته " . داسې ښځې جاهلې دي ، په دې کار سره گناهگارې دي ، دوی ته پیران نامَرد معلومیږي ، او داسې پیران هم فاسقان دي چې زَنانه ددینه نه منع کوي .

ځکه نبي علیه السلام خو د ټولو مسلمانانو ( سړو او ښځو ) رُوحاني پلار ؤ ، د هغوی نه بل څوک ډیر پاک دَامن او بزرگ نه ؤ خو بیا به هم پرَدې زَنانه مخامخ ورته نه راتللی بلکه د پَردې شاته به ناستې وی ، نو اوس به بل کوم پیر ته ددې اِجازت پیدا شي چې هغه ته پرَدې ښځې مخامخ راشي ؟ . (۱)

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللّٰهُ لیکلي چې بعضې بې حیاء ښځې د پیر نه پَرده نه کوي ، پیریې هم نه منع کوي ، او ددې ښځو خاوندان هم خپلې ښځې ددې کار نه نه منع کوي نو داسې پیران شیطانان دي او داسې خاوندان دَوُوثان دي .

د پیر او اُستاذ نه هم پَرده کول فرض ده ؛ ځکه چې کله رسول الله ﷺ پخپله د صحابیاتو نه پَرده کوله نو داسې بل څوک دی چې هغه ته د بې پَردگۍ اِجازت ملاؤ شي ؟ (۲)

د مذکوره حدیث نه یوه بله خبره دا هم معلومه شوه چې زَنانه د پاره په خپلو لاسونو او نُوکانو باندې نَکریزې اِیخودل په کار دي ددې د پاره چې د سړو د لاسونو نه یې فرق راشي، ځکه شریعت دا غواړي چې د زَنانهؤ لاسونه ، لِباس او شکل و صورت دې د سړو نه جدا وي . (۳)

## نبي ﷺ هیڅ کله د پرَدیو زَنانهؤ سره د بیعت په وخت لاس ندې ملاؤ کړی

نبي علیه السلام هیڅ کله د بیعت په وخت د پرَدیو زَنانهؤ سره لاس ندې مِلاؤ کړی بلکه صرف زُباني بیعت به یې ورنه اخیستو .

---

(۱) شرعی پردہ لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۵۴ .

(۲) ملفوظات حکیم الامت ، پردہ ضرور کروں گی ص ۱۰۲ .

(۳) شرعی پردہ لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۵۴ .

١ . د بخاري شريف حديث دى ، حضرت عائشة رضي الله عنها فرمايي :

لَا وَاللهِ مَا مَسَّتْ يَدُهُ يَدَ امْرَأَةٍ قَطُّ فِي الْمُبَايَعَةِ . مَا يُبَايِعُهُنَّ إِلَّا بِقَوْلِهِ: « قَدْ بَايَعْتُكِ عَلَى ذٰلِكِ »

قسَم په الله ، هيڅ كله د نبي عليه السلام لاس د پرَدى ښځې لاس د بيعت په وخت ندې مَسَه كړى ، نبي عليه السلام به د زَنانهؤ نه صرف په خُله باندې دا بيعت اخيستو چې : ما د تانه په دې شيانو باندې بيعت واخيست . (١)

٢ . يو ځل څه زَنانه نبي عليه السلام ته راغلى ، د زُباني اِقرار نه روستو يې دوى ته اوفرمايل :

اَللهُ وَرَسُوْلُهُ أَرْحَمُ بِنَا مِنْ أَنْفُسِنَا . هَلُمَّ نُبَايِعْكَ يَارَسُوْلَ اللهِ .

الله او د هغه رسول خو په مونږ باندې د خپلو ځانونو نه هم زيات مهربان دى اې د الله رسوله ! لاس راديخوا كړه چې د تا سره بيعت اوكړو .

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمايل :

إِنِّي لَا أُصَافِحُ النِّسَاءَ . إِنَّمَا قَوْلِي لِمِائَةِ امْرَأَةٍ كَقَوْلِي لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ .

زه د ښځو سره مصافحه نه كوم ( ما چې په ژبه درته څه وويل دا په تاسو ټولو باندې لازم دي ، او هر چا سره د ځانله ځانله بيعت ضرورت نشته ) ځكه سلو (١٠٠) ښځو ته هم زما

---

(١) پوره حديث داسې دى : عَنْ عُرْوَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ : أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْتَحِنُ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِ مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ بِهٰذِهِ الآيَةِ بِقَوْلِ اللهِ : { يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ يُبَايِعْنَكَ } .... إِلَى قَوْلِهِ { غَفُوْرٌ رَحِيْمٌ } [ الممتحنة آية ١٢ ] قَالَ عُرْوَةُ : قَالَتْ عَائِشَةُ رضي الله عنها : فَمَنْ أَقَرَّ بِهٰذَا الشَّرْطِ مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ، قَالَ لَهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « قَدْ بَايَعْتُكِ » كَلَامًا. وَلَا وَاللهِ مَا مَسَّتْ يَدُهُ يَدَ امْرَأَةٍ قَطُّ فِي الْمُبَايَعَةِ . مَا يُبَايِعُهُنَّ إِلَّا بِقَوْلِهِ: « قَدْ بَايَعْتُكِ عَلَى ذٰلِكِ » . صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ { إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ } [ الممتحنة آية ١٠ ] رقم الحديث ٤٨٩١ ، ورقم الحديث ٢٧١٣ كِتَابُ الشُّرُوطِ بَابُ مَا يَجُوزُ مِنَ الشُّرُوطِ فِي الإِسْلَامِ وَالأَحْكَامِ وَالْمُبَايَعَةِ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ٢٦٣٢٦ ، مشكوة المصابيح رقم الحديث ٤٠٢٥ (٣) باب الصلح الفصل الاول ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ١٨٨٣ ، السنن الصغير للبيهقي رقم الحديث ٢٩٥٦ ، مسند البزار رقم الحديث ١١٠ .

هماغه خبره ده کومه چې مې يوې ښځې ته ده. (۱)

## د نن دَور جاهِل پيرانو د پاره عبرت

د مذکوره دوه احاديثو نه معلومه شوه چې نبي عليه السلام هيڅ کله د پرَدي زَنانه سره د بيعت په وخت لاس ندې مِلاوُ کړی، بلکې صرف په خُله به يې ورنه بيعت اخيستو.

په دې احاديثو کې په هغه جاهِل پيرانو باندې هم رَد دی چې هغوی د بيعت په وخت د ښځو سره لاس مِلاوَوي، بلکې بعضې داسې بې دِينه پيران په کې هم شته چې هغوی په خپلو زَنانه مريدانو باندې خپې زُور کوي، ځانله ورسره ناست وي، او هغوی مخونو ته گوري نو دا ټول کارونه ناجائز دي.

علماء ليکي چې کوم پيران ښځو ته په لاس بيعت ورکوي، او ښځې ورته ښکاره مخ راځي نو داسې پيران بَدعمله او فاسقان دي، د دوی نه بيعت ماتول لازم دي، ځکه صحيح پير هغه دی چې د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طريقه باندې روان وي. (۲)

---

(۱) پوره حديث داسې دی : عَنْ أُمَيْمَةَ بِنْتِ رُقَيْقَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا . أَنَّهَا قَالَتْ : أَتَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نِسْوَةٍ بَايَعْنَهُ عَلَى الإِسْلَامِ . فَقُلْنَ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! نُبَايِعُكَ عَلَى أَنْ لَا نُشْرِكَ بِاللهِ شَيْئًا . وَلَا نَسْرِقَ ، وَلَا نَزْنِيَ ، وَلَا نَقْتُلَ أَوْلَادَنَا ، وَلَا نَأْتِيَ بِبُهْتَانٍ نَفْتَرِيْهِ بَيْنَ أَيْدِيْنَا وَأَرْجُلِنَا . وَلَا نَعْصِيَكَ فِيْ مَعْرُوْفٍ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « فِيْمَا اسْتَطَعْتُنَّ وَأَطَقْتُنَّ » . قَالَتْ : فَقُلْنَ : اَللهُ وَرَسُوْلُهُ أَرْحَمُ بِنَا مِنْ أَنْفُسِنَا . هَلُمَّ نُبَايِعْكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « إِنِّيْ لَا أُصَافِحُ النِّسَاءَ . إِنَّمَا قَوْلِيْ لِمِائَةِ امْرَأَةٍ كَقَوْلِيْ لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ أَوْ مِثْلِ قَوْلِيْ لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ » . موطا الإمام مالك كِتَابُ الْبَيْعَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْبَيْعَةِ رقم الحديث ۲ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۷۰۰۸ ، و رقم الحديث ۲۷۰۰۹ ، سنن النسائي رقم الحديث ۴۱۸۱ ، مصنف عبدالرزاق الصنعاني رقم الحديث ۹۸۲۶ ، و رقم الحديث ۹۸۳۱ ، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۱۷۲۶ ، سنن ابن ماجة باب بيعة النساء رقم الحديث ۲۸۷۴ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۵۵۳ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۴۷۰ ، و رقم الحديث ۴۷۳ ، سنن الدارمي رقم الحديث ۲۲۸۴ .

وفي رواية : عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيْدَ . قَالَتْ : أَنَا مِنَ النِّسْوَةِ اللَّاتِيْ أَخَذَ عَلَيْهِنَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . قَالَتْ : وَكُنْتُ جَارِيَةً نَاهِدًا جَرِيْئَةً عَلَى مَسْأَلَتِهِ . فَقُلْتُ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! اُبْسُطْ يَدَكَ حَتَّى أُصَافِحَكَ . فَقَالَ : « إِنِّيْ لَا أُصَافِحُ النِّسَاءَ . وَلٰكِنْ آخُذُ عَلَيْهِنَّ مَا أَخَذَ اللهُ عَلَيْهِنَّ » .... المعجم الكبير للطبراني رقم ۴۱۷ ، و رقم ۴۵۶ .

(۲) شرعي پرده لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۵۴ .

بلکه کوم پیر چې د پردو ښځو سره ځانله ملاویږي نو دا پخپله ګمراه دی ، ده له تلل ناجائز دي . (۱)

جاهل پیران د ناجائز کار کولو د پاره مختلف حیلې او بهانې جوړوي :

د یو بې دِینه پیر سره یوه پردۍ ښځه ناسته وه ، دې ښځې په بُرقعه کې مخ پټ کړې وُ ، دې پیر ورته وویل : بې وقوفې ! تا خو مخ پټ کړی که زه ستا مخ اَو نه ګورم او تا اُو نه پیژنم نو د قیامت په ورځ به زه ستا سفارش څنګه اوکړم ؟

اَسْتَغْفِرُ الله ، دې بې دِینه پیر د پردۍ زنانه مخ کتلو د پاره هغې ته څنګه دُهوکه ورکړه ؟ داسې بدبخته خلق د معاشرې د پاره ډیر ضرر ناک دي .

## حَق پرَسته پیران هم شته

ټول پیران داسې بې دِینه نه وي بلکه اوس هم ډیر داسې حَق پرَست په شریعت باندې برابر پیران شته چې هغوی قطعًا د پردۍ زنانه سره د بیعت په وخت لاس نه ملاوَوي بلکه د پردې شاته نه ورته د قرآن کریم او احادیثو تعلیم ورکوي .

د مولانا خلیل احمد مهاجر مدني رَحِمَهُ اللّٰهُ په باره کې راځي چې کله به یې د بیعت په وخت ښځو ته د قرآن کریم او احادیثو تعلیم ورکولو نو اګر چې په مینځ کې به پَرده وه خو دا به بیا هم د پَردې شاته په داسې حالت کې ناستۀ چې ښځو طرف ته به یې شا وه .

یو ځل ورته زنانهٔ وویل چې په مینځ کې پَرده شته نو بیا تاسو مخ ولې اَخوا اَړولی دی ؟ ده ورته وویل : تاسو ته څه پته ده چې زما مخ اَخوا دی ؟ داسې معلومیږي چې د پَردې باوجود تاسو ما په څه طریقه ګورئ نو ځکه ما مخ دیخوا راړولې دی . (۲)

## د بزرګانو نه هم پَرده ضروري ده

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللّٰهُ لیکلي : بعضې خلق د بزرګانو په باره کې دا ګمان کوي چې د دوی نه پَرده ضروري نده ؛ ځکه دوی ډیر پاک دَامن دي او زمونږ زړونه هم صفا دي . او بعضې بزرګان هم د ځان په باره کې دا ګمان کوي چې زمونږ په خپل ځان باندې کنټرول

---

(۱) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۹۲ پردہ .

(۲) شرعي پرده لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۵۷ .

شته او زمونږ زړونه پاک دي لهذا که مونږ نه ښځې پَرده اونکړي نو دا خېر دی.

حالانکه دا دواړه ګمانونه غلط دي؛ ځکه د اوس زمانې د ښځو نه د نبي عليه السلام د زمانې صحابياتې ډيرې پاک دَامنې وې او پخپله نبي عليه السلام د ګناهونو نه هم معصوم وُ، خو بيا يې هم د پَردې دير لحاظ ساتل، هيڅ کله يې پَردی ښځې سره د بيعت په وخت لاس ندې مِلاوُ کړی. نو اوس په دې شَرّ القرون کې به داسې څوک بزرګ پيدا شي چې هغه اُووايي چې د مانه پَرده ضروري نده؟

حضرت يوسف عليه السلام باوجود ددينه چې پيغمبر وُ، د ګناهونو نه معصوم وُ خو بيا هم فرمايي: ﴿ وَمَآ أُبَرِّئُ نَفْسِيٓۚ إِنَّ ٱلنَّفْسَ لَأَمَّارَةُۢ بِٱلسُّوٓءِ إِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّيٓۚ ﴾. (١)

ترجمه: زه خپل نفس بَري نه ګڼړم (يعنی ځان ته ښه نه وايم) بيشکه نفس خو (انسان ته) ضرور د بَدۍ حکم کوي مګر په چا چې زما رب رَحم اوکړي.

نو چې کله حضرت يوسف عليه السلام خپل ځان بَري نه ګڼړي نو اوس بل څوک بزرګ دی چې هغه اُووايي چې زما نفس پاک دی او د مانه د پَردې ضرورت نشته؟ (٢)

## په بزرګانو کې د نورو په نسبت قوّت او شهوت زيات وي

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ الله دا هم ليکلي چې خلق د بزرګانو نه پَرده نه کوي حالانکې په بزرګانو کې د نورو خلقو په نسبت قوّت او شهوت زيات وي.

علماؤ ليکلي: إِنَّ شَهْوَةَ الْمُتَّقِيْ أَشَدُّ. د متّقي شهوت دير زيات وي.

ځکه متّقي د بَدنظرۍ او نورو ګناهونو نه ځان ساتي ټول قوّت يې محفوظ وي، او د فاسق و فاجِر اکثره قوّت د بَدنظرۍ او نورو لارو په وجه اُوتې وي.

علامه ابن قيمؒ ذکر کړي چې په بزرګانو کې د نورو په نسبت قوّت او شهوت ځکه زيات وي چې دوی د الله ﷻ ذِکر دير کوي، او د ذِکر نُورانيت د دوی په بدن کې خور وي، او ددې نُورانيت اوله خاصه داده چې انسان هر وخت چُست او تازه وي، نو خامخا ميلان به يې هم زيات وي، ځکه د قوّت دارو مدار د طبعيت په تازه والي سره دی، او د بزرګانو طبعيت د

---

(١) سورة يوسف آية ٥٣.

(٢) الطلة ص ٧، اشرف الجواب، معارف حکيم الامت ص ٥٧٥، پرده ضرور کرو ں گی ص ٢٤٣.

ذِکر د نُورانيت په وجه هر وخت تازه وي. لهٰذا د بزرګانو نه هم پَرده ضروري ده.(۱)

## بزرګان هم د شيطاني وَسوَسو نه محفوظ ندي

بزرګان هم انسانان دي ، شهوت او نفساني خواهشات لري ، بيا خاصکر شيطان خو د بزرګانو په زړه کې ډيرې وَسوسې وَراچوي.

ډير داسې خلق تېر شوي چې ځانونو ته به يې بزرګان ويل خو د شرعي احکامو خلاف وَرزئ او شيطاني وَسوسو په وجه په زِنا کې مبتلاء شوي او آخر د دُنيا نه بې اِيمانه تللي.

## بَرصيصا آخِر د دُنيا نه بې اِيمانه لاړ

تفسير ابن کثير ، مظهري ، قرطبي ، معارف القرآن او نورو ډيرو تفاسيرو ددې آيت ﴿ كَمَثَلِ الشَّيْطٰنِ اِذْ قَالَ لِلْاِنْسَانِ اكْفُرْ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّنْكَ اِنِّيْٓ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾ د لاندې د بني اسرائيلو د يو بزرګ "بَرصِيصا" واقعه رانقل کړې ، دا واقعه اګر چې ډيره اُوږده او تفصيلي ده خو زه به يې درته مختصر ذکر کړم:

په بني اسرائيلو کې يو راهب عبادت ګزار ؤ ، چې نوم يې بَرصيصا ؤ ، هميشه به په خپله عبادت خانه کې داسې په عبادت مصروف ؤ چې د ورځې به يې روژه وه او هيڅ کله به د عبادت خانې نه نه راوتلو ، په دغه شان يې اويا (۷۰) کاله عبادت اوکړو ، شيطان لعين دده د ګمراه کولو پسې اُولړيد ، نو په انساني شکل کې راغی او ددې برصيصا د عبادت خانې سره نزدې يې مصنوعي عبادت شروع کړو ، شيطان ډير وخت دغه مصنوعي عبادت اوکړو ، تر دې چې ددې راهب ورباندې هم اعتماد پيدا شو.

څه وخت پس چې دا شيطان ددې ځای نه تللو نو دې برصيصا ته يې يو څه دَمونه اُوخودل چې په دې باندې خلق دَموه ، هغوی به ښه کيږي.

دې شيطان به په چا باندې آثر اوکړو او بيا به يې ورته دا راهب اُوخود چې ده له يې بوزئ دې به يې دَم کړي نو ښه به شي ، هغوی به همدغه شان اوکړل ، چې کله به دې راهب ورباندې دغه دَم وويل نو هغه به ښه شو ، ځکه دې شيطان به ورنه خپل آثر لرې کړو ، ډير وخت دا

(۱) حسن العزيز ص ۶۹۹ ، و ص ۶۹۶ ، پرده ضرور کرواليکي ص ۲۷۵. د شرعي پرده لمولانا مفتي رشيد احمد رحمه الله ص ۶۵ .

سلسله روانه وه.

آخر دا چې دې شیطان د یو سردار په یوه بُنکلې لور باندې خپل اَثر اوکړو، بیا یې د دَم د پاره ورته دا راهب اُوښود، راهب چې هغه جینۍ دَم کړه نو ښه شوه. څه وخت پس دغه سردار او دده ځامن چیرته په لرې سفر باندې تلل نو دا جینۍ یې دې راهب ته پرینښوده.

- دا واقعه ډیره اوږده ده خو زه یې درته رالنډوم - شیطان ددې راهب په زړه کې ددې جنیۍ وسوسې وَرواچولی ...... آخر دا چې دې راهب دې جینۍ سره زِنا اوکړه، د هغې نه دا حامِله شوه، شیطان ده ته دا وسوسه ورواچوله چې که دا جینۍ ژوندۍ پاتې شي او خپلو ورونو ته حال اووایي نو په دې کې زما بدنامي ده، نو ده دا جینۍ قتل کړه، او په یو ځای کې یې دفن کړه.

شیطان د جینۍ دا ورونه په دې واقعې باندې خبر کړل، هغوی چې تحقیق اوکړو یقیني ده دا کار کړې ؤ، د وخت قاضي ورباندې د پانسي (اِعدام) کولو حکم اوکړو، کله چې دې یې د سُولۍ په تخت باندې کینولو او ده مرۍ ته یې پړې واچول، څه لږ وخت پاتې ؤ نو شیطان ورته رامخې ته شو او ورته وې ویل چې : زه خو هماغه کس یم چې تا ته مې دَم خودلې ؤ او دا ټول کارونه تا زما په وسوسو اچولو باندې کړي دي اوس تا زه ددې سولۍ نه هم خلاصولې شم خو ته صرف یو کار اوکړه چې ما ته سجده اوکړه نو زه به دې ددینه خلاص کړم.

ددې برصیصا ورباندې یقین راغی چې کیدې شي دا ما خلاص کړي نو ده شیطان ته یې سجده اوکړه، شیطان ورته وویل : ﴿ اِنِّيْ بَرِيْۤءٌ مِّنْكَ اِنِّيْۤ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾

ترجمه : بیشکه زه د تانه بیزاره یم، ځکه زه د الله ﷻ ویریږم کوم چې د ټولو جهانونو رب دی.

دده هم د سُولۍ وخت پوره ؤ، دې یې په سولۍ کړو او د دُنیا نه بې ایمانه د کُفر په حالت کې لاړ. (۱)

(۱) تفسیر القرطبي ج ۱۸ ص ۳۷ سورة الحشر في تشريح آية ۱۶، تفسیر بغوي ج ۵ ص ۶۳، تفسیر ابن کثیر ج ۸ ص ۸۶، تفسیر مظهري ج ۹ ص ۲۵۲، معارف القرآن سورة الحشر في تشريح آية ۱۶، تلبيس ابليس ص ۲۵.

**عبرت** : ددې اوريدې واقعې ذکر کولو مقصد مې دا ؤ چې کله لوي لوي بزرګان د شيطاني وَسوسو نه محفوظ ندي نو اوس به څوک داسې بزرګ راپيدا شي چې هغه اُووايي چې زه پاک دامن يم او ما نه د پردې ضرورت نشته ؟

د بَرصيصا په شان نور هم ډير داسې بزرګان تير شوي چې د شيطاني وَسوسو او دُنياوي خواهشاتو په وجه د دُنيا نه بې ايمانه تللي ، لکه بلعم بن باعوراء ، ابن السقاء ، د مِصريو مشهور مؤذن او نور ډير خلق.(۱)

---

(۱) قَال ابن حجر الهيتمي : وَتَأَمَّلْ أَيْضًا مَا قَصَّهُ اللهُ عَلَيْنَا مِنْ قِصَّةِ بَلْعَامٍ عَالِمِ بَنِي إِسْرَائِيْلَ حَيْثُ أَمِنَ الْمَكْرَ فَقَنَعَ بِالْفَانِيْ مِنْ حُطَامِ الدُّنْيَا عَنِ الْبَاقِيْ مِنْ نَعِيْمِ الْجَنَّةِ فَأَطَاعَ هَوَاهُ. وَقِيْلَ: مَا بُذِلَ لَهُ عَلَى أَنْ يَدْعُوَ عَلَى مُوْسٰى صَلَّى اللهُ عَلَى نَبِيِّنَا وَعَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَدْلَعَ لِسَانَهُ عَلَى صَدْرِهِ وَصَارَ يَلْهَثُ كَالْكَلْبِ وَسَلَبَهُ اللهُ الْإِيْمَانَ وَالْعِلْمَ وَالْمَعْرِفَةَ . وَكَذٰلِكَ بَرْصِيْصَا الْعَابِدُ مَاتَ بَعْدَ عِبَادَتِهِ الَّتِيْ لَا تُطَاقُ عَلَى الْكُفْرِ.

وَكَانَ ابْنُ السَّقَّاءِ بِبَغْدَادَ مِنْ مَشَاهِيْرِهَا فَضْلًا وَذَكَاءً وَقَعَ لَهُ مَعَ بَعْضِ الْأَوْلِيَاءِ أَنَّهُ أَنْكَرَ عَلَيْهِ فَدَعَا عَلَيْهِ فَانْتَقَلَ بِهِ الْحَالُ إِلَى الْقُسْطَنْطِيْنِيَّةِ. فَهَوٰى امْرَأَةً فَتَنَصَّرَ لِأَجْلِهَا ثُمَّ مَرِضَ فَأُلْقِيَ عَلَى الطَّرِيْقِ يَسْأَلُ فَمَرَّ بِهِ بَعْضُ مَنْ يَعْرِفُهُ فَسَأَلَهُ عَنْ حَالِهِ فَحَكٰى لَهُ فِتْنَتَهُ، وَأَنَّهُ تَنَصَّرَ وَالْآنَ يُرِيْدُ أَنْ يَسْتَحْضِرَ حَرْفًا وَاحِدًا مِنَ الْقُرْآنِ فَلَا يَقْدِرُ عَلَيْهِ وَلَا يَمُرُّ بِخَاطِرِهِ. قَالَ ذٰلِكَ الرَّائِيْ لَهُ: فَمَرَرْتُ عَلَيْهِ بَعْدَ قَلِيْلٍ فَرَأَيْتُهُ مُحْتَضَرًا، وَوَجْهُهُ إِلَى الشَّرْقِ فَصِرْتُ كُلَّمَا أَدَرْتُ وَجْهَهُ إِلَى الْقِبْلَةِ الْتَفَتَ لِلشَّرْقِ، وَلَا زَالَ كَذٰلِكَ حَتّٰى خَرَجَتْ رُوْحُهُ.

وَكَانَ بِمِصْرَ مُؤَذِّنٌ عَلَيْهِ سِيْمَا الصَّلَاحِ . فَرَأٰى نَصْرَانِيَّةً مِنَ الْمَنَارَةِ فَافْتُتِنَ بِهَا فَذَهَبَ إِلَيْهَا فَامْتَنَعَتْ أَنْ تُجِيْبَهُ لِرِيْبَةٍ. فَقَالَ: اَلنِّكَاحُ . فَقَالَتْ: أَنْتَ مُسْلِمٌ وَلَا يَرْضٰى أَبِيْ. فَقَالَ إِنَّهُ يَتَنَصَّرُ. فَقَالَتْ: اَلْآنَ يُجِيْبُكَ، فَتَنَصَّرَ وَوَعَدُوْهُ أَنْ يُدْخِلُوْهُ عَلَيْهَا. فَفِيْ أَثْنَاءِ ذٰلِكَ الْيَوْمِ رَقِيَ سَطْحًا لِحَاجَةٍ فَزَلَّتْ قَدَمُهُ. فَوَقَعَ مَيِّتًا ، فَلَا هُوَ بِدِيْنِهِ وَلَا هُوَ بِهَا. فَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ مَكْرِهِ، وَنَعُوْذُ بِهِ مِنْهُ وَبِمُعَافَاتِهِ مِنْ عُقُوْبَتِهِ وَبِرِضَاهُ مِنْ سَخَطِهِ.

وَمِنْ ثَمَّ قَالَ الْعُلَمَاءُ: إِذَا كَانَتِ الْهِدَايَةُ مَصْرُوْفَةً، وَالْإِسْتِقَامَةُ عَلٰى مَشِيْئَتِهِ مَوْقُوْفَةً. وَالْعَاقِبَةُ مُغَيَّبَةً، وَالْإِرَادَةُ غَيْرَ مَعْلُوْمَةٍ وَلَا مُغَالَبَةٍ. فَلَا تُعْجَبْ بِإِيْمَانِكَ. وَصَلَاتِكَ وَجَمِيْعِ قُرَبِكَ فَإِنَّهَا مِنْ مَحْضِ فَضْلِ رَبِّكَ وَجُوْدِهِ فَرُبَّمَا سَلَبَهَا عَنْكَ فَوَقَعْتَ فِيْ هُوَّةِ النَّدَمِ حَيْثُ لَا يَنْفَعُ النَّدَمُ. الزواجر عن اقتراف الكبائر ص ۱۴۷ الْكَبِيْرَةُ السَّابِعَةُ وَالثَّلَاثُوْنَ الْأَمْنُ مِنْ مَكْرِ اللهِ بِالْإِسْتِرْسَالِ فِي الْمَعَاصِيْ . و هكذا فى الكبائر للذهبي الْكَبِيْرَةُ الثَّالِثَةُ وَالسِّتُّوْنَ الْأَمْنُ من مكر الله ص ۲۲۸

## د بوډا سړي نه هم پرده ضروري ده

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللّٰهُ لیکلي چې بعضې خلق د بوډا سړي په باره کې دا ګمان کوي " چې ګني دده نه پرده ضروري نده ؛ ځکه دده نه خطره کمه ده " .

( تهانوي صاحب فرمايي ) لیکن زما په نزد د ځوان په نسبت د بوډا نه پرده ډيره ضروري ده ؛ ځکه په ځوان کې اګر چې شهوت زیات وي خو ورسره يې قوتِ ضبط (یعنې د ځان کنټرول کولو قوّت ) هم زیات وي ، په کوم ځوان کې چې معمولي دِین وي نو ځان کنټرول کولې شي ، او بوډا کې لکه څرنګې چې نور قوّتونه کمزوري وي نو دغه شان يې قوّتِ ضبط هم کمزورې وي ، د شهوت راتلو په وخت ځان نشي کنټرول کولی ، نو کار ورنه په آسانه ورانيږي .

بل دا چې د ځوان کس تجربه دومره نه وي ، د حُسن په باریکیانو باندې دیر خبر نه وي نو دومره خطرناک نه وي ، او د بوډا کس تجربه خو زیاته وي ، ځواني وریاندې تېره شوې ده د حُسن د ټولو باریکیانو نه خبر وي ، نو ځان کنټرول کول ورته ګران وي .لهذا د بوډا نه هم پرده ضروري ده .

او که څوک د بوډا په باره کې دا ګمان کوي " چې دده د اَعضاؤ اِنتشار نه کیږي ، خطره ورنه کمه ده نو پرده ورنه ضروري نده " نو دده دا ګمان کول غلط دی ؛ ځکه اګر چې د اَعصابي کمزورۍ په وجه په د بوډا انتشار نه کیږي خو بیا يې هم شهوت یعنې د زړه میلان برقرار وي نو په سترګو باندې ورته کتلو او زړه کې ورنه لذّت حاصلوي ، حالانکه بدنظري ته د سترګو زِنا ویل شوی . نو د بوډا نه هم پرده ضروري ده . (۱)

## چې د هیجړا نه پرده شته نو د نورو سړو نه خو په طریقِ اولی شته

د ښځو د پاره د هیجړا نه هم پرده واجب ده ، ځکه د بخاري شریف حدیث دی چې نبي علیه السلام د پردې هیجړاګانو په باره کې اوفرمایل :

أَخْرِجُوْهُمْ مِنْ بُيُوْتِكُمْ .

(۱) ملفوظات دعوات عبديت ص ۹۰ ، حسن العزيز ص ۲۹۷ ، پرده ضرور كرو ص ۲۷۶ . ص ۲۷۶ مع الاختصار ، و شرعي پرده لمولانا مفتي رشيد احمد رحمه الله ص ۶۲ .

تاسو دا د خپلو کورونو نه اُوباسئ (یعنی د دوی نه پَرده کوئ) . (۱)

نو چې کله د زَنانه ؤ د پاره د پرَدې هیجرا نه پَرده ضروري ده نو بیا د رُوغ کس نه خو خطره زیاته ده د دوی نه خو ورته په طریقِ اولٰی باندې پَرده ضروري ده .

په یو بل حدیث کې راځي ، نبي علیه السلام اوفرمایل : لَا یَدْخُلَنَّ هٰؤُلَاءِ عَلَیْکُم .
په تاسو باندې دې هرګز هیجراګان راداخل نشي (یعنی کورونو ته یې مه پرېږدئ) . (۲)

علامه طِیبي رَحِمَهُ اللّٰه فرمایي : ددې حدیث نه معلومه شوه چې د هیجرا ، خصي ، او د چا عضو تناسل چې کټ شوي وي د دوی نه هم پَرده لازم ده . (۳)

په دُرمختار کې هم دا ذکر دي چې د مذکوره کسانو نه پَرده لازم ده . (۴)

**نوټ** : نن صبا چې خلق په وَدونو کې هیجراګان راولي او کور ته یې ننباسي نو دا سخته ګناه ده ؛ ځکه دا صحیح سړي وي خو هسې یې د ښځو لباس اغوستې وي .

---

(۱) پوره حدیث داسې دی : عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ : لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُخَنَّثِينَ مِنَ الرِّجَالِ، وَالْمُتَرَجِّلَاتِ مِنَ النِّسَاءِ. وَقَالَ: « أَخْرِجُوهُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ » . وَأَخْرَجَ فُلَانًا . وَأَخْرَجَ عُمَرُ رضي الله عنه فُلَانًا . صحیح البخاري كِتَابُ الحُدُودِ بَابُ نَفْيِ أَهْلِ المَعَاصِي وَالمُخَنَّثِينَ رقم الحدیث ۶۸۳۴ ، و رقم الحدیث ۵۸۸۶ كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ إِخْرَاجِ المُتَشَبِّهِينَ بِالنِّسَاءِ مِنَ البُيُوتِ ، سنن ابي داؤد كِتَاب الأَدَبِ بَابٌ فِي الْحُكْمِ فِي الْمُخَنَّثِينَ رقم الحدیث ۴۹۳۰ .

(۲) پوره حدیث داسې دی : عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا وَفِي الْبَيْتِ مُخَنَّثٌ فَقَالَ : لِعَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ أَخِي أُمِّ سَلَمَةَ : يَا عَبْدَ اللهِ ! إِنْ فَتَحَ اللهُ لَكُمْ غَدًا الطَّائِفَ فَإِنِّي أَدُلُّكَ عَلَى ابْنَةِ غَيْلَانَ فَإِنَّهَا تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ . فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « لَا يَدْخُلَنَّ هٰؤُلَاءِ عَلَيْكُم » . مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النظر إِلَى المَخطوبة وَبَيَان العورات الْفَصْل الثالث رقم الحدیث ۳۱۲۱ .

(۳) ( لَا يَدْخُلَنَّ) نَهْيٌ مُؤَكَّدٌ بِالثَّقِيلَةِ (هٰؤُلَاءِ) أَيِ الْمُخَنَّثُونَ (عَلَيْكُمْ) قَالَ الطِّيبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : وَهٰذَا يَدُلُّ عَلَى مَنْعِ الْمُخَنَّثِ وَالْخَصِيِّ وَالْمَجْبُوبِ مِنَ الدُّخُولِ عَلَى النِّسَاءِ . مرقاة المفاتیح ج ۵ ص ۲۰۵۷ في تشریح حدیث ۳۱۲۱

(۴) قال الحصکفي رَحِمَهُ اللّٰه : (وَالْخَصِيُّ وَالْمَجْبُوبُ وَالْمُخَنَّثُ فِي النَّظَرِ إِلَى الْأَجْنَبِيَّةِ كَالْفَحْلِ) وَقِيلَ لَا بَأْسَ بِمَجْبُوبٍ جَفَّ مَاؤُهُ . لٰكِنْ فِي الْكُبْرٰى : أَنَّ مَنْ جَوَّزَهُ فَمِنْ قِلَّةِ التَّجْرِبَةِ وَالدِّيَانَةِ . الدر المختار كِتَابُ الحَظْرِ وَالإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالمَسِّ ج ۶ ص ۳۷۳ .

## نبي عليه السلام خپلو بيبيانو ته احتياطًا د نابينا نه هم د پردې حکم اوکړو

د احاديثو په ډيرو کتابونو کښې دا واقعه ذکرده : اُمّ المؤمنين حضرت اُمّ سَلَمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې يو ځل زه او حضرت ميمونة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره موجود وو چې په دې وخت کښې ناڅاپه حضرت عبدالله بن مکتوم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ( نابينا صحابي ) نبي عليه السلام ته راغي ، دا د حجاب حکم نازليدو نه پس واقعه ده ، (چونکه هغه نابينا وُ ، مونږ ورنه د پردې اراده اونکړه او په خپل ځاى باندې ناستې وو ) ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ دواړو ته اوفرمايل : اِحْتَجِبَا مِنْهُ . تاسو دواړه دده نه پرده اوکړئ .

مونږ ورته ووېل : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! أَلَيْسَ أَعْمٰى لَا يُبْصِرُنَا وَلَا يَعْرِفُنَا ؟
اې د الله رسوله ! آيا دا نابينا ندى ؟ دا خو مونږ نه ګوري ، او نه مو پيژني .
رسولُ الله صلى الله عليه وسلم اوفرمايل : أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا . أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ ؟
آيا تاسو دواړه هم ړندې يئ ؟ آيا تاسو هغه نه ګورئ ؟
( يعنى که هغه نابينا وي نو تاسو خو نابينا نه يئ نو پرده ورنه اوکړئ ) . (۱)

**فائده** : ددې حديث نه معلومه شوه چې د ښځو د پاره څومره ممکن وي پردو سره ته دې د کتلو نه پرهيزکوي ، ځکه حضرت عبدالله بن مکتوم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نابينا وُ ، پاک دامن وُ ، او د نبي عليه السلام بيبيانې هم پاکې وې ، د بدنظرى هيڅ امکان نه وُ خو بيا هم نبي عليه السلام خپلو بيبيانو ته حکم اوکړو چې دده نه پرده اوکړئ .

---

(۱) عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كُنْتُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَيْمُوْنَةُ . فَأَقْبَلَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُوْمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حَتّٰى دَخَلَ عَلَيْهِ . وَذٰلِكَ بَعْدَ أَنْ أَمَرَنَا بِالْحِجَابِ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «اِحْتَجِبَا مِنْهُ» فَقُلْنَا: يَا رَسُوْلَ اللهِ ! أَلَيْسَ أَعْمٰى لَا يُبْصِرُنَا وَلَا يَعْرِفُنَا ؟ قَالَ: «أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا . أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ ؟» . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۶۵۳۷ حَدِيْثُ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، سنن الترمذي أَبْوَابُ الْأَدَبِ بَابُ مَا جَاءَ فِي احْتِجَابِ النِّسَاءِ مِنَ الرِّجَالِ رقم الحديث ۲۷۷۸ وقال الترمذي : هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ ، سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ : {وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ} رقم الحديث ۴۱۱۲ ، مشكوة المصابيح كتاب النكاح بَابُ النظر إلى المخطوبة وَبَيَانِ العورات الفصل الثاني رقم الحديث ۳۱۱۶ (۱۹) ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۹۱۹۷ ، صحيح ابن حبان رقم ۵۵۷۵ . السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۳۵۲۵ ، شرح السنة للبغوي ج ۹ ص ۲۴ .

# د پردې په ثبوت باندې د علماؤ اجماع

د پردې ثبوت لکه څرنګې د چې قرآن کریم او احادیثو نه شوی همدغه شان په دې باندې د علماؤ اجماع ده چې ښځه به د پردو سرو نه پرده کوي.

اوس چې څوک د پردې د ثبوت نه انکار کوي نو دا د دین د یو قطعي حکم نه انکار کوي، دا داسې دی لکه یو کس چې د مونځ، روژې، زکوة او حج نه انکار کوي.

د څلورو وارو مذاهبو علماء په دې متفق دي چې د ځوانې اَصیلې ښځې (حُرّې) د پاره د فتنې په دې وخت کې د پردو سرو د وراندې خپل مخ پټول واجب دي. (۱)

علامه نووي رَحِمَهُ اللهُ لیکلي: چې امام الحرمین جویني رَحِمَهُ اللهُ په دې خبره باندې د مسلمانانو اتفاق نقل کړی چې ښځه به ښکاره مخ بهر ته نه اُوځي، ځکه پردی ښځې ته په کتلو کې فتنه پیدا کیږي او شهوت راپاریږي، لهذا د فتنې دروازه بندلو په خاطر د زنانه د پاره پرده ضروري ده. (۲)

امام نووي رَحِمَهُ اللهُ دا هم لیکلي: .... وَكَذٰلِكَ نَظَرُ الرَّجُلِ إِلٰى عَوْرَةِ الْمَرْأَةِ وَالْمَرْأَةِ إِلٰى عَوْرَةِ الرَّجُلِ حَرَامٌ بِالْإِجْمَاعِ..... وَأَمَّا نَظَرُ الرَّجُلِ إِلَى الْمَرْأَةِ فَحَرَامٌ فِي كُلِّ شَيْءٍ مِنْ بَدَنِهَا. (۳)

همدارنګې د سړي د پاره د پردی ښځې عورت ته کتل او د ښځې د پاره د پردي سړي عورت ته کتل په اجماع سره حرام دي .... تر دې چې د سړي د پاره (بِلاضرورت) د پردی ښځې د بدن هر ځای ته کتل حرام دي.

---

(۱) أَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ أَنَّ حِجَابَ الْمَرْأَةِ بِمَفْهُومِهِ الْعَامِّ شَرِيعَةٌ وَ دِينٌ. وَ أَنَّهُ ثَابِتٌ قَطْعِيٌّ مُتَوَاتِرٌ فِي الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ. وَمَنْ أَنْكَرَ شَرِيعَةَ لِبَاسِ الْمَرْأَةِ وَحِجَابِهَا، وَقَالَ " إِنَّ لِبَاسَهَا عَادَةٌ تُبْدِي مَا تَشَاءُ وَتَسْتُرُ مَا تَشَاءُ " فَهُوَ مُنْكِرٌ لِقَطْعِيٍّ مَعْلُومٍ مِنَ الدِّينِ بِالضَّرُورَةِ كَمُنْكِرِ الصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ وَالْحَجِّ. الحجاب في الشريعة والفطرة لعبدالعزيز بن مرزوق الطريفي ج ۱ ص ۸۷.

(۲) وَ وَجَّهَهُ الْإِمَامُ بِاتِّفَاقِ الْمُسْلِمِينَ عَلَى مَنْعِ النِّسَاءِ مِنَ الْخُرُوجِ سَافِرَاتٍ، وَبِأَنَّ النَّظَرَ مَظِنَّةُ الْفِتْنَةِ، وَهُوَ مُحَرِّكٌ لِلشَّهْوَةِ. فَاللَّائِقُ بِمَحَاسِنِ الشَّرْعِ سَدُّ الْبَابِ فِيهِ، وَالْإِعْرَاضُ عَنْ تَفَاصِيلِ الْأَحْوَالِ كَالْخَلْوَةِ بِالْأَجْنَبِيَّةِ. روضة الطالبين وعمدة المفتين للنووي ج ۷ ص ۲۱ كِتَابُ النِّكَاحِ الْفَصْلُ الثَّالِثُ: فِي أَحْكَامِ النَّظَرِ.

(۳) شرح النووي على مسلم ج ۴ ص ۳۱ بَابُ تَحْرِيمِ النَّظَرِ إِلَى الْعَوْرَاتِ.

علامه ابن رَسلان رَحِمَهُ اللهُ هم ليکلي : په دې باندې د علماوُ اتفاق دی چې د ښځو د پاره ښکاره مخونه وتل منع دي ، بيا خاصکر چې کله فاسقان زيات وي . (١)

علامه ابن حجر عسقلاني رَحِمَهُ اللهُ ليکلي : د هميشه نه د زَنانه ؤ دا عادت راروان دی چې دوی د پردو سرو نه خپل مخونه پټوي . (٢)

مولانا خليل احمد سهارنپوري رَحِمَهُ اللهُ ليکلي : چې کله د فتنې يره وي نو بالغه ښځه به خپل مخ او لاسونه د پردو سړو د وړاندې نه ښکاره کوي ، بيا خاصکر چې کله فساد زيات وي نو بيا خو به يې په طريقِ اولٰی نه ښکاره کوي ؛ ځکه په دې خبره د مسلمانانو اتفاق دی چې د ښځې د پاره په ښکاره مخ باندې بهَر ته وتل منع دي . (٣)

امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ ليکلي چې د هميشه نه د مسلمانانو ښځو دا طريقه راروانه ده چې کله به دوی (د څه ضرورت په وخت) د کورنه وتلې نو په پَرده کې به وې . (٤)

علامه ابن حيان اندلسي رَحِمَهُ اللهُ ليکلي : د اندلس د مسلمانانو ښځو عادت هم دا ؤ چې هغوی به کله د څه ضرورت په خاطر د کور نه بهَر وتلې نو ټول وجود به يې پټ ؤ صرف يوه سترګه به يې د لار کتلو د پاره ښکاره وه . (٥)

---

(١) قَالَ ابْنُ رَسْلَانَ رَحِمَهُ اللهُ ... وَيَدُلُّ عَلَى تَقْيِيْدِهِ بِالْحَاجَةِ اِتِّفَاقُ الْمُسْلِمِيْنَ عَلَى مَنْعِ النِّسَاءِ أَنْ يَخْرُجْنَ سَافِرَاتِ الْوُجُوْهِ لَا سِيَّمَا عِنْدَ كَثْرَةِ الْفُسَّاقِ . نيل الأوطار ج ٦ ص ١٣٥ .

(٢) وَلَمْ تَزَلْ عَادَةُ النِّسَاءِ قَدِيْمًا وَحَدِيْثًا يَسْتُرْنَ وُجُوْهَهُنَّ عَنِ الْأَجَانِبِ . فتح الباري لابن حجر ج ٩ ص ٣٢٤ قَوْلُهُ بَابُ الْغَيْرَةِ في شرح حديث ٥٢٢٥ .

(٣) إِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا بَلَغَتْ لَا يَجُوْزُ لَهَا أَنْ تُظْهِرَ لِلْأَجَانِبِ إِلَّا مَا تَحْتَاجُ إِلَى إِظْهَارِهِ . لِلْحَاجَةِ إِلَى مُعَامَلَةٍ ، أَوْ شَهَادَةٍ . إِلَّا الْوَجْه وَالْكَفَّيْنِ ، وَ هٰذَا عِنْدَ أَمْنِ الْفِتْنَةِ ، وَ أَمَّا عِنْدَ خَوْفٍ مِنَ الْفِتْنَةِ فَلَا . وَيَدُلُّ عَلَى تَقْيِيْدِهِ بِالْحَاجَةِ اِتِّفَاقُ الْمُسْلِمِيْنَ عَلَى مَنْعِ النِّسَاءِ أَنْ يَخْرُجْنَ سَافِرَاتِ الْوُجُوْهِ لَا سِيَّمَا عِنْدَ كَثْرَةِ الْفَسَادِ وَ ظُهُوْرِهِ . بذل المجهود شرح سنن ابي داؤد لمولانا خليل احمد السهارنفوري ١٦/٤٣١ .

(٤) وَيَنْبَغِيْ أَنْ لَا تَخْرُجَ إِلَّا لِمُهِمٍّ فَإِنَّ الْخُرُوْجَ لِلنَّظَّارَاتِ وَالْأُمُوْرِ الَّتِيْ لَيْسَتْ مُهِمَّةً تَقْدَحُ فِي الْمُرُوْءَةِ وَ رُبَّمَا تُفْضِيْ إِلَى الْفَسَادِ . فَإِذَا خَرَجَتْ فَيَنْبَغِيْ أَنْ تَغُضَّ بَصَرَهَا عَنِ الرِّجَالِ .... إِذْ لَمْ يَزَلِ الرِّجَالُ عَلَى مَمَرِّ الزَّمَانِ مكشوفي الوجوه والنساء يخرجن متنقبات . احياء علوم الدين ج ٢ ص ٤٧ .

(٥) وَكَذَا عَادَةُ بِلَادِ الْأَنْدَلُسِ لَا يَظْهَرُ مِنَ الْمَرْأَةِ إِلَّا عَيْنُهَا الْوَاحِدَةُ . البحر المحيط في التفسير ج ٨ ص ٥٠٤

شيخ يوسف دجوي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې كله د فِتنې يَره وي او هر طرف ته فساد وي نو د ټولو علماؤ په نزد باندې د ښځې د پاره خپل مخ يا د بدن بله حصه په هيڅ حالت كې ښكاره كول ندي جائز . (۱)

امام صنعاني رَحِمَهُ اللَّهُ دا خبره صراحة ذكر كړې : چې د پردو سرو په حق كې د ښځې ټول بدن عورت دی . (۲)

همدارنګې نورو ډيرو علماؤ هم په دې باندې اِجماع نقل كړې چې د ښځې د پاره پَرده واجب ده ، دا به د پَردو سړو د وړاندې بِلاضرورته خپل مخ نه ښكاره كوي . (۳)

---

(۱) أما إذا خشيت الفتنة و لم يؤمن الفساد فلايجوز كشف وجهها و لاشيء من بدنها بحال من الاحوال عند جميع العلماء . مقالات و فتاوى الدجوي ج ۲ ص ۵۴۳ ، اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۳۶۳ .

(۲) وَأَمَّا عَوْرَتُهَا بِالنَّظَرِ إِلَى نَظَرِ الْأَجْنَبِيِّ إِلَيْهَا فَكُلُّهَا عَوْرَةٌ. سبل السلام ج ۱ ص ۱۹۸ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ بِسَتْرِ الْعَوْرَةِ فِي الصَّلَاةِ .

(۳) قال الامام عبدالعزيز بن عبدالله بن باز رَحِمَهُ اللَّهُ : و قد أَجْمَعَ علماءُ السلف على وجوب ستر المرأة المسلمة لوجهها ، وأنه عورةٌ يجب عليها ستره إلا من ذي محرم . مجموع فتاوى و مقالات متنوعة ج ۵ ص ۲۳۱ .

قال الامام المجتهد محمد بن ابراهيم الوزير رَحِمَهُ اللَّهُ : وَأَجْمَعُوا عَلَى وُجُوبِ الْحِجَابِ لِلنِّسَاءِ . الرّوض الباسم في الذّبّ عن سُنّة أبي القاسم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ج ۱ ص ۲۰۲ .

ذَكَرَ الْإِمَامُ الصنعاني رَحِمَهُ اللَّهُ : إِجْمَاعَ الْمُسْلِمِينَ عَلَى تَحْرِيمِ التَّبَرُّجِ . منحة الغفار على ضوء النهار ج ۴ ص ۲۰۱۱ ، و ص ۲۰۱۲ . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۲۰۶ .

قال العلامة بكر ابو زيد رَحِمَهُ اللَّهُ : معلومٌ أنّ العملَ المتوارثَ المستمرّ من عصرِ الصّحابة رضي الله عنهم فمن بعدهم حجة شرعية يجب اتباعها، وتلقيها بالقبول، وقد جرى الإجماع العملي بالعمل المستمر المتوارث بين نساء المؤمنين على لزومهنّ البيوت، فلا يخرجن إلا لضرورة أو حاجة، وعلى عدم خروجهنّ أمامَ الرجال إلا متحجبات غير سافرات الوجوه ولا حاسرات عن شيء من الأبدان، ولا متبرجات بزينة، واتّفق المسلمونَ على هذا العمل، المتلاقي مع مقاصدهم في بناء صرح العفة والطهارة والاحتشام والحياء والغيرة، فمنعوا النّساء من الخروج سافرات الوجوه، حاسرات عن شيء من أبدانهن أو زينتهن. فهذان إجماعان متوارثان معلومان من صدر الإسلام، وعصور الصحابة والتابعين لهم بإحسان . ←←←←←←←

**د احرام په حالت کې د ښځې په پَرده باندې د علماؤ اجماع** په دې خبره ځان پوهه کړئ چې د حج په موقع د ښځې اِحرام په مخ ښکاره کولو کې دی ، یعنی په مخ به داسې کپړه نه اچوي چې د مخ سره لږي ، خو بیا هم علماؤ په دې باندې اِجماع نقل کړی چې ښځه به د اِحرام په حالت کې داسې طریقه کوي چې د مخ پَرده یې هم راشي او د مخ سره یې کپړه هم اُو نه لږي ، لکه نن صبا چې زَنانه د حج په موقع چَپه داري ټوپۍ په سَر کوي او د هغې د پاسه کپړه اچوي نو مخ یې هم د پرَدو سرو نه پټ وي ، او د مخ سره یې کپړه هم نه لږي ۰(۱)

←←← حکی ذلك جمع من الأئمة، منهم الحافظ ابن عبد البر، والإمام النووي، وشيخ الإسلام ابن تيمية، وغيرهم رحمهم الله تعالى. حِرَاسَةُ الفضيلة ج ۱ ص ۳۰ المسألة الثالثة: أدلة فرض الحجاب على نساء المؤمنين.

قال الخطيب الشربيني رَحِمَهُ اللَّهُ في شرحه على متن المنهاج : .... وَوَجَّهَهُ الْإِمَامُ بِاتِّفَاقِ الْمُسْلِمِينَ عَلَى مَنْعِ النِّسَاءِ مِنَ الْخُرُوجِ سَافِرَاتِ الْوُجُوهِ. مغني المحتاج إلى معرفة معاني الفاظ المنهاج لمولانا شمس الدين، محمد بن احمد الخطيب الشربيني الشافعي ج ۴ ص ۲۰۹ كِتَابُ النِّكَاحِ

وقال الحافظ أبو بكر محمد بن عبد الله العامري رَحِمَهُ اللَّهُ : إنّ الذي أجمعت عليه الأمة، واتفقت على تحريمه: علماء السلف والخلف من الفقهاء والأئمة، هو نظر الأجانب من الرجال والنساء بعضهم إلى بعض ... وهم: من ليس بينهم رحم من النسب، ولا محرم من سبب كالرضاع وغيره، فهؤلاء حرام نظر بعضهم إلى بعض ... فالنظر والخلوة محرم على هؤلاء عند كافة المسلمين، لا يباح بدعوى زهد وصلاح ولا توهم عدم آفة ترفع عنهم الجناح إلا في أحوال نادرة من ضرورة أو حاجة ... فما سوى ذلك محرم سواء كان عن شهوة أو عن غيرها. احكام النظر إلى المحرمات وما فيه من الخطر والآفات ص ۲۶۰.

(۱) قال الحافظ الامام ابن عبدالبر رَحِمَهُ اللَّهُ : وَأَجْمَعُوا أَنَّ إِحْرَامَهَا فِي وَجْهِهَا دُونَ رَأْسِهَا وَأَنَّهَا تُخَمِّرُ رَأْسَهَا وَتَسْتُرُ شَعْرَهَا وَهِيَ مُحْرِمَةٌ. وَأَجْمَعُوا أَنَّ لَهَا أَنْ تُسْدِلَ الثَّوْبَ عَلَى وَجْهِهَا مِنْ فَوْقِ رَأْسِهَا سَدْلًا خَفِيفًا تَسْتَتِرُ بِهِ عَنْ نَظَرِ الرِّجَالِ إِلَيْهَا. التمهيد لما في الموطأ من المعاني والأسانيد لابن عبدالبر ج ۱۵ ص ۱۰۸ حَدِيثٌ ثَامِنٌ وَأَرْبَعُونَ الاستذكار لابن عبدالبر ج ۱۱ ص ۲۸ رقم ۱۵۲۵۷.

په دې خبره باندې علامه ابن رشد ، علامه ابن حجر ، ابن قدامة ، ابوالحسن ابن قطان ، مولانا کاندهلوي ، زرقاني ، شوکاني ، ابن قیم رحمهم الله او نورو ډیرو علماؤ هم اِجماع نقل کړی . په اظهار الحق والصواب في حکم الحجاب کتاب کې پوره تفصیل او عبارتونه موجود دي ۰

## د مُفسرينو په نزد هم د ښځې د پاره د مخ پټول لازمي دی

ډيرو مُفسّرينو دا خبره صراحةً ذکر کړی چې زَنانه د پاره د پرَدو سرو نه مخ پټول واجب دي ، لکه امام رازي ، بيضاوي ، جلال الدين محلي ، نسفي ، زمحشري ، قرطبي ، آلوسي ، جصاص ، صاوي ، جمل او نورو ډيرو مفسّرينو په خپلو تفاسيرو کې دا خبره صراحةً ذکر کړی .(۱)

## د ښځې د پاره د عقلي وجوهاتو په بِناء باندې هم پَرده ضروري ده

عقل هم دا وايي چې د ښځې د پاره د پرَدو سرو نه پَرده ضروري ده ؛ ځکه د حياء او غېرت تقاضا هم داده چې ښځه دې په پَرده کې وي. د هيچا حياء او غېرت دا نه برداشت کوي چې دده مور لور او خور ته دې خلق په غلط نظر باندې اوګوري .

بل دا چې الله تعالى د هر سړي په فِطرت کې ښځې طرف ته ميلان ايښې دی ، په همدې خاطر الله تعالى د نکاح صورت پيدا کړی چې انسان په جائز طريقې سره خپل ميلان پوره کړي او ناجائز طريقې نه ځان اُوساتي .

اوس چې يوه زَنانه بې پَردې د کور نه بهر اُوځي نو خامخا د پرَدو سرو ميلان به ورته کيږي ، نو ځکه شريعت ورته د پَردې حکم کړی چې د غلطو نظرونو او ضرر نه محفوظه وي

## مولانا حُسين احمد مدني رَحِمَهُ اللهُ بهترين جواب ورکړو

يو ځل مولانا حسين احمد مدني رَحِمَهُ اللهُ په ريل ګاډي کې سفر کولو ، د ګرمي موسم ؤ ،

(۱) کومو مفسّرينو چې دا خبره صراحةً ذکر کړی زه درته د هغوی د تفسيرونو جلد او صفحه نمبر ذکر کوم ، ددې د پاره چې که څوک پوره تشريح کوري نو هغې تفاسيرو ته دې رجوع اوکړي :

تفسير الرازي ۲۵/ ۲۲۰، تفسير البيضاوي ۲/ ۱۳۵ ، تفسير الجلالين ۳/ ۴۵۵ بهامش حاشية الجمل ، تفسير النسفي ۳/ ۱۸۲ ، تفسير الكشاف ۳/ ۲۷۴ ، تفسير القرطبي ۱۴/ ۲۴۳ ، محاسن التأويل ۱۳/ ۴۹۰۸ ، نظم الدرر في تناسب الآيات والسور ۱۵/ ۴۱۱ ، روح المعاني ۲۲/ ۸۹ ، جامع البيان في تفسير القرآن ۲/ ۲۷۳ ، احكام القرآن ۳/ ۳۷۲ ، حاشية الصاوي على الجلالين ۳/ ۲۸۸ ، الفتوحات الإلهية المشهورة بحاشية الجمل ۳/ ۴۵۵ ، احكام القرآن ۳/ ۱۵۸۶ ، غرائب القرآن ورغائب الفرقان ۲۲/ ۳۲ ، التسهيل لعلوم التنزيل ۳/ ۱۴۴ ، تيسير الكريم الرحمن في تفسير كلام المنان ۶/ ۲۴۷ ، اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ۶/ ۵۸۶ ، صفوة البيان لمعاني القرآن ص ۵۳۷.

په مخامخ سیټ کې ورسره یو انګریز د خپلې ښځې سره ناست ؤ ، ښځه یې بې پردې وه، مدني رَحِمَهُ اللهُ چپ ناست ؤ ، دې انګریز اراده اوکړه چې مولانا صاحب په څه خبره تنګ کړي، نو پوښتنه یې ورنه اوکړه :

" مولانا صاحب ! اسلام ښځې د کور په چاردیوالۍ کې قید کړې دي کله چې بهر راأووځي نو د کفن په شان یې ځانونه په پړوني کې تاؤ کړي وي ، مونږ خو ښځو ته پوره آزادي ورکوو ، ته اوګوره دا زما ښځه ده ، څومره ښائسته ده ، د ماسره څنګ په څنګ ګرځي او مزې کوي " .

مدني رَحِمَهُ اللهُ صاحب دده خبرې په آرام أوریدی ، خو چې کله ده د حَد نه تجاوز اوکړو نو مولانا صاحب پوهه شو چې دا بغیر د جواب ورکولو نه نه چپ کیږي .

چونکه په دې وخت کې سخته ګرمي وه ، مدني رَحِمَهُ اللهُ سره خپل یو شاګرد هم ؤ ، ده هغه ته حکم اوکړو چې سخته ګرمي ده یَخ شربت جوړ کړه چې وې څکم .

هغه سره په تَرماس کې یَخې أوبه وی په هغې کې یې چیني واچوله ، بیا یې لیمبو کټ کړو او هغه یې په کې نچوړولو ، په دې وخت کې دې انګریز دې لیمبو کټ کولو ته ډیر په غور سره کتل او په خُله کې یې ورته أوبه هم راغلی .

حضرت مدني رَحِمَهُ اللهُ ورنه پوښتنه اوکړه : ته ولې دې لیمبو ته دومره په شوق ګوری او په خُله کې دې ورته أوبه هم راځي ؟

انګریز وویل : مولاناصاحب ! د ګرمۍ موسم دی ، تَنده زیاته ده ، او لیمبو خو داسې څیز دی چې دیته په کتلو سره خو د هرچا په خُله کې أوبه راځي .

مدني رَحِمَهُ اللهُ ورته وویل : همدغه شان ښځه هم ده چې کله دا بې پَردې وي او څوک دیته اوګوري نو په خُله کې یې ورته ضرور أوبه راځي .

انګریز چې دا خبره واوریده نو سخت شرمنده شو ، سر یې ښکته کړو ، او چپ شو . (۱)

**غابښ ماتې جواب** : همدغه شان یو بې دِینه کس د یو عالم نه په ډیر سپکاوي أنداز کې دا پوښتنه اوکړه : اسلام ولې زَنانه د کور په چاردیوالۍ کې قید ساتي ؟

(۱) اہل دل کے تڑپا دینے والے واقعات ج ۲ ص ۱۹۷ ، خطبات فقیر ج ۳۰ ص ۲۰۳ .

دې عالم ورته سمدستي جواب ورکړو : دا ځکه چې اسلام دا نه غواړي چې جينکې دې د واده نه مخکې حرامي بچي اُوزيګوي.
په دې اَوريدو سره هغه بې دِينه کس مکمل لاجواب شو ، او لاړ.
بهر حال ، د سړو په فِطرت کې ښځو طرف ته ميلان دی ، چې کلهٔ ښځه بې پَردې وي نوخامخا به ورته نقصان رسي.

**د مثال په ذريعه وضاحت** : ديو مثال په ذريعه درته د پَردې اَهميت واضحه کوم:
الله تعالى د پيشو په فِطرت کې شودو طرف ته ميلان ايخې دی ، دا چې چيرته شوده اُوګوري نو سمدستي يې ځکي ، نو خلق د شودو د حفاظت د پاره دا طريقه کوي چې دا په لوخي کې واچوي ، سَر وربانديې کلک کړي ، او پټ يې کيږدي. هيڅوک پيشو نه ترټي.
همدغه شان د سړو په فِطرت کې ښځو طرف ته ميلان دی ، بيا دا ميلان د هغه ميلان نه زيات دی کوم چې د پيشو شودو طرف ته دی ؛ ځکه هلته ميلان د يو طرفه دی ، او دلته د سړي او ښځې دواړو د طرفه ميلان دی ، نو لکه څرنګې چې د شودو پټول ضروري دي نو همدغه شان د ښځې د پاره پَرده هم ضروري ده چې دا به د پرَدو سړو نه پټه وي.
عجيبه خبره داده چې خلق د پيشو نه د شودو حفاظت ضروري ګڼري ليکن د سړو نه د ښځو د پاره پَرده ضروري نه ګڼري.
ښځې بې پَردې راپريخودل او بيا سړي په رَسۍ باندې تړل او د ښځو نه رامنع کول صحيح ندي ؛ ځکه د سړو د پاره د کاروبار وغيره د پاره بهر ته وتل لازمي دي ، که سړي په کورونو کې بَند کړې شي نو بيا خو به د دُنيا ټول نظام فَلج شي.
په هر انسان کې خامخا شهوت شته ، اوس چې يوه ښځه بې پَردې بهر رااُوځي نو خامخا به په دې باندې د خلقو غلط نظر لږي ، غلطې وَسوې به يې ورته پيدا کيږي ، او خامخا به ديته ضرر رسي.
ځکه داخو ممکن نده چې يو کس د بل اُوړي کس مخې ته رُوتۍ کيږدي او بيا دا طمع ساتي چې دده په زړه کې به ددې رُوتۍ خيال رانشي ، بلکه خامخا به راځي.
شريعت خو ښځو ته د پَردې حکم په همدې خاطر کړی چې د سړو سترګې ، زړونه او خيالات پاک شي ، او د زَنانه عزت محفوظ شي.

**د يو بل مثال په ذريعه وضاحت** : د يو بل مثال په ذريعه هم درته دا خبره واضحه کوم : کله چې يو کس په سفر باندې اُووځي او په ګاډي کې کيني نو هيڅوک هم داسې نه کوي چې روپۍ د جېب نه رااُوباسي او بهر يې کيږدي ، بلکه هر کس يې په جېب کې محفوظې ږدي ، ځکه هر سړې طبعًا دا خطره محسوسوي چې که روپۍ بهر کيږدم نو خلق به يې رانه پټې کړي .

نو همدغه شان عقل هم دا وايي چې ښځه دې د پَردې په ذريعه باندې د خلقو د غلط نظر او ضرر نه محفوظ شي .

آيا روپۍ ډيرې قيمتي دي او که ښځه ؟ عجيبه داده چې خلق د روپو حفاظت کوي خو د پَردې په ذريعه د ښځو حفاظت نه کوي ، حالانکه د روپو په نسبت د ښځې حفاظت ډير ضروري دی ؛ ځکه که غل روپۍ اُوتختوي او ته يې واپس ورنه واخلې نو په دې سره په روپو کې عېب نه پيدا کيږي ، خو که ښځه څوک اُوتختوي نو که دا راواپس هم شي خو بيا به هم دا عېب جَنه وي ، هر کَس به ورته په سپَک نظر باندې ګوري .

لهذا د روپو په نسبت ښځې ته ضرر رسيدل ډير خطرناک دی .

## د پَردې ضروري کيدلو د پاره تمَدّني دليل

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللَّهُ ذکر کړي چې الله تعالی فرمايي :

﴿ اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّ خَيْرٌ اَمَلًا ﴾ . (۱)

ترجمه : مال او ځامن ( خو صرف ) د دُنيا د ژوند ښائست دی ، او باقي پاتې کيدونکي نيک عملونه ستا د رب په نزد ډير بهتر دي په اعتبار د ثواب سره ، او ( همدا رنګې دا نيک اعمال د الله په نزد ) ډير بهتر دي په اعتبار د اُميد ساتلو سره .

په دې آيت کې الله تعالی د دُنيا زينت " مال او ځامن " اوګرځول ، لورانې يې د دُنيا زِينت اُو نه ګرځولې ؛ دا ځکه چې لورانې صرف د کور زِينت دی د دُنيا زِينت ندی ، که

---

(۱) الکهف آية ۳۶ .

لوراني د دُنیا زِینت وی نو د بَنُون سره به د بَنَات لفظ هم ذکر شوې وی.

د دُنیا په عُرف کې زِینت هغې ته ویلې شي چې سرې یې په مَنظرِ عام باندې راویستلې شي ، او لوراني خو داسې زِینت ندی چې انسان یې د ځان سره بهَر گرځوي ، بلکه دا د کور زِینت دی ، او په کور کې به ناستې وي. (۱)

## اسلام د ښځې د وفات نه پس هم ددې د پَردې لحاظ ساتلی

اسلام د ښځې د وفات نه پس هم ددې د پَردې لحاظ ساتلی ؛ ځکه سړی چې وفات شي نو هر کس دا قبر ته ښکته کولې شي خو که ښځه وفات شي نو شریعت دا وایي چې دا به صرف مَحرَم کوزوي ، هر چاته ددې د کوزولو اجازت نشته.

همدارنگې چې کله په سړي باندې د جنازې مونځ کولې شي نو امام به د مړي سِینې ته مخامخ اُودرېږي خو که په ښځه باندې د جنازې مونځ کولې شي نو اِمام به د سِینې نه لږ دیخوا مینځ طرف ته اُودرېږي ؛ دا ځکه چې سِینه فِطرةً مَحل د کشش وي ، نو اسلام ددې د مرگ نه پس هم ددې د پَردې لحاظ اُوساتل.

## اوس هم د اِصلاح موقع شته

که د چا په کور کې تر اُوسه شرعي پَرده نه وه او اوس د پَردې د اَهمیت نه خبرېدو سره شرعي پَرده کول اوغواړي نو اوس هم د اِصلاح موقع شته ، تر اُوسه اُوبه د وَرخ نه ندي تېرې شوي ، د کور مشر دې په ښځو باندې پَرده لازمه کړي ، بِلاضرورت دې ښځې د کوره بهر نه پرېږدي ، او که د څه ضرورت په وجه اُوځي نو د هغوی د پَردې اِهتمام دې کوي ، ښکاره مخ دې بهر ته نه پرېږدي ، د کومو خپلوانو نه چې شریعت د پَردې حکم کړی هغوی دې ددې شرعي حُکم نه خبر کړي او کور ته دې دَننه نه راپرېږدي.

خپلې ښځې دې داسې واده ته نه لیږي چې هلته د سړو او ښځو اِختلاط وي ، هغوی دې خبر کړي چې مونږ خپلې زَنانه داسې ځای ته نه پرېږدو چې هلته پرَدي سړي او پرَدی ښځې یو ځای اُوځي او ننوځي.

---

(۱) اصلاح خواتین ص ۳۰۶.

اوس که هغوی د واده په موقع د پَردې اِنتظام اوکړو يعنی د سرو او ښځو د پاره يې جدا جدا ځايونه جوړ کړل او د ښځو ځايونو ته پَردې سرې نه راتلل نو ډيره ښه ده ښځې دې وراوليږي ، خو که هغوی دا اِنتظام اونکړو نو بيا بالکل ښځې ورپرېنږدل ندي په کار ، او که هغوی خفه کيږي نو شل ځله دې خفه شي ؛ ځکه هغوی چې ستا د ښځو د حياء او پَردې لحاظ نه ساتي نو ته د هغوی د خفګان لحاظ مه ساته .

## خلاصه

د غونډ تقرير خلاصه دا رااُووته چې زَنانه وُ د پاره شرعي پَرده فرض ده ، ددې فرضيت د قرآن کريم ، صيحح احاديثو ، اجماعِ اُمت ، او قياس نه صراحةً ثابت دی .

نبي عليه السلام او صحابه کرامو رضي الله عنهم به د خپلو بيبيانو د پَردې پوره اِهتمام کولو ، او مسلمانو زَنانه وُ ته يې هم د پَردې تاکيدي حکم کړی .

همدارنګې اُمّهاتُ المؤمنين او نورو صحابياتو به هم د پَردې پوره لحاظ ساتل .

لهذا اوس زَنانه وُ ته په کار دي چې د شرعي پَردې پوره لحاظ اُوساتي ، اسلام چې ورته د چا نه د پَردې کولو حکم کړی د هغوی نه پَرده اوکړي .

## دُعا

الله تعالى دې مونږ ټولو ته په شريعت باندې د پوهيدو او بيا په دې باندې د عمل کولو توفيق رانصيبه کړي ، او مونږ ټول دې د بې حيايۍ او فحاشۍ د سيلاب نه اُوساتي .

پروَردِګار عالَم دې زمونږ په زَنانه وُ باندې د حياء او عزت څادر واچوي ، او د دوی په زړونو کې دې د شرعي پَردې اَهميت پيدا کړي .

ربِّ کائنات دې مونږ ټولو ته د ژوند په هره مرحله کې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په نقشِ قدم باندې د تللو توفيق راکړي .

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

﴿ وَقَرۡنَ فِيۡ بُيُوۡتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجۡنَ تَبَرُّجَ الۡجَاهِلِيَّةِ الۡاُوۡلٰى ﴾

الاحزاب آیة ۳۳۔

# زنانهٔ د پاره د پردې فضائل او بې پردګۍ سزاګانې

تالیف

اَبُوالشَّمۡس مولانا نُوۡرُالۡهُدٰى عُفِيَ عَنۡهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فیضُ القُرآن اکاخیل کالونی مردان

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د ښځو د پاره د پردې فضائل او فوائد

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَاتَمِ الْأَنْبِيَآءِ وَأَشْرَفِ الْمُرْسَلِيْنَ ، وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ وَمَنْ تَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ .

اَمَّا بَعْدُ فَأَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ :

﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى ﴾ .(۱)

وَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِيْ بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِيْ حُجْرَتِهَا ، وَصَلَاتُهَا فِيْ مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِيْ بَيْتِهَا .(۲)

وَقَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ : مَنْ قَعَدَ مِنْكُنَّ فِيْ بَيْتِهَا فَإِنَّهَا تُدْرِكُ عَمَلَ الْمُجَاهِدِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ .(۳)

صَدَقَ اللّٰهُ الْعَظِيْمُ .

---

(۱) الاحزاب آية ۳۳ .

(۲) سنن ابي داؤد كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ التَّشْدِيْدِ فِيْ ذٰلِكَ (اى فِيْ خُرُوْجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسْجِدِ) رقم الحديث ۵۷۰ قال الالباني صحيح . مشكوة المصابيح كتاب الصَّلَاة بَابُ الْجَمَاعَةِ وفضلها الفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۱۰۶۳(۱۲) ، صحيح ابن خزيمة رقم لاحديث ۱۶۹۰ ، و رقم الحديث ۱۶۸۸ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۹۱۰۱ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۹۴۸۲ ، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۵۷ وقال الحاكم : هٰذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحٌ عَلٰى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . و وافقه الذهبي ، السنن الكبرى للبيهقي رقم ۵۳۶۱ ، شرح السنة للبغوي رقم ۸۶۵ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۲۱۰۹ .

(۳) عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ : جِئْنَ النِّسَاءُ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَ : يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! ذَهَبَ الرِّجَالُ بِالْفَضْلِ وَالْجِهَادِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَمَا لَنَا عَمَلٌ نُدْرِكُ بِهٖ عَمَلَ الْمُجَاهِدِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ قَعَدَ مِنْكُنَّ فِيْ بَيْتِهَا فَإِنَّهَا تُدْرِكُ عَمَلَ الْمُجَاهِدِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ . مسند البزار ج ۱۳ ص ۳۳۹ رقم الحديث ۶۹۶۲ ، تفسير ابن كثير ج ۶ ص ۴۰۹ سورة الاحزاب في تشريح آية ۳۳ ، الدر المنثور في التفسير بالمأثور ج ۶ ص ۶۰۰ .

## تمهيدي خبره:

زما خوږو قدرمنو او عزت مندو مسلمانانو ورونو ! په اسلام کې د زَنانهٔ د پاره د شرعي پَردې ډير فضائل ، فوائد او حِکمتونه بيان شوي ، او ورسره ورسره د بې پَردګۍ ډيرې سزاګانې او نقصانات هم ذکر شوي.

په نن موضوع کې به زه إن شاء الله تاسو ته د پَردې يو څو مشهور فضائل او فوائد ذکر کړم ، او ورسره به د بې پَردګۍ څه سزاګانې او نقصانات هم ذکر کړم:

## په پَردې کولو سره د الله او رسول د حُکم تابعداري راځي

په قرآن مجيد کې په څو ځايونو کې الله تعالی زَنانهٔ ته د پَردې حکم کړی ، لکه فرمايي:

﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى ﴾ . (۱)

ترجمه : او تاسو په کورونو کې اُوسئ ، او د ړومبي جاهليت (د زمانې) په شان ښائست مه ښکاره کوئ.

بل ځای فرمايي :

﴿ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ ذَلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ ﴾ . (۲)

ترجمه : او کله چې تاسو د نبي عليه السلام د بيبيانو نه څه څيز غواړئ نو د پَردې شاته (اُودريدو سره) يې ورنه غواړئ (ځکه) دا ستاسو او د هغوی د زړونو د پاره ډيره پاکيزه طريقه ده.

بل ځای فرمايي : ﴿ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ . (۳)

ترجمه : اې پيغمبره ! ته خپلو بيبيانو ، خپلو لورانو او مؤمنانو زَنانهٔ ته اُووايه چې (د کور نه د څه ضرور کار پسې د وتلو په وخت) خپل لوې څادرونه په ځان باندې راښکته کړي .

---

(۱) الاحزاب آية ۳۳ .

(۲) الاحزاب آية ۵۳ .

(۳) الاحزاب آية ۵۹ .

په مذکوره آیتونو کې صراحةً زَنانه ؤ ته د پَردې کولو حکم شوی.
د دینه علاوه نور آیتونه هم داسې شته چې په هغې کې زَنانه ؤ ته د پَردې حکم شوی.
همدارنګې نبي علیه السلام هم په خپلو مبارکو احادیثو کې زَنانه ؤ ته د پَردې حکم کړی، او پخپله یې د اَزواجِ مُطهّرات د پَردې اِنتظام کړی ( هغه احادیث په مخکې موضوع کې تفصیلاً تېر شوي ) .
نو چې کله دا معلومه شوه چې د ښځو د پاره پَرده کول د الله او رسول حُکم دی نو دا خو بیا یقیني خبره ده چې په هر مسلمان باندې د الله او رسول حُکم منل لازمي دی:
الله تعالی فرمایي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ.... ﴾ . (۱)
ترجمه : اې د ایمان خاوندانو ! تاسو حکم اُومنئ د الله ، او حکم اُومنئ ( د هغه ) د رسول...
د الله او رسول اِطاعت کوونکي کامیاب دي:
﴿ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَخْشَ ٱللَّهَ وَيَتَّقْهِ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ﴾ . (۲)
ترجمه : او څوک چې د الله او د هغه د رسول اِطاعت کوي (یعنی د دوی حکم مني) ، د الله نه ویرېږي ، او تقوٰی اختیار کړي پس همدا خلق کامیابېدونکي دي.
او څوک چې د الله او د هغه د رسول نافرماني کوي نو د داسې کس د پاره د جهنم سخته سزا ذکر شوی:
﴿ وَمَن يَعْصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَإِنَّ لَهُۥ نَارَ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ﴾ . (۳)
ترجمه : او څوک چې د الله او دده د رسول نافرماني اوکړي نو بیشکه دده د پاره اُور د جهنم دی ، دوی به په هغې کې همیشه وي تل تر تله.
﴿ وَمَن يَعْصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَٰلًا مُّبِينًا ﴾ . (۴)

---
(۱) النساء آیة ۵۹ ، و سورة محمد آیة ۳۳ .
(۲) النور آیة ۵۲ .
(۳) الجن آیة ۲۳ .
(۴) الاحزاب آیة ۳۶ .

ترجمه : او څوک چې د الله او د هغه د رسول نا فرماني او کړي نو بیشکه هغه ګمراه شو په ښکاره ګمراهۍ سره .

## پَرده کول د زَنانه او نارینهٔ دواړو د پاره د زړونو د پاکوالي ذریعه ده

د پَردې کولو دویمه فائده داده چې ددې په وجه د زَنانهٔ او نارینهٔ دواړو زړونه پاک وي ، په قرآن کریم کې الله تعالی د پَردې حِکمت همدا ذکر کړی :

﴿ ذٰلِكُمْ اَطْهَرُ لِقُلُوْبِكُمْ وَقُلُوْبِهِنَّ ﴾ . (۱)

ترجمه : دا ستاسو او د هغوی د زړونو د پاره ډیره پاکیزه طریقه ده .

په دې آیت کې الله تعالی صراحةً دا ذکر کړل چې پَرده کول د مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو د زړونو د پاکوالي ذریعه ده .

کله چې زَنانه په پَرده کې وي او ددې مخ څوک اُو نه ګوري نو د هیچا په زړه کې وَسوسې او خواهشات نه راپیدا کیږي ، خو چې کله بې پَردې وي او په دې باندې د چا نظر اُولږي نو خامخا په دې سره په زړه کې د ګناه وَسوسې پیدا کیږي ، بیا ددینه ناجائز تعلقات پیدا شي ، او آخري اَنجام یې ډیر خراب وي ، نو ځکه د زَنانهٔ د پاره پَرده کول د زړونو د پاکوالي او حفاظت ذریعه ده . (۲)

## پَرده د اِیمان تقاضا ده

د مؤمنې ښځې شان دادی چې دا به پَرده کوي ، ځکه الله تعالی د پَردې خطاب صرف مومناتو ښځو ته کړی :

(۱) الاحزاب آية ۵۳ .

(۲) بَيَّنَ الله سبحانه الحكمة من تشريع الحجاب، وأجملها في قوله تعالى: ﴿ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَسْئَلُوهُنَّ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ ذٰلِكُمْ اَطْهَرُ لِقُلُوْبِكُمْ وَقُلُوْبِهِنَّ ﴾ فنص سبحانه على أنّ الحجابَ طهارةٌ لقلوب المؤمنين والمؤمنات. وبيانُ ذلك أنّه إذا لم تر العين لم يشته القلب، أما إذا رأت العين فقد يشتهي القلب، وقد لا يشتهي. فالقلب عند عدم الرؤية أطهر. وعدم الفتنة حينئذ أظهر، لأنّ الرؤية سبب التّعلق والفتنة. فكان الحجاب أطهر للقلب، وألفى للريبة، وأبعد للتهمة، وأقوى في الحماية والعصمة . عودة الحجاب ج ۳ ص ۹۸ .

﴿ وَقُل لِّلْمُؤْمِنَٰتِ ﴾ (اې پيغمبره !) ته مؤمنانو ښځو ته اُووايه ... (۱)

بل ځای فرمايي : ...﴿ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِينَ ... ﴾ او مؤمنانو زنانهؤ ته اُووايه ... (۲)

او کله چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د بني تميم ښځې راغلی او بدن باندې يې نری کپړې وی نو دې ورته اوفرمايل :

إِنْ كُنْتُنَّ مُؤْمِنَاتٍ فَلَيْسَ هٰذَا بِلِبَاسِ الْمُؤْمِنَاتِ ، وَإِنْ كُنْتُنَّ غَيْرَ مُؤْمِنَاتٍ فَتَمَتَّعْنَ بِهِ .

که چيرته تاسو مومنانې يَی نو بيا دا (نری کپړې) د مومنانوښځو لباس ندی ، او که مؤمنانې نه يَی نو بيا ددينه فائده واخلئ . (۳)

يوې زنانه نری لوپټه په سَر کړې وه نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورته اوفرمايل :

لَمْ تُؤْمِنْ بِسُورَةِ النُّورِ اِمْرَأَةٌ تَلْبَسُ هٰذَا ؟

ته په سورة نُور باندې ايمان نه لری ؟ آيا ښځه داسې لوپټه (او لباس) اچوي ؟ (۴)

## پَرده کول د ښځې د پاره حياء ده

په پَرده کولو کې د ښځې د پاره حياء ده ، کومه زَنانه چې پَرده کوي نو هغه حياء داره معلوميږي ، په معاشره کې ددې ښځې عزت زيات وي . او حياء خو د ايمان حصه ده .

رسولُ الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

اَلْحَيَاءُ مِنَ الْإِيْمَانِ . حياء د ايمان حصه ده . (۵)

---

(۱) النور آية ۳۱ .

(۲) ﴿ يَآأَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّ ﴾ الاحزاب آية ۵۹ .

(۳) دَخَلَ نِسْوَةٌ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ عَلٰى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَلَيْهِنَّ ثِيَابٌ رِقَاقٌ . فَقَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : إِنْ كُنْتُنَّ مُؤْمِنَاتٍ فَلَيْسَ هٰذَا بِلِبَاسِ الْمُؤْمِنَاتِ ، وَإِنْ كُنْتُنَّ غَيْرَ مُؤْمِنَاتٍ فَتَمَتَّعْنَ بِهِ . تفسير القرطبي ج ۱۴ ص ۲۴۴ سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۹ . عودة الحجاب ج ۳ ص ۹۸ . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۲۷ .

(۴) وَأُدْخِلَتِ امْرَأَةٌ عَرُوْسٌ عَلٰى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وَعَلَيْهَا خِمَارٌ قُبْطِيٌّ مُعَصْفَرٌ . فَلَمَّا رَأَتْهَا قَالَتْ : لَمْ تُؤْمِنْ بِسُورَةِ النُّورِ اِمْرَأَةٌ تَلْبَسُ هٰذَا . تفسير القرطبي ج ۱۴ ص ۲۴۴ سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۹ .

(۵) صحيح مسلم كِتَابُ الْإِيْمَانِ بَابُ شُعَبِ الْإِيْمَانِ رقم الحديث ۵۹ (۳۶) ، صحيح البخاري رقم الحديث ۲۴، ورقم الحديث ۶۱۱۸ .

په يو حديث کې راځي :

اَلْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الْإِيْمَانِ. حياء د ايمان شعبه ( څانګه ) ده. (۱)

په احاديثو کې د حياء ډير فضائل ذکر شوي. (۲)

د حياء آخري اَنجام ډير ښه وي، نبي عليه السلام فرمايي :

اَلْحَيَاءُ خَيْرٌ كُلُّهُ. حياء ټول خير دی. (۳)

په بل حديث کې ذکر راځي : اَلْحَيَاءُ لَا يَأْتِي إِلَّا بِخَيْرٍ. حياء صرف خير راوړي. (۴)

او په چا کې چې حياء نه وي نو د هغه نيم اِيمان هم کامِل نه وي ؛ ځکه حياء او اِيمان دواړه لازم او مَلزوم دي :

رسولُ الله ﷺ فرمايي : اَلْحَيَاءُ وَالْإِيْمَانُ قُرِنَا جَمِيْعًا. فَإِذَا رُفِعَ أَحَدُهُمَا رُفِعَ الْآخَرُ. (۵)

حياء او اِيمان دواړه ملګري دي کله چې يو پورته شي نو بل هم ورسره پورته کيږي.

دا يقيني خبره ده چې کله زَنانه په پَرده کې وي نو په دې سره د بې حياَيۍ او نورو ناجائزو کارونو دَروازې پخپله بنديږي.

بل دا چې حياء د هرې ښځې د پاره طبعي څيز دی، يعنی هره ښځه طبعًا حياء ناکه وي، الله تعالی ددې په فِطرت کې حياء ايښې وي، خو دغلط ماحول او غلط تربيت په وجه ددې

---

(۱) صحيح البخاري كِتَابُ الإِيمَانِ بَابُ أُمُورِ الإِيمَانِ رقم الحديث ۹. صحيح مسلم كِتَابُ الإِيمَانَ بَابُ شُعَبِ الإِيمَانِ رقم الحديث ۵۷ (۳۵).

(۲) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « اَلْحَيَاءُ مِنَ الْإِيْمَانِ. وَالْإِيْمَانُ فِي الْجَنَّةِ. وَالْبَذَاءُ مِنَ الْجَفَاءِ. وَالْجَفَاءُ فِي النَّارِ. سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْحَيَاءِ رقم الحديث ۲۰۰۹ وقال الترمذي: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. مصنف ابن ابي شيبة رقم ۲۵۳۴۵،

(۳) صحيح مسلم كِتَابُ الإِيمَانَ بَابُ شُعَبِ الإِيمَانِ رقم الحديث ۶۰(۳۷).

(۴) وړاندېنی مرجع.

(۵) المستدرک علی الصحيحين للحاکم رقم الحديث ۵۸ وقال الحاکم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِهِمَا. فَقَدِ احْتَجَّا بِرُوَاتِهِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ بِهَذَا اللَّفْظِ. شعب الايمان رقم الحديث ۷۳۳۱، الادب المفرد مخرجا رقم الحديث ۱۳۱۳، مشکاة المصابيح رقم الحديث ۵۰۹۳(۲۶)، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۳۹۹۷. مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۵۳۵۰.

دا فطرت مسخ شي . لهذا پَرده د ښځې د پاره د فِطرت موافق ده ، او په دې کې د ښځې حياء محفوظه وي .

## په پَرده کې د ښځې عفت او پاک دامني ده

په پَرده کولو کې د ښځې د پاره عِفت او پاک دَامني ده ، او عِفت داسې بهترين صفت دی چې رسولُ الله ﷺ به مسلمانانو ته ددې حکم کولو . (۱)

نبي عليه السلام به چې د ځان د پاره کومه دُعا غوښته نو په هغې کې به يې هم د عِفت سوال کولو . (۲)

په قرآن کريم کې هم الله تعالى د جنت د حورو يو صفت عِفت او پاکدامني ذکر کړی . (۳)

او د کاميابو مؤمنانو يو صفت يې هم پاکدامني ذکر کړی ، الله تعالى فرمايي :

﴿ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ ﴾ . (۴)

---

(۱) په بخاري شريف کې اوږد حديث دی چې هرقل بادشاه د ابوسفيان نه پوښتنه اوکړه : چې نبي عليه السلام تاسو ته د څه حکم کوي ؟ نو ده چې ورته کوم شيان ياد کړل په هغې عِفت هم وُ .

... قَالَ : مَاذَا يَأْمُرُكُمْ ؟ قُلْتُ: يَقُوْلُ : اُعْبُدُوا اللهَ وَحْدَهُ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهِ شَيْئًا. وَاتْرُكُوْا مَا يَقُوْلُ آبَاؤُكُمْ. وَيَأْمُرُنَا بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ وَالصِّدْقِ وَالْعَفَافِ وَالصِّلَةِ ... صحيح البخاري كَيْفَ كَانَ بَدْءُ الْوَحْيِ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ بَابُ بَدْءِ الْوَحْيِ رقم الحديث ۷ .

(۲) عَنْ عَبْدِ اللهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ : اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ الْهُدٰى وَالتُّقٰى . وَالْعَفَافَ وَالْغِنٰى . صحيح مسلم، كتاب الذِّكْرِ وَالدُّعَاءِ وَالتَّوْبَةِ وَالاِسْتِغْفَارِ بَابُ التَّعَوُّذِ مِنْ شَرِّ مَا عَمِلَ وَمِنْ شَرِّ مَا لَمْ يَعْمَلْ رقم الحديث ۷۲ (۲۷۲۱) ، سنن الترمذي رقم الحديث ۳۴۸۹ .

(۳) والعفة صفة من صفات الحور العين التي أشار إليها قوله تعالى: ﴿ حُوْرٌ مَّقْصُوْرٰتٌ فِي الْخِيَامِ ﴾ [ الرحمن آية ۷۲ ] ، وقوله عز وجل: ﴿ وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ أَتْرَابٌ ﴾ [ ص آية ۵۲ ] ، وقوله جل وعلا: ﴿ وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ عِيْنٌ ﴾ [ الصافات آية ۴۸ ] فقوله جل وعلا : ( قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ) يعني: أنهن عفيفات لا ينظرن إلى غير أزواجهن. ( عِيْنٌ ) أي : حسان الأعين، جميلات المظهر، عفيفات تقيات نقيات. فقد جعل سبحانه عفتهن قرينة حجابهن وقرارهن في خيامهن، وامتدحهن بالعفة مع الجمال . عودة الحجاب ج ۳ ص ۹۹

(۴) المؤمنون آية ۵ .

ترجمه: (مؤمنان هغه دي) کوم چې د خپلو شرمګاهو حفاظت کوي.
د شرمګاهو د حفاظت نه مراد عفت او پاکدامني ده.

## د پردې په وجه د زنا ، بې حیایۍ او لاعلاجه مرضونو دروازې بندیږي

زنا ګناه کبیره ده، په قرآن کریم او احادیثو کې ددې سختې سزاګانې ذکر شوي ، اوس د زنا نه د بچ کیدو د پاره آسانه طریقه داده چې زنانه په پرده کې وي، نو په دې سره به د زنا دروازه هم بنده شي ، او مسلمانان به د ایډز او نورو لاعلاجه بیماریانو نه هم محفوظ شي.

**الله تعالی د ګناه د اسبابو نه هم انسان منع کړی** الله تعالی ډیر غیرتي ذات دی، کوم کار چې د ګناه وي انسان یې د هغې د اسبابو او وسائلو نه هم منع کړی، ددې د پاره چې انسان په دې کې واقع نشي.

مثلا شراب څکل یې حرام کړي نو ورسره یې د شرابو جوړول ، د شرابو اخیستل او خرڅول هم حرام کړي.

یا مثلا شریعت بت پرستي او شرک یې حرام کړی نو ورسره یې د نمر راختلو ، نمر پریوتلو او زوال په وخت مونځ هم حرام کړی؛ ځکه په دې وخت کې مونځ کولو سره د هغه کافرانو سره مشابهت راځي چې هغوی د نمر عبادت کوي.

همدارنګې تصویران او بتان جوړول هم د بت پرستۍ سبب کیدې شي نو ځکه شریعت ددینه هم منع کړی.

همدغه شان زنا هم ګناه کبیره ده ، لکه څرنګې چې الله تعالی انسان د زنا نه منع کړی نو همدغه شان یې د زنا د اسبابو نه هم منع کړی. فرمایي:

﴿ وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰٓ إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةً وَسَآءَ سَبِيلًا ﴾.(۱)

ترجمه: او تاسو زنا ته مه ورنږدې کیږئ بیشکه دا بې حیائي او بده لاره ده.

الله تعالی داسې او نه فرمایل چې " زنا مه کوئ " بلکه داسې یې اوفرمایل چې "زنا ته مه ورنږدې کیږئ" حالانکه د الله ﷻ مقصد همدا زنا نه کول دی، دا ځکه چې الله تعالی د زنا ټولې لارې بندول غواړي.

---

(۱) الاسراء آیة ۳۲

دا يقيني خبره ده چې بې پَردګي د بې حيايۍ او زِنا د پاره جَرړه ده ، چې کله پَرده نه وي نو شرم او حياء هم نه وي ، او چې حياء نه وي نو بيا انسان د ګناهونو هيڅ پَرواه نه کوي .(۱)

**د زِنا او بې حيايۍ په وجه لوي لوي قومونه تباه کيږي** زِنا او بې حيايي داسې خطرناک مرضونه دي چې ددې په وجه لوي لوي قومونه تباه کيږي .

نن صبا چې څومره غټ غټ جُرمونه کيږي ، يا قتلونه لوټ مار او نور خطرناک واقعات راپيښيږي نو ددې شاته خامخا د بې حيايۍ او زِنا جال شته .

يا خاصکر چې نن صبا په يورپي او مغربي ملکونو کې دا غټ غټ جُرمونه کيږي نو دا ځکه چې دوی د بې حيايۍ او زِنا عام اِجازت ورکړی .

چې کله په يو ملک کې د بې حيائي او زِنا عام اِجازت ورکړې شي نو بيا به خامخا ددې خطرناک آثرات رابنکاره کيږي ، بيا جُرمونه راکنټرول کول مشکل دي .

ددې خو داسې مثال دی لکه يو کس لرګي راجمع کړي ، پاس پرې تېل واړوي ، اُور ورکړي او بيا کوشش کوي چې ددې لمبې کنټرول کړي نو دا خو نشي کيدی .

يا يې مثال داسې دی لکه کټوَی ( د پَخلي دېګې ) په تېز اُور باندې کيږدي او بيا کوشش کوي چې جُوشيدل کنټرول کړي ، نو دا خو نشي کيدی .

همدغه شان يورپي او مغربي ملکونو بې حيائي او زِنا عامه کړې ده نو اوس به خامخا ددې غلط آثرات رابنکاره کيږي .

بل اسلام داسې پاکيزه نظام دی چې کوم کارونه د انسانيت د پاره ضَرَري وو نو هغه يې ناجائز کړل او د هغې په ټولو اَسبابو باندې يې هم پابندي اُولږوله . مثلاً زِنا خطرناک جُرم دی نو دا يې حرامه اُوګرځوله ، ورسره يې د زِنا ټولې لارې هم بندې کړی :

هغه دا چې سړو او ښځو ته يې د نظرونو ښکته ساتلو حکم اوکړو ، ښځو ته يې د کور په چارديوالۍ کې د ژوند تيرولو حکم اوکړو چې بِلاضرورت به د کور نه بهر نه اُوځي ، يا که

---

(۱) په حديث کې هم راځي ، رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَافْعَلْ مَا شِئْتَ .
چې کله در کې حياء نه وي نو بيا چې دې څه خوښه وي هغه کوه ( خو سزا به يې اُوګورې ) . صحيح البخاري كِتَابُ أَحَادِيثِ الأَنْبِيَاءِ بَابُ حَدِيثِ الغَارِ رقم الحديث ۳۴۸۳

د ضرورت په وجه د کور نه بهر اوځي نو په بُرقع یا لوي پړوني کې یې ورته د ټول بدن پټولو او د لارې په یو طرف باندې د تللو حکم اوکړو ، بهر ته د وتلو په وخت یې ښځه د خوشبو استعمالولو او شرَنګیدونکو زیوراتو اچولو نه منع کړی ، بیا اسلام د دوی د حفاظت د پاره دا تدبیر اوکړو چې که ددې ټولو خبرو باوجود بیا هم څوک زِنا اوکړي نو د هغوی د پاره یې عبرت ناکه سزا مقرر کړی چې حَد به ورباندې جاري کیږي .

او که ښځه بې پَردې کلاؤ مخ د پرَدو سړو سره یو ځای ګرځي نو خامخا په دې به د خلقو غلط نظر لږي ، بیا به یې ورسره تعلق پیدا کیږي ، او آخر به خبره زِنا ته رسي ، نو ځکه شریعت د زِنا ټولې لارې بندې کړي .

پس معلومه شوه چې اسلام د ښځې په پَردې کولو سره د زِنا او ګناهونو ټولې لارې بندې کړي .

## پَرده د غیرت موافق ده

د غیرت تقاضا هم داده چې ښځه دې په پَرده کې اوساتلې شي ځکه هیڅ غیرتي او حیادار انسان دا نه برداشت کوي چې د هغه ښځه او لور دې د پرَدو سړو د وړاندې ښکاره مخ ګرځي ، یا دې څوک دوی ته په غلط نظر باندې اوګوري .

همدارنګې په کومه ښځه کې چې غیرت او حیاء وي هغه هم هیڅ کله د پرَدو سړو د وړاندې بې پَردګي نه خوښوي .

پَرده طبعي څیز دی ، که شریعت د پَردې متعلق احکامات نه وې نازل کړي نو بیا به هم غیرتي انسان د ښځو بې پَردګي نه وه خوښه کړی حالانکه شریعت خو زَنانهؤ ته د پَردې تاکیدي احکامات نازل کړي .

په اسلامي ښو صفتونو کې یو ښه صفت " غیرَت " هم دی ، په چا کې چې اسلامي غیرَت وي د هغه اِیمان به هم مضبوط وي ، او په چا کې چې غیرت نه وي په هغه کې اِیمان هم نه وي .

په یوه موقع نبي ﷺ اوفرمایل ، أَتَعْجَبُونَ مِنْ غَيْرَةِ سَعْدٍ . وَاللهِ لَأَنَا أَغْيَرُ مِنْهُ . وَاللهُ أَغْيَرُ مِنِّي . وَمِنْ أَجْلِ غَيْرَةِ اللهِ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ .



آیا تاسو د سعد بن عباده رضي الله عنه په غیرت باندې تعجب کوئ ؟ قسم په الله زه د هغه نه ډیر غیرتي یم ، او الله جل جلاله د مانه هم ډیر غیرتي دی ، او الله جل جلاله د همدې غیرت په وجه ښکاره او پټ ګناهونه حرام کړي دي . (۱)

په احادیثو کې دا واقعه ذکر ده چې یو صحابي د کور په دَروازه کې خپله بي بي اُولیده نو دومره غیرت ورغی چې په نېزه باندې یې د هغې د وهلو اِرادہ اوکړه خو هغې ورته دروازې ته د راوتلو وجه بیان کړه چې په کور کې غټ مار دی نو بیا د وهلو نه منع شو . (۲)

حضرت عُمر رضي الله عنه هم د ښځو په باره کې ډیر غیرتي ؤ ، هغه پخپله فرمایي چې ما نبي علیه السلام ته وویل :

يَا رَسُولَ اللهِ ! يَدْخُلُ عَلَيْكَ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ ، فَلَوْ أَمَرْتَ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِالْحِجَابِ . فَأَنْزَلَ اللهُ آيَةَ الْحِجَابِ . (۳)

اې د الله رسوله ! تاسو ته ښه او خراب دواړه قِسمه خلق راځي نو که تاسو اُمّهات المؤمنین ته د پَردې حکم اوکړې نو دا به ډیره ښه وي ، نو الله تعالی د پَردې آیت نازل کړو .

یو ځل حضرت علي رضي الله عنه په خطبه کې خلقو ته وویل :

أَمَا تَغَارُوْنَ أَنْ تَخْرُجَ نِسَاؤُكُمْ ؟ فَإِنَّهُ بَلَغَنِيْ أَنَّ نِسَاءَكُمْ يَخْرُجْنَ فِي الْأَسْوَاقِ يُزَاحِمْنَ الْعُلُوْجَ .

---

(۱) قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ رضي الله عنه : لَوْ رَأَيْتُ رَجُلًا مَعَ امْرَأَتِيْ لَضَرَبْتُهُ بِالسَّيْفِ غَيْرَ مُصْفَحٍ ، فَبَلَغَ ذٰلِكَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : « أَتَعْجَبُوْنَ مِنْ غَيْرَةِ سَعْدٍ ، وَاللهِ لَأَنَا أَغْيَرُ مِنْهُ ، وَاللهُ أَغْيَرُ مِنِّيْ ، وَمِنْ أَجْلِ غَيْرَةِ اللهِ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ، وَلَا أَحَدَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْعُذْرُ مِنَ اللهِ ، وَمِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ بَعَثَ الْمُبَشِّرِيْنَ وَالْمُنْذِرِيْنَ ، وَلَا أَحَدَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْمِدْحَةُ مِنَ اللهِ ، وَمِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ وَعَدَ اللهُ الْجَنَّةَ » . صحيح البخاري كِتَابُ التَّوْحِيْدِ بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « لَا شَخْصَ أَغْيَرُ مِنَ اللهِ » رقم الحديث ۷۴۱۶ ، و رقم الحديث ۶۸۴۶ كِتَابُ الْحُدُوْدِ بَابُ مَنْ رَأَى مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا فَقَتَلَهُ . صحيح مسلم كِتَابُ اللِّعَانِ رقم الحديث ۱۷(۱۴۹۹) .

(۲) دا پوره واقعه په تفصیل سره په مخکې موضوع کې په صفحه ۷۵ باندې ذکر ده ، هلته یې اُوګوره . ابو الشمس عفي عنه

(۳) صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيْرِ الْقُرْآنِ بَابُ قَوْلِهِ : (لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ ...) رقم الحديث ۴۷۹۰ .

آيا تاسو ته غيرت نه درځي چې ستاسو ښځې (بلا ضرورت) بهر اُوځي ؟ بيشکه ماته دا خبره رارسيدلې ده چې ستاسو ښځې بازارونو ته (بغير ضرورته) اُوځي او هلته د سړو سره په تللو کې جنګيږي.

أَلَا إِنَّهُ لَا خَيْرَ فِيمَنْ لَا يَغَارُ . خبر دار په هغه کس کې هيڅ خير نشته چې په هغه کې غيرت نه وي. (۱)

بهر حال ، د زَنانهؤ د پاره پَرده کول د غيرت موافق ده ، نن صبا چې دا څومره د زنا او نور غټ غټ واقعات راپيښيږي نو ددې غټ سبب بې غيرتي او بې پَردګي ده . چې سړې دومره بې غيرته شي چې دده ښځه په بازار کې کلاؤ مخ سينګار کړې ګرځي او دا ورته هيڅ نه وايي نو خامخا به بيا داسې د بې شرمۍ واقعات راپيښيږي .

او که ښځه په کور کې په پَرده کې ژوند تيروي ، او که د څه ضرورت په وجه بهر اُوځي نو په پَرده کې اُوځي نو هيڅ کله به داسې واقعات پيدا نشي .

**غټ واقعات اکثر د وړو خبرو نه شروع کيږي** : که مونږ سوچ اوکړو نو دا غټ غټ واقعات اکثر د وړو وړو خبرو نه شروع کيږي ، زِنا غټه ګناه ده خو ددې شروع هم اکثر د وړې ګناه نه اُوشي ، بيا قرار په قلار غټې ګناه ته اُورسي . (۲)

---

(۱) عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه ، قَالَ عَلِيُّ بْنُ حَكِيمٍ فِي حَدِيثِهِ: « أَمَا تَغَارُونَ أَنْ تَخْرُجَ نِسَاؤُكُمْ ؟ » وَقَالَ هَنَّادٌ فِي حَدِيثِهِ : « أَلَا تَسْتَحْيُونَ أَوْ تَغَارُونَ ؟ فَإِنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّ نِسَاءَكُمْ يَخْرُجْنَ فِي الْأَسْوَاقِ يُزَاحِمْنَ الْعُلُوجَ » . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۱۱۸ . الزواجر ج ۲ ص ۷۸ ، الكبائر للذهبي ج ۱ ص ۱۷۶ ، كنز العمال رقم الحديث ۸۷۳۵ .

و رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه . أَنَّهُ قَالَ فِي خُطْبَتِهِ: « بَلَغَنِي أَنَّ نِسَاءَكُم يُزَاحِمْنَ الْعُلُوجَ فِي السُّوقِ . أَمَا تَغَارُونَ . أَلَا إِنَّهُ لَا خَيْرَ فِيمَنْ لَا يَغَارُ » . شرح السنة للبغوي بَابُ الْغَيْرَةِ ج ۹ ص ۲۷۰ .

(۲) إنّ الحجابَ بمعناه الواسع يتناسب مع الغيرة المحمودة. وإنّ التبرج والاختلاط والخلوة المحرمة وسائر أسباب الافتتان بالمرأة إنما تنتج عن عدم الغيرة وضعف الحمية. ولو أنّ المرأة التزمت درجة الحجاب المثلى وقرّت في بيتها، ولو أنّها إذا احتاجت للخروج لخرجت، حجبت كلّ بدنها عن الأجانب لما كان لهذه الفتن مكان في حياتنا. ولو أننا تأملنا الواقع من حولنا لأدركنا أنّ بداية الفتنة إنّما هي النظرة المحرمة . عودة الحجاب ج ۳ ص ۱۳۱

يو شاعر وايي : نَظْرَةٌ فَابْتِسَامَةٌ فَسَلَامٌ ✡ فَكَلَامٌ فَمَوْعِدٌ فَلِقَاءُ . (۱)

(چې د زَنانه مخ ښکاره وي نو ) اول پرې نظر اولږي ، بيا سره اُوخاندي ، بيا خبره سلام ته اُورسي ، بيا خبرې شروع کړي ، بيا وعده سره اوکړي ، بيا ملاقات وي .

**د علامه ابن قيم رَحِمَهُ اللَّهُ قول** : علامه ابن قيم رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي : اې انسانه ! ستا په زړه کې چې د ګناه څه خيال راشي نو هغه دفع کړه ځکه که داسې اونکړې نو ددينه به فکر جوړ شي ، او که ( د ګناه ) څه فکر پيدا شي نو دا دَفع کړه ګني ددينه به شهوت جوړ شي ، شهوت دفع کړه ګني ددينه به پَخه اِراده جوړه شي ، که دا پخه اِراده دفع نکړې نو خبره به عمَلي کار ته اُورسي ، او که ته ددې مخ نيوې اونکړې او همداسې پدې کار کې لګيا يې نو دا به دې عادت اوګرځي ، بيا به دا کار پرېښودل درته ګران شي . (۲)

## د پَردې په وجه نسب محفوظ کيږي

د پَردې په وجه د زَنانه د نسب حفاظت هم کيږي ، دغه وجه ده چې کومه زَنانه پَرده کوي او ددې بچي وي نو ددې ښځې خاوند ښه په يقين سره ويلې شي چې " دا بچي زما دي " او په دې کې يې هيڅ شک و شُبهه نه وي .

او کومې ښځې چې بې پَردې او بې حياء په بازارونو کې ګرځي ، او د شريعت د حُدودو لحاظ نه ساتي نو دداسې ښځو خاوندان په يقين سره دا نشي ويلی چې " دا بچي زما دي " دغه وجه ده چې په يورپ او کومو ملکونو کې چې زِنا عامه ده هلته پلار په يقين سره دا نشي ويلی چې " دا بچي د مانه دي " .

## د پَردې نور فضائل

د پَردې په وجه ښځه د خلقو د ضرر نه محفوظ وي ، د شيطاني وَسوسو نه محفوظ وي ، پَرده کول د اَصيلو ښځو علامه ده ، په پَردې کولو سره الله ﷻ خوشحاليږي ، په دې سره د

---

(۱) عودة الحجاب ج ۳ ص ۱۳۱ ، وص ۲۲۴ . فصل الخطاب في المرأة والحجاب ص ۳۸ .

(۲) دَافِعِ الخطرةَ فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ صَارَتْ فكرة . فدافِعِ الفكرةَ فانْ لم تفعلْ صَارَت شَهْوَة . فحاربُها فَإِن لم تفعل صَارَت عَزِيمَة و هِمَّة . فَإِنْ لَمْ تدافعها صَارَت فعلًا . فَإِن لم تتداركه بضدّه صَار عَادَةً فيصعب عَلَيْك الإِنْتِقَال عَنْهَا . الفوائد لابن القيم الجوزية ص ۳۱ فَائِدَة قَوْله تَعَالَى أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ إِلَى آخرهَا .

صحابياتو اقتداء راځي ، په پَردې کولو سره د اسلامي احکاماتو ظهور کيږي او د يهود و نصارىٰ مخالفت راځي ، په پَردې کولو سره په زَنانه کې عِفّت او تقوىٰ پيدا کيږي.
ددينه علاوه علماء کرامو د پَردې کولو نور ډير دُنيوي او اُخروي فضائل هم ذکر کړي . (۱)

## د پَردې مقاصد

اسلام چې د زَنانه وُ د پاره د پَردې حکم کړى نو ددې غټ درې (۳) مقاصد دي :

۱ . په دې سره د ښځو او سړو د اخلاقو حفاظت کيږي ، او د هغې خرابيو دروازه وربانديې بنديږي کومې چې د سړو او ښځو د بې حياء آزاده يو ځاى ګرځيدو نه پيدا کيږي .

۲ . په پَردې سره د سړو او ښځو د کارونو ځانله ځانله تعين اوشي ، او شريعت چې کوم کارونه ښځې ته سپارلي هغه په اطمينان سره په کور کې اوکړي .

**اسلام د سړو او ښځو د پاره ځانله ځانله کارونه متعين کړي** : اسلامي شريعت د ښځو

---

(۱) **من فوائد الحجاب** ۱ . فِي الْحِجَابِ طَهَارَةٌ لِقَلْبِ الْمُؤْمِنِ وَالْمُؤْمِنَةِ . ۲ . فِي الْحِجَابِ مَا يَمْنَعُ إِيْذَاءَ الْمُؤْمِنَاتِ بِقَصْدٍ أَوْ بِغَيْرِ قَصْدٍ ۳ . اَلْحِجَابُ أَمَامَ الرَّجُلِ دَلِيْلٌ عَلَى الْهَيْبَةِ وَالتَّوْقِيْرِ . ۴ . اَلْحِجَابُ يَمْنَعُ الشَّيْطَانَ مِنْ أَنْ يَسْتَشْرِفَ الْمَرْأَةَ أَيْ يَنْظُرَ إِلَيْهَا وَيَتَعَرَّضَ لَهَا . ۵ . فِي الْتِزَامِ الْحِجَابِ تَنْفِيْذٌ لِأَمْرِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَاتِّبَاعٌ لِأَوَامِرِهِ . ۶ . فِي الْحِجَابِ سَكِيْنَةٌ وَوَقَارٌ لِمَنْ يَرْتَدِيْهِ . ۷ . اَلْحِجَابُ سِمَةٌ لِلْحَرَائِرِ . أَمَّا التَّبَرُّجُ وَالْبُرُوْزُ فَهُوَ سِمَةٌ لِلْإِمَاءِ . ۸ . اَلْحِجَابُ وَسِيْلَةٌ مِنْ وَسَائِلِ الْحَيْطَةِ الَّتِيْ شَرَعَهَا اللهُ عَزَّ وَجَلَّ لِحِفْظِ أَعْرَاضِ الْمُسْلِمِيْنَ . ۹ . فِي الْحِجَابِ مَا يُرْضِي اللهَ عَزَّ وَجَلَّ وَيُسْخِطُ الشَّيْطَانَ وَيَسُدُّ عَلَيْهِ بَعْضَ مَنَافِذِ سِهَامِهِ الْقَاتِلَةِ . وَهُوَ بِذٰلِكَ يَحْمِي النِّسَاءَ مِنَ التَّعَرُّضِ لِلْإِيْذَاءِ مِنْ شَيَاطِيْنِ الْإِنْسِ وَالْجِنِّ . ۱۰ . اِلْتِزَامُ الْحِجَابِ فِيْهِ عَمَلٌ بِسِيْرَةِ الصَّحَابَةِ وَالسَّلَفِ الصَّالِحِ الَّذِيْنَ كَانُوْا أَطْهَرَ قُلُوْبًا وَأَنْقَى سَرِيْرَةً . ۱۱ . فِي الْحِجَابِ نَشْرٌ لِلْفَضِيْلَةِ وَهَدْمٌ لِلرَّذِيْلَةِ . ۱۲ . اَلْحِجَابُ مَظْهَرٌ مِنْ مَظَاهِرِ تَمَيُّزِ الْأُمَّةِ الْإِسْلَامِيَّةِ . وَفِيْهِ مُخَالَفَةٌ لِلْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى وَغَيْرِهِمْ . ۱۲ . اَلْمُحَافَظَةُ عَلَى الْحِجَابِ وَالدَّعْوَةِ إِلَيْهِ دَلِيْلٌ عَلٰى عِفَّةِ النَّفْسِ . وَمَظْهَرٌ مِنْ مَظَاهِرِ التَّقْوٰى وَتَعْظِيْمِ حُرُمَاتِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ . نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ۴ ص ۱۵۲۸ الحجاب

او سړو د پاره ځانله ځانله کارونه متعيّن کړي ، دغه وجه ده چې دواړو ته يې ځانله ځانله صفات او ځانله ځانله جسم ورکړی :

ښځه چونکه د ماشوم مور وي نو ديته يې صبر ، تحمّل او نَرمي ورکړی چې د بچو پَرورش په ښه طريقې سره اوکړي .

او سړي يې پلار ګرځولی ، د بي بي او کور د خرچې بُوج يې دده په ذِمه باندې ايخی ، دغه وجه ده چې ده ته يې جِسم او صفات هم جدا جدا ورکړي ددې د پاره چې دا بهر تجارت، سياست او نور کارونه اوکړي .

لکه څرنګې چې شريعت په سړي باندې د ښځو کارونه ندي لازم کړي نو همدغه شان په ښځه باندې يې هم د سړو کارونه ندي لازم کړي .

اوس که څوک دا نظريه لري چې ښځه دې هم بهَر سياست ، تجارت او نورو کارونو ته راأووځي نو دا د ښځې سره ظلم کول دي ، ځکه په دې باندې خپل د کور بُوج هم دی او تا ورباندې د سړو د کار بُوج هم واچول .

لهذا اسلامي شريعت ښځو ته په کور کې د پَردې حکم اوکړو چې ديته په کور کې کوم کارونه سپارل شوي هغه په اِطمينان سره اوکړي او د کور نظم و نَسق بِرابر کړي .

۳ . د پَردې دريم مقصد دادی چې په دې سره کورنۍ نِظام مضبوط او محفوظ شي ، ځکه اسلام دا غواړي چې ښځو ته خپل حقوق هم ملاوُ شي او کورنۍ نظام يې هم مضبوط شي ، او دا هله کيدې شي چې ښځې په کورونو کې په پَرده کې ناستې وي .

او چې کله ښځې د ترقۍ په نوم باندې په سياست يا نورو کارونو کې حصه اخيستلو د پاره د کور نه بهر اُووځي ، شپه او ورځ په دفترونو ، بازارونو او کلبونو کې وخت تيروي نو دداسې ښځو کورنۍ نِظام مکمل تباه وي ، او په کورنۍ ژوند کې يې هيڅ سکون نه وي .

ځکه سکون په بې پَردګۍ کې ندی ، بلکې په پَرده کولو او د شريعت په احکاماتو باندې پوره عمل کولو کې دی .

# د بې پردګۍ سزاګانې او نقصانات

محترمو مسلمانانو ! اسلام زَنانه وُ ته د پَردې ډير تاکيد کړی او د بې پَردګۍ نه يې منع کړې دي ؛ ځکه په بې پَردګۍ سره د بې حيايۍ ، بې غيرتۍ ، او نورو ډيرو ګناهونو دوازه کلاوېږي ، کورنې نِظام تباه کيږي ، نَسَب مُشتبِه کيږي ، په ښځو کې حياء پاکدامني او نور بهترين صفات ختميږي ، او مُعزّزې کورنۍ ورسره ذليله کيږي .

الله تعالى مسلمانانو ښځو ته په کور کې د پاتې کيدو حکم کړی ، او بې پَردګۍ سره يې د بهر وتلو نه منع کړي : ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ ﴾ . (۱)

ترجمه : او تاسو په کورونو کې اُوسئ ، او د ړومبي جاهليت ( د زمانې ) په شان ښائست مه ښکاره کوئ .

يعنې د اسلام نه وړاندې د جاهليت په زمانه کې به چې څنګه ښځې په بې پَردګۍ سره د سړو د وړاندې په ناز و نَخرو سره تللې او خپل زِينت به يې ښکاره کول نو هغه شان تاسو په بې حيايۍ سره مه ګرځئ . (۲)

اوس کومه ښځه چې بې پَردې ګرځي نو دا ګناهګاره ده ځکه د ښځې د پاره پَرده فرض ده او د فرض په پريخودو انسان ګناهګاريږي . (۳)

---

(۱) الاحزاب آية ۳۳ .

(۲) قَوْلُهُ تَعَالَى: {وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى} قَالَ مُجَاهِدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ : كَانَتِ الْمَرْأَةُ تَخْرُجُ تَمْشِيْ بَيْنَ يَدَيِ الرِّجَالِ. فَذٰلِكَ تَبَرُّجُ الْجَاهِلِيَّةِ وَقَالَ قَتَادَةُ رَحِمَهُ اللّٰهُ : {وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى} يَقُوْلُ : إِذَا خَرَجْتُنَّ مِنْ بُيُوْتِكُنَّ وَكَانَتْ لَهُنَّ مِشْيَةٌ وَتَكَسُّرٌ وَتَغَنُّجٌ فَنَهَى اللهُ عَنْ ذٰلِكَ.

وَقَالَ مُقَاتِلُ بْنُ حَيَّانَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: {وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى} وَالتَّبَرُّجُ : أَنَّهَا تُلْقِي الْخِمَارَ عَلَى رَأْسِهَا، وَلَا تَشُدُّهُ فَيُوَارِيْ قَلَائِدَهَا وَقُرْطَهَا وَعُنُقَهَا، وَيَبْدُوْ ذٰلِكَ كُلُّهُ مِنْهَا، وَذٰلِكَ التَّبَرُّجُ، ثُمَّ عُمَّتْ نِسَاءُ الْمُؤْمِنِيْنَ فِي التَّبَرُّجِ. تفسير ابن كثير ج ۶ ص ۴۱۰ سورة الاحزاب في تفسير آية ۳۳ .

(وَلَا تَبَرَّجْنَ) ولا تتبخترن في مشيكن (تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى) تبرجًا مثل تبرج النساء في أيام الجاهلية القديمة . تفسير البيضاوي ( أنوار التنزيل وأسرار التأويل ) ج ۴ ص ۲۳۱ سورة الاحزاب آية ۳۳ .

(۳) فتاوی محمودیہ ج ۲۸ ص ۷۳ پردہ کا ثبوت اور اس کا وجوب . آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۵۱ پردہ .

# د "تَبَرُّج" تعریف

په قرآن کریم او احادیثو کې د بې پَردګۍ نه تعبیرپه "تَبَرُّج" سره شوې دی.

د "تَبَرُّج" لغوي معنی داده چې: ښځه د پَردو سرو د وړاندې خپل مخ، زِینت او محاسِن ښکاره کړي.(۱)

او په اِصطلاح کې علماؤ د "تَبَرُّج" ډیر تعریفونه کړي دي، خو جامِع تعریف یې دادی چې: ښځه د پَردو سرو د وړاندې خپل زِینت او محاسِن ښکاره کوي او ناز و نَخرو سره ګرځي.(۲)

(۱) قال ابن منظور الافریقي رَحِمَهُ اللّٰهُ: وَالتَّبَرُّج: إِظْهَارُ الْمَرْأَةِ زِيْنَتَهَا وَمَحَاسِنَهَا لِلرِّجَالِ. وتَبَرَّجَتِ الْمَرْأَةُ: أَظْهَرَتْ وَجْهَهَا. وَ إِذَا أَبْدَتِ الْمَرْأَةُ مَحَاسِنَ جِيْدِهَا وَوَجْهِهَا قِيْلَ: تَبَرَّجَتْ .... وَقَالَ أَبُوْ إِسْحَاقَ فِيْ قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِيْنَةٍ﴾ اَلتَّبَرُّجُ: إِظْهَارُ الزِّيْنَةِ وَمَا يُسْتَدْعٰى بِهِ شَهْوَةُ الرَّجُلِ. وَقِيْلَ: إِنَّهُنَّ كُنَّ يَتَكَسَّرْنَ فِيْ مَشْيِهِنَّ وَيَتَبَخْتَرْنَ ..... وَفِي الْحَدِيْثِ: "كَانَ يَكْرَهُ عَشْرَ خِلَالٍ. مِنْهَا التَّبَرُّجُ بِالزِّيْنَةِ لِغَيْرِ مَحَلِّهَا". وَالتَّبَرُّجُ: إِظْهَارُ الزِّيْنَةِ لِلنَّاسِ الْأَجَانِبِ، وَهُوَ الْمَذْمُوْمُ. فَأَمَّا لِلزَّوْجِ فَلَا. وَهُوَ مَعْنٰى قَوْلِهِ لِغَيْرِ مَحَلِّهَا. لسان العرب لابن منظور الافریقي ج ۲ ص ۲۱۲ فصل الباء.

قال العلامة الفیومي رَحِمَهُ اللّٰهُ: تَبَرَّجَتِ الْمَرْأَةُ أَظْهَرَتْ زِيْنَتَهَا وَمَحَاسِنَهَا لِلْأَجَانِبِ. المصباح المنیر في غریب الشرح الکبیر ج ۱ ص ۴۲ مادة (ب ر ج).

وقال الامام ابن الأثیر رَحِمَهُ اللّٰهُ: اَلتَّبَرُّجُ: إِظْهَارُ الزِّيْنَةِ لِلنَّاسِ الْأَجَانِبِ وَهُوَ الْمَذْمُوْمُ. فَأَمَّا لِلزَّوْجِ فَلَا. النهایة في غریب الحدیث والأثر ج ۱ ص ۱۱۳ مادة (بَرَجَ).

(۲) {وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى} قِيْلَ: إِنَّ التَّبَرُّجَ فِيْ هٰذَا الْمَوْضِعِ "التَّبَخْتُرُ وَالتَّكَسُّرُ" .... وَقِيْلَ: إِنَّ التَّبَرُّجَ هُوَ إِظْهَارُ الزِّيْنَةِ، وَإِبْرَازُ الْمَرْأَةِ مَحَاسِنَهَا لِلرِّجَالِ. تفسیر الطبري ج ۱۹ ص ۹۷ سورة الاحزاب في تشریح آیة ۳۳.

وَقِيْلَ: اَلتَّبَرُّجُ: أَنْ تُبْدِيَ الْمَرْأَةُ مِنْ زِيْنَتِهَا وَمَحَاسِنِهَا مَا يَجِبُ عَلَيْهَا سَتْرُهُ مِمَّا تَسْتَدْعِيْ بِهِ شَهْوَةَ الرَّجُلِ. فتح القدیر للشوکاني ج ۴ ص ۳۲۰ سورة الاحزاب في تشریح آیة ۳۳.

وقیل: هو کل زینة أو تجمل تقصد المرأة بإظهاره أن تحلو في أعین الأجانب، حتی القناع الذي تستتر به المرأة إن انتخب من الألوان البارقة، والشکل الجذاب لکي تلذ به أعین الناظرین. ←←←←←←← ←←←←←←←←

# د بې پَردګۍ سزاګانې او نقصانات

کومې زَنانه چې پَرده نه کوي ، ښکاره مخ په بازارونو کې ګرځي او د سرو د ورانديې خپل زِينت ښکاره کوي نو په اسلام کې ددې سختې سزاګانې او نقصانات ذکر شوي ، خو زه درته يو څو غټې سزاګانې او نقصانات ذکر کوم :

## په بې پَردګۍ سره د الله او رسول د حُکم مخالفت راځي

په قرآن کريم کې الله تعالی زَنانه ؤ ته په واضحه الفاظو سره د پَردې حکم کړی . (۱)
او نبي عليه السلام هم په خپلو مبارکو احاديثو کې ددې اَهميت بيان کړی . (۲)

✡ اوس چې کومه زَنانه پَرده نه کوي نو دا د الله ﷻ او رسول ﷺ د حکم مخالفت کوي ، او څوک چې د الله او د هغه د رسول د حکم مخالفت کوي نو د داسې کس د پاره د جهنم سخته سزا ذکر شوي .

---

←←← فهو من مظاهر تبرج الجاهلية أيضا . عودة الحجاب ج ۳ ص ۱۳۳ .

التعريفُ الجامع أنْ يقالَ : اَلتبرّجُ : هو تَعَمُّدُ إظهار المرأة زينتها ومحاسنها ، و تبخترها ، وتكسرها للرجال الأجانب . اظهار الصواب في حكم الحجاب ص ۲۹۵ .

(۱) الله تعالى فرمايي : ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ ﴾ الاحزاب آية ۳۳ .

بل ځای فرمايي : ﴿ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ ذَٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ ﴾ . الاحزاب آية ۵۳ .

بل ځای فرمايي : ﴿ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ . الاحزاب آية ۵۹ .

(۲) قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ . سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ وقال الترمذي : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ .

و قال عليه السلام : لَيْسَ لِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ فِي الْخُرُوجِ إِلَّا مُضْطَرَّةً .... رواه الطبراني في الكبير ، مجمع الزوائد ومنبع الفوائد بَابُ الْخُرُوجِ إِلَى الْعِيدِ رقم الحديث ۳۲۲۱ ، كنز العمال رقم الحديث ۴۵۰۶۲ ، معارف القرآن سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳

☆ ربّ کریم فرمايي : ﴿ وَمَنْ يَّعْصِ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاِنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ﴾ . (۱)

ترجمه : او څوک چې د الله او دده د رسول نافرماني اوکړي نو بیشکه دده د پاره اُور د جهنم دی ، دوی به په هغې کې همیشه وي تل تر تله .

☆ داسې کس ښکاره ګمراه دی ، الله تعالی فرمايي :

﴿ وَمَنْ يَّعْصِ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا ﴾ . (۲)

ترجمه : او څوک چې د الله او د هغه د رسول نا فرماني اوکړي نو بیشکه هغه ګمراه شو په ښکاره ګمراهۍ سره .

☆ د الله او رسول د حکم مخالفت کوونکي په مصیبت او دَرد ناک عذاب کې مبتلاء کیږي ، په قرآن کریم کې ذکر دي :

﴿ فَلْيَحْذَرِ الَّذِيْنَ يُخَالِفُوْنَ عَنْ اَمْرِهٖٓ اَنْ تُصِيْبَهُمْ فِتْنَةٌ اَوْ يُصِيْبَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴾ . (۳)

ترجمه : پس څوک چې د الله د حکم ( یا د پیغمبر د حکم (۴) ) مخالفت کوي نو دوی له په کار دي چې دوی اُویریږي ددینه چې ( په دُنیا کې ) دوی ته مصیبت اورسیږي ، یا ( په آخرت کې ) ورته درد ناک عذاب اورسیږي .

☆ د الله او د رسول د نافرمانۍ په وجه انسان د جنت نه محرومه کیږي .

د بخاري شریف حدیث دی رسولُ الله صلی الله علیه وسلم اوفرمایل :

كُلُّ أُمَّتِيْ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ أَبٰى .

زما هر یو اُمتي به جنت ته داخلیږي مګر ( هغه کس به جنت ته نه داخلیږي ) چا چې ( زما د حکم منلو نه ) اِنکار اوکړو . (۵)

(۱) الجن آیة ۲۳ .

(۲) الاحزاب آیة ۳۶ .

(۳) النور آیة ۶۳ .

(۴) ( يُخَالِفُوْنَ عَنْ أَمْرِهٖ ) : في هاءِ الكناية قولان : احدهما : انها ترجعُ الى الله عز وجل . قاله مجاهد . والثاني : الى رسول الله صلى الله عليه وسلم . قاله قتادة . تفسير زاد المسير ج۳ ص ۳۱۰ سورة النور آية ۶۳ .

(۵) أَبٰى : إمتنع عن قبول الدّعوة او عن إمتثال الأمر . تعليق مصطفى البغا على البخاري .

(د نبي عليه السلام نه ) پوښتنه اوشوه : هغه کوم کس دی چې هغه انکار کوي ؟ پيغمبر عليه السلام اوفرمايل :

مَنْ أَطَاعَنِيْ دَخَلَ الْجَنَّةَ . وَمَنْ عَصَانِيْ فَقَدْ أَبٰى .

چا چې زما تابعداري اوکړه هغه به جنت ته داخل شي ، او چا چې زما نافرماني اوکړه نو هغه اِنکار اوکړو . ( يعنی چا چې زما اِطاعت او نه کړو نو هغه سرکشي او اِنکار کوونکې دی ، د جنت مستحق نه دی ، بلکه دا به د دې خپل اِنکار او نافرمانۍ په وجه د الله ﷻ د عذاب او جهنم مستحق اوګرځي ) . (۱)

✡ همدارنګې بې پَردګي د اِيمان په کمزورۍ هم دلالت کوي ، ځکه د اسلام تاريخ په دې باندې ګواه دی چې تر ډيره اوږده زمانه پورې ښځې په پَرده کې وی خو چې کله بعضې کمزورې اِيمان واله مسلمانان د غَربي ډيموکراسۍ نه متأثره شو نو هغوی د زَنانهٔ بې پَردګي شروع کړه .

## د بې پَردګۍ نه نبي عليه السلام منع کړی

۱ . حضرت معاوية ؓ په حِمص کې خلقو ته خطبه وويله ، په هغې کې يې دا هم اوفرمايل : رسول الله صلی الله عليه وسلم اُووه (۷) شيان حرام کړي دي ، زه تاسو ته دا دَر رسوم او ددينه مو منع کوم .... يو په هغې کې " تَبَرُّج " يعنی بې پَردګي هم ده . (۲)

---

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ؓ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . قَالَ : « كُلُّ أُمَّتِيْ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ أَبٰى » . قَالُوْا : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! وَمَنْ يَأْبٰى ؟ قَالَ : « مَنْ أَطَاعَنِيْ دَخَلَ الْجَنَّةَ . وَمَنْ عَصَانِيْ فَقَدْ أَبٰى » صحيح البخاري كِتَابُ الاِعْتِصَامِ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ بَابُ الاِقْتِدَاءِ بِسُنَنِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۷۲۸۰ ، المستدرک علی الصحيحين للحاکم رقم الحديث ۱۸۲ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۸۷۲۸

(۲) عَنْ أَبِي حَرِيْزٍ . مَوْلٰى مُعَاوِيَةَ . قَالَ : خَطَبَ النَّاسَ مُعَاوِيَةُ ؓ بِحِمْصَ . فَذَكَرَ فِيْ خُطْبَتِهِ : أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرَّمَ سَبْعَةَ أَشْيَاءَ . وَإِنِّيْ أُبْلِغُكُمْ ذٰلِكَ وَأَنْهَاكُمْ عَنْهُ . مِنْهُنَّ : النَّوْحُ . وَالشِّعْرُ . وَالتَّصَاوِيْرُ . وَالتَّبَرُّجُ . وَجُلُوْدُ السِّبَاعِ . وَالذَّهَبُ . وَالْحَرِيْرُ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۶۹۳۵ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۶۳۶۸ ، المعجم الکبير للطبرانی رقم الحديث ۸۷۶ .

۲ . حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به لس (۱۰) شيان بَدګڼل ..... وَالتَّبَرُّجَ بِالزِّيْنَةِ لِغَيْرِ مَحَلِّهَا ... ( يو په هغې کې ) د زَنانهؤ د پاره بې ځايه (د پرَدو سرو د وراندې خپل) زِينت ښکاره کول دي . (۱)

( البته زَنانه د پاره د خپل خاوند د وړاندې زِينت ښکاره کول جائز دی ) . (۲)

## بې پَردګي ښکاره ګناه او ښکاره بَغاوت دی

کومه ښځه چې بې پَردګي کوي نو دا د دِين نه ښکاره بغاوت او ښکاره ګناه ده ، او څوک چې ښکاره ګناه کوي نو هغه ته د معافۍ دَروازه هم بنده وي .

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

كُلُّ أُمَّتِيْ مُعَافًى إِلَّا الْمُجَاهِرِيْنَ .... (۳)

زما هر يو اُمتي قابل د معافۍ او بخنې دی (چې الله جل جلاله يې په خپل فضل او رحم سره ټول ګناهونه معاف کړي ) مګر څوک چې ښکاره ګناهونه کوونکي وي هغوی ته الله جل جلاله معافي نه کوي (تر څو پورې يې چې د دې ښکاره ګناه نه توبه نه وي ويستې ، او د دينه منع شوې نه وي ) .

مُجاهِرين هغه خلقو ته وايي چې بَر سَرِعام ښکاره ګناه کوي ، نه د الله جل جلاله نه شرميږي او

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَكْرَهُ عَشْرَ خِصَالٍ ..... وَالتَّبَرُّجَ بِالزِّيْنَةِ لِغَيْرِ مَحَلِّهَا .... سنن النسائي كِتَابُ الزِّيْنَةِ الْخِضَابُ بِالصُّفْرَةِ رقم الحديث ۵۰۸۸ ، شرح السنة للبغوي ج ۹ ص ۱۰۴ باب العزل والاتيان في غير المأتي ، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۴۱۸ وقال الحاكم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . ووافقه الذهبي .

(۲) وَالتَّبَرُّجَ بِالزِّيْنَةِ أَيْ إِظْهَارُهَا لِلنَّاسِ الأَجَانِبِ وَهُوَ الْمَذْمُوْمُ . فَأَمَّا لِلزَّوْجِ فَلَا . وَهُوَ مَعْنَى قَوْلِهِ لِغَيْرِ مَحَلِّهَا . حاشية السندي على سنن النسائي ج ۸ ص ۱۴۱ كتاب الزينة في تشريح حديث ۵۰۸۸ .

(۳) صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ سَتْرِ الْمُؤْمِنِ عَلَى نَفْسِهِ رقم الحديث ۶۰۶۰ ، صحيح مسلم كِتَابُ الزُّهْدِ وَالرَّقَائِقِ بَابُ النَّهْيِ عَنْ هَتْكِ الإِنْسَانِ سِتْرَ نَفْسِهِ رقم الحديث ۵۲ (۲۹۹۰) .

(مُعَافًى) : اى يَعْفُوا اللهُ عَنْ زَلَّتِهِ بِفَضْلِهِ وَرَحْمَتِهِ . تعليق مصطفى البغا على صحيح البخاري .

نه د بندګانو نه. (۱)

چې کله دا ثابته شوه چې بې پَردګي ښکاره ګناه او ښکاره بغاوت دی نو اوس د الله ﷻ په نزد به ددې سزا هم سخته وي.

د دُنیا د حکومتونو قانون هم دادی چې څوک ښکاره بغاوت کوي نو هغه نه معاف کوي بلکې وژني يې.

## د بې پَردګۍ په وجه د جنت نه محروم کيدل. او د جهنم مستحق کيدل

کومه زَنانه چې نرۍ کپړې واغوندي، ښکاره مخ بهر ګرځي او نور خلق ځان طرف ته رامائل کوي نو داسې ښځه به د جنت نه محرومه وي او د جهنم مستحقه به وي.

د مسلم شریف حدیث دی، رسولُ الله ﷺ فرمايي:

صِنْفَانِ مِنْ أَهْلِ النَّارِ لَمْ أَرَهُمَا. قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ كَأَذْنَابِ الْبَقَرِ يَضْرِبُونَ بِهَا النَّاسَ، وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ مُمِيلَاتٌ مَائِلَاتٌ. رُءُوسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ. لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ، وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا. وَإِنَّ رِيحَهَا لَيُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا. (۲)

د جهنّميانو دوه ډلې دي چې تر اوسه ما ندي ليدلي (بلکه په آئنده زمانه کې به راپيدا کيږي): يوه ډله هغه ده چې د هغوی په لاسونو کې به د غوا د لکۍ په شان کوړې وي چې په هغې سره به خلق په ناحقه وهي. دويمه ډله به د هغه ښځو وي چې په ظاهره به يې کپړې اغوستې وي خو په حقيقت کې به بَرَبنډې وي (يعنی داسې نرۍ کپړې به يې اغوستې وي

---

(۱) (اَلْمُجَاهِرِيْنَ): المعلنون بالمعاصي والفسوق. تعليق مصطفى البغا على صحيح البخاري.

وَالْمُجَاهِرُوْنَ هُمُ الَّذِيْنَ جَاهَرُوْا بِمَعَاصِيهِمْ وَأَظْهَرُوْهَا. وَكَشَفُوْا مَا سَتَرَ اللهُ عَلَيْهِمْ مِنْهَا فَيَتَحَدَّثُوْنَ. مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۳۰۳۴ في تشريح حديث ۴۸۳۱.

(۲) صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّينَةِ بَابُ النِّسَاءِ الْكَاسِيَاتِ الْعَارِيَاتِ الْمَائِلَاتِ الْمُمِيلَاتِ رقم الحديث ۱۲۵ (۲۱۲۸)، مشكوة المصابيح كتاب القصاص بَاب مَا يضمن من الجِنَايَات الفَصْل الأول رقم الحديث ۳۵۲۴(۱۵)، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۸۶۶۵، و رقم الحديث ۹۶۸۰، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۷۴۶۱، المعجم الاوسط رقم الحديث ۱۸۱۱، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۳۲۶۰، شعب الايمان رقم الحديث ۴۹۷۲، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۲۵۷۸، كنز العمال رقم الحديث ۴۵۰۱۳.

چې لاندې بدن به ورته ښکاري ) ، هغوی به سري ځان طرف ته مائله کوي او پخپله به هم سرو طرف ته مائله وي ، سرونه به يې د بختي اوښ د خوږيد ونکي قُب په شان خوږي ، دوی به جنت ته داخلې نشي ، او د جنت بوئ به هم او نه مومي حالانکې د جنت بوئ دومره دومره ( يعنی سل ۱۰۰ کاله ) فاصله باندې لرې محسوسیږي .

ددې حديث نه معلومه شوه چې کومې ښځې بې پردګي کوي نو دوی به د جنت نه محرومه وي ، او څوک چې د جنت نه محروم شي نو خامخا به د جهنم مستحق کرځي .

( ددې حديث پوره تشريح روستو راروانه ده ) . ابوالشمس عفی عنه

## کومې ښځې چې پرده نه کوي نو په هغوی لعنت ويل شوی

کومې ښځې چې نری کپړې واغوندي او بې پردې کرځي نو په دوی باندې لعنت ويل شوی ، او د داسې ښځو په باره کې راځي : اِلْعَنُوْهُنَّ ؛ فَإِنَّهُنَّ مَلْعُوْنَاتٌ .

تاسو په دوی باندې لعنت وايئ ؛ ځکه دا لعنتي دي . (۱)

بل دا چې کله ښځې د سړو سره په بازار کې څنګ په څنګ بې پردې کرځي نو دا د سړو سره ځان مشابه کوي ، او کومه ښځه چې د سړو سره ځان مُشابه کوي نو په هغې باندې هم رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لعنت ويلی .

د بخاري شريف حديث دی : حضرت عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي :

لَعَنَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُتَشَبِّهِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ ، وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ . (۲)

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنَ عَمْرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ : سَيَكُوْنُ فِيْ آخِرِ أُمَّتِيْ نِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ ، عَلٰى رُءُوْسِهِنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ ، اِلْعَنُوْهُنَّ ؛ فَإِنَّهُنَّ مَلْعُوْنَاتٌ .... المعجم الاوسط للطبراني رقم الحديث ۹۳۳۱ .

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ : اَلْمُتَشَبِّهُوْنَ بِالنِّسَاءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتُ بِالرِّجَالِ رقم الحديث ۵۸۸۵ ، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۱۹۰۳ باب في المخنثين ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۶۴۹۳ ، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۲۸۰۱ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۱۶۴ ، و رقم الحديث ۱۱۸۲۳ ، مشكاة المصابيح باب الترجل الفصل الاول رقم الحديث ۴۴۲۹(۱۱) .

رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه سړو باندې لعنت ویلی چې د ښځو سره مشابهت کوي، او په هغه ښځو یې هم لعنت ویلی چې د سړو سره مشابهت کوي.

د ابوداؤد شریف حدیث دی، حضرت عائشة رضي الله عنها فرمايي:

لَعَنَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَةَ مِنَ النِّسَاءِ. (۱)

رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه ښځه لعنت لیږلی چې د سړو سره مشابهت کوي.

## بې پَردګي ګناه کبیره ده

علماؤ بې پَردګي په ګناهِ کبیره کې شمار کړی، په احادیثو مبارکه ؤ کې هم دا د ګناهِ کبیره ؤ سره یو ځای ذکر شوی:

حضرت اُمیمَة بنت رُقَیقة رضي الله عنها نبي علیه السلام ته راغله او د اسلام بیعت یې کولو، نبي ﷺ (ورته څه کبیره ګناهونه اُوخودل چې ددینه به ځان ساتی، په هغې کې یې) ورته دا هم اوفرمایل: ...... وَلَا تَبَرَّجِيْ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى. د رومبي جاهلیت (د زمانې) په شان ښائست به نه ښکاره کوی (یعنی بې پَردې به نه ګرځی). (۲)

---

(۱) عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ. قَالَ: قِيْلَ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: إِنَّ امْرَأَةً تَلْبَسُ النَّعْلَ. فَقَالَتْ: «لَعَنَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَةَ مِنَ النِّسَاءِ». سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي لِبَاسِ النِّسَاءِ رقم ۴۰۹۹ قال الالباني: صحيح. شعب الايمان رقم ۷۴۱۸، مشكوة المصابيح كتاب اللباس بَابُ التَّرَجُّلِ اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم ۴۴۷۰(۵۲).

وفي رواية قَالَ: رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سَيَكُوْنُ فِيْ آخِرِ أُمَّتِيْ رِجَالٌ يَرْكَبُوْنَ عَلَى سُرُوْجٍ. كَأَشْبَاهِ الرِّحَالِ. يَنْزِلُوْنَ عَلَى أَبْوَابِ الْمَسْجِدِ. نِسَاؤُهُمْ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ. عَلَى رُءُوْسِهِمْ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْعِجَافِ. اِلْعَنُوْهُنَّ. فَإِنَّهُنَّ مَلْعُوْنَاتٌ .... مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۷۰۸۳، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۷۵۳، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۸۳۴۶ وقال الحاكم: هذا حديث صحيح على شرط الشيخين ولم يخرجاه، مجمع الزوائد رقم الحديث ۸۶۱۲، كنز العمال رقم الحديث ۴۵۱۰۶.

(۲) جَاءَتْ أُمَيْمَةُ بِنْتُ رُقَيْقَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُبَايِعُهُ عَلَى الْإِسْلَامِ. فَقَالَ: «أُبَايِعُكِ عَلَى أَنْ لَا تُشْرِكِيْ بِاللهِ شَيْئًا. وَلَا تَسْرِقِيْ وَلَا تَزْنِيْ. وَلَا تَقْتُلِيْ وَلَدَكِ. وَلَا تَأْتِيْ بِبُهْتَانٍ تَفْتَرِيْنَهُ بَيْنَ يَدَيْكِ وَرِجْلَيْكِ. وَلَا تَنُوْحِيْ. وَلَا تَبَرَّجِيْ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى». مسند احمد مخرجا رقم ۶۸۵۰، مجمع الزوائد كِتَابُ الْمَغَازِيْ وَالسِّيَرِ بَابُ الْبَيْعَةِ عَلَى الْإِسْلَامِ الَّتِيْ تُسَمّٰى بَيْعَةَ النِّسَاءِ رقم ۹۸۵۸، وقال الهيثمي: رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ. وَرِجَالُهُ ثِقَاتٌ.

## بې پَردګي رَسوائي ده

په پَرده نه کولو کې د زَنانه د پاره د دُنيا او آخرت دواړو رَسوائي ده.

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

أَيُّمَا امْرَأَةٍ وَضَعَتْ ثِيَابَهَا فِي غَيْرِ بَيْتِ زَوْجِهَا فَقَدْ هَتَكَتْ سِتْرَ مَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللهِ. (۱)

کومې ښځې چې د خپل خاوند د کور نه علاوه په بل ځای کې کپړې کېښودې (يعنې د پرَدو سړو د وړاندې يې خپل بدن ښکاره کړو، او د دوی نه يې پټ نکړو) نو دې هغه پَرده اُوشلوله کومه چې ددې او د الله ﷻ په مينځ کې وه (نو الله ﷻ به دا هم رَسواء کړي).

## د بې پَردګۍ په وجه د زِنا دروازه کلاويږي. او وَبائي اَمراض زياتيږي

بې پَردګي او د غير مَحرَمه سړو او ښځو اِختلاط سره د زِنا دَروازه کلاويږي؛ ځکه چې کله زَنانه کلاوُ مخ د پرَدو سړو سره يو ځای ناستې وي، يو بل ته ګوري، ګپ شَپ لږوي، لاس سره ملاوَوي، يا په کې خَلوت (ځانله کيدل) هم راشي نو خامخا انسان د شيطاني وَسوسو په وجه په زِنا کې مبتلاء کيږي. (۲)

او کله چې په معاشره کې زِنا عامه شي نو بيا داسې وَبائي او نور لاَ عِلاجه بيمارياني پيدا کيږي چې د هغې د علاج نه ډاکټران هم عاجز وي، او ددې سبب په احاديثو کې همدا فحاشي او بې حَيائي خودل شوی. (۳)

---

(۱) سنن ابن ماجة كِتَابُ الْأَدَبِ بَابُ دُخُولِ الْحَمَّامِ رقم الحديث ۳۷۵۰، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۷۸۰، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۵۴۰۷، ورقم الحديث ۲۵٦۲۷، مصنف عبدالرزاق الصنعاني رقم ۱۱۳۱، المعجم الاوسط رقم ۴۷۴۳، المعجم الكبير للطبراني رقم ٦۴۵، شعب الايمان رقم الحديث ۷۳۸۱.

(۲) قال العلماء: «اَلتبرّج والسفور داعية الفجور». وقالوا: «ما اجتمع تبرج النّساء واختلاطهن بالرّجال إلا كان ثالثهما الزنا»..... فالاختلاط من أكبر انتشار الرذيلة والفاحشة في المجتمع. سواء بالاختلاط بهن في الأماكن العامة. أو بالخلوة بهن. دراسة نقدية في المرويات الواردة في شخصية عمر ۲/ ۹۲۸. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ٦۴۷.

(۳) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ... لَمْ تَظْهَرِ الْفَاحِشَةُ فِيْ قَوْمٍ قَطُّ إِلَّا ظَهَرَ فِيْهِمُ الطَّاعُوْنُ وَالْأَوْجَاعُ الَّتِيْ لَمْ تَكُنْ فِيْ أَسْلَافِهِمْ .... مجمع الزوائد ومنبع الفوائد كِتَابُ الْجِهَادِ بَابُ مَا نُهِيَ عَنْ قَتْلِهِ مِنَ النِّسَاءِ وَغَيْرِ ذَلِكَ ←←←

او په داسې خلقو د الله ﷻ عذاب رانازليږي.

رسول الله ﷺ فرمايي: إِذَا ظَهَرَ الزِّنَا وَالرِّبَا فِي قَرْيَةٍ فَقَدْ أَحَلُّوا بِأَنْفُسِهِمْ عَذَابَ اللهِ. (۱)

کله چې په يو کلي کې زنا او سُود ښکاره شي نو دې خلقو په خپل ځان باندې د الله ﷻ عذاب نازل کړو.

## بې پردګۍ سره په وَدونو کې تاخير راځي، يا مکمل پاتې کيږي

د بې پردګۍ او اختلاط په وجه په وَدونو کې تاخير راځي يا واده مکمل پاتې کيږي، ځکه چې کله د بې پردګۍ په وجه زنا عامه شي نو هرې د ناجائزو لارو نه خپل خواهشات پوره کوي نو واده ته ضرورت نه محسوسوي. همدارنګې زناکارې ښځې هم واده ته رغبت نه لري ځکه هغوی ته پته وي چې که واده اوکړم نو بيا راباندې د خاوند کنټرول راځي او دا کارونه رانه پاتې کيږي نو هغوی هم ډير روستو واده کوي يا ورنه مکمل پاتې شي. او دا يقيني چې د معاشرې د پاره خطرناکه خبره ده. (۲)

---

←←← رقم الحديث ۹٦۱۵ . وقال الهيثمي: رَوَاهُ الْبَزَّارُ وَرِجَالُهُ ثِقَاتٌ. صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۷٦۴(۱۱) الترهيب من منع الزكوة وماجاء في زكوة الحلي، و رقم الحديث ۲۱۸۷(٦)، شعب الايمان رقم الحديث ۳۰۴۳، كنزالعمال رقم الحديث ۴۴۰۱۲.

(۱) المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۲۲٦۱ كِتَابُ الْبُيُوعِ. وقال الحاكم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. ووافقه الذهبي. الترغيب والترهيب رقم ۲۸۵٦ الترهيب من الرباء، كنزالعمال رقم الحديث ۱۳۰۰.

وفي رواية: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا ظَهَرَ فِي قَوْمٍ الزِّنَا وَالرِّبَا إِلَّا أَحَلُّوا بِأَنْفُسِهِمْ عِقَابَ اللهِ. رَوَاهُ أَبُو يَعْلَى. وَإِسْنَادُهُ جَيِّدٌ. مجمع الزوائد ومنبع الفوائد رقم الحديث ٦۵۸۱ كِتَابُ الْبُيُوعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرِّبَا

(۲) اختلاط النساء بالرجال سبب تأخير الزواج أوتركه، لأنّ المحتاجين إلى النساء يجدون بغيتهم في بعض المختلطات لا يبقى عندهم الرغبة في النكاح الشرعي، والمصابرة والمجاهدة من أجل الوصول إليه. بل ينشئ عنه كثير. خصوصًا إذا كان الزواج يكلفهم مبالغ كبيرة، وهم فقراء. والمرأة التي تجد بغيتها في الرجال يزيّن لها الشيطان أنّها لا تتعجل بالزواج، لأنّها إن عجلت به تحمّلت مسؤولية الزوجية وبعدها الأمومة. وحيل بينها وبين عشاقها والأصدقاء والزملاء، ولهذا صار شعار بعض المختلطات المراهقات الزواج بعد انتهاء الدراسة، أو بعد الثامنة عشرة، أو بعد إحراز الوظيفة. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ٦۳۹.

## بې پرد ګۍ سره ښځه ذلیله کیږي

ښځې ته اسلام ډیر لوی مقام ورکړی ، د قیمتي ملغلرې په شان یې محفوظه ساتلې ، د کور شهزادګۍ یې جوړه کړې ، خو د اسلام دښمنانو ښځه بې پردې کړه : بازارونو ته یې راوویستله ددې د پاره چې دیته په کتلو ، ددې سره په خبرو کولو ، او د دینه خپل شهوت پوره کولو سره خوند واخلي .

په یورپي ملکونو کې د ښځو نه د یو څو روپو په عوض کې هر سړی خپل خواهش په آسانه پوره کولې شي ، هلته ښځه دومره ذلیله شوې چې اوس په هوټلو ، حمامونو ، لارو او کوڅو کې د پړډو سره خدمت کوي ، په دفترونو او کارخانو کې د سړو د پاره د لوبو سامان ګرځیدلې ، دا ځکه چې کله دوی بې پردګي شروع کړه نو دومره ذلیله شوې .(۱)

## د ښځو بې پردګي لویه فتنه ده

ښځه چې ترڅو پورې په شرعي حُدودو کې دننه وي نو دا د خېر د پاره بُنیاد دی خو چې کله د شرعي حُدودو نه اوځي او بې پردې شي نو دا بیا د شرک نه پس لویه فتنه ده ؛ ځکه ددې په وجه بیا په ټوله معاشره کې فساد او بې حیائي خورېږي .

---

(۱) المرأةُ المختلطة بالرجال متعةٌ وسلعة ، لأنّ أعداءَ الإسلام دعوا المرأةَ في بلادهم إلى الاختلاط والسفور ليسهل عليهم التمتع بها كما يشاؤون ، ومتى شاؤوا . تمتعًا بالنظر إليها ، والكلام معها ، واللّمس لها ، والخلوة بها ، والعشق لها ، وبعد ذلك ممارسة الفاحشة معها . وهذه الممارسة هي التمتع الكامل بها .

الاختلاطُ يجعل المرأة لعبة بيد الرجال ، ولهذا قال محمد رشيد العويد: « إنّ المرأةَ فقدتْ كلّ قيمتها اليومَ في أوروبا . وبلغتْ من الذّل والشقاء حدًا لم تبلغه المرأة في أيّ مكان . فقد أصبحتْ ألعوبة تتدحرج من يد إلى يد ، ويستبدل بها غيرها . إنها تشاهد في كل مكان خادمًا في المطاعم والفنادق . وحمالة في الأسواق والطرقات . وسائقة عربات وعجلات . إنّها توجد في جميع المناسبات متاعًا رخيصًا متوفرًا في كلّ مكان . وقد نزلتْ عن مكانتها العالية التي منحها الله تعالى حتى تهلهل لباسها . وصدئ قلبها . وأصبح شعارها السآمة والكآبة والقلق والحيرة دون أنْ تفكر في غاية حياتها . وعلوّ مكانتها . ومصيرها الذي شرع الله ! » . رسالة إلى حواء ص ۸۳ . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۶۵۰ ، ۶۵۱ .

۱ . د بخاري شریف او مسلم شریف حدیث دی، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي :

مَا تَرَكْتُ بَعْدِي فِتْنَةً أَضَرَّ عَلَى الرِّجَالِ مِنَ النِّسَاءِ . (۱)

ما د خپل وفات نه پس د سړو د پاره د ښځو نه زیاته ضررناکه فِتنه بله نده پریخې .

(یعنی زما د وفات نه پس د سړو د پاره زیاته ضرري فِتنه ښځې دي) .

۲ . د بني اِسرائیلو اوله فِتنه د ښځو نه شروع شوې وه .

د مسلم شریف حدیث دی، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي :

إِنَّ الدُّنْيَا حُلْوَةٌ خَضِرَةٌ ، وَإِنَّ اللهَ مُسْتَخْلِفُكُمْ فِيهَا فَيَنْظُرُ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ . فَاتَّقُوا الدُّنْيَا وَاتَّقُوا النِّسَاءَ ؛ فَإِنَّ أَوَّلَ فِتْنَةِ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ كَانَتْ فِي النِّسَاءِ . (۲)

بیشکه دُنیا (په ظاهره) خوږه او تازه ده، او الله تعالی به تاسو په دې کې خلیفه ګان (حاکمان) جوړوي، بیا به هغه ګوري چې تاسو څنګه عمل کوئ؟ پس تاسو د دُنیا نه ځان بچ کړئ، او د ښځو نه ځان بچ کړئ ؛ ځکه په بني اسرائیلو کې اوله فِتنه د ښځو نه شروع شوې وه .

**تشریح** : په دې حدیث کې نبي علیه السلام د دوه شیانو نه د بچ کیدو حکم اوکړو :

اول دا چې د دُنیا نه ځان بچ کړئ . یعنی ددې په جاه و مال باندې مه دهوکه کیږئ ځکه ددې دا هر څه فناء کیدونکي دي ، ددې د حلالو څیزونو به د انسان سره حساب کولې شي او د حرامو به عذاب وي ، نو د هغه دُنیا نه ځان بچ کړئ چې د هغې په وجه انسان د الله جَلَّ جَلَالُهُ نه غافله کیږي .

(۱) صحیح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ مَا يُتَّقَى مِنْ شُؤْمِ الْمَرْأَةِ رقم الحدیث ۵۰۹۶ ، صحیح مسلم كِتَابُ الرِّقَاقِ بَابُ أَكْثَرُ أَهْلِ الْجَنَّةِ الْفُقَرَاءُ وَأَكْثَرُ أَهْلِ النَّارِ النِّسَاءُ وَبَيَانِ الْفِتْنَةِ بِالنِّسَاءِ رقم الحدیث ۹۸(۲۷۴۱) ، سنن الترمذي باب ماجاء في تحذیر فتنة النساء رقم الحدیث ۲۷۸۰ ، السنن الکبری للنسائي رقم الحدیث ۹۲۲۵ .

(۲) صحیح مسلم كِتَابُ الرِّقَاقِ بَابُ أَكْثَرُ أَهْلِ الْجَنَّةِ الْفُقَرَاءُ وَأَكْثَرُ أَهْلِ النَّارِ النِّسَاءُ وَبَيَانِ الْفِتْنَةِ بِالنِّسَاءِ رقم الحدیث ۹۹(۲۷۴۲) ، مسند احمد مخرجا رقم الحدیث ۱۱۱۶۹ ، السنن الکبری للنسائي رقم الحدیث ۹۲۲۴ ، صحیح ابن خزیمة رقم الحدیث ۳۲۲۱ ، شعب الایمان رقم الحدیث ۵۰۲۹ ، مشکاة المصابیح کتاب النکاح الفصل الاول رقم الحدیث ۳۰۸۶(۷) .

دویم دا چې د ښځو نه ځان بچ کړئ. یعنې ددې په وجه ځان په ناجائزو کارونو کې مه مبتلاء کوئ، او د دوی په ځله باندې حرامو طرف ته مه مائله کېږئ؛ ځکه دوی ناقِصاتُ العقل دي. (۱)

حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: ددې حديث نه معلومه شوه چې د ښځې فِتنه د نورو فتنو نه ډيره سخته ده، او دا د قرآن کريم ددې آيت نه هم معلوميږي، الله تعالى فرمايي:

﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ .....﴾. (۲)

ترجمه: ښائسته کړې شوې دی خلقو ته محبت د نفسي خواهشاتو، (هغه نفسي خواهشات دادي:) لکه ښځې ....

په دې آيت کې الله تعالى ښځو ته حُبُّ الشَّهَوَات ويل، او بيا يې په دې ټولو کې اول د ښځو تذکره اوکړه، په دې کې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې ښځه په دې کې اصل ده. (۳)

**په بني اسرائيلو کې اوله فِتنه**: په مذکوره حديث کې دا هم ذکر شو چې " په بني اسرائيلو کې اوله فِتنه د ښځو نه شروع شوې وه " هغه دا چې يو کس خپل تره يا د تره ځوي ددې د پاره وژلې وُ چې د هغه د لور سره نکاح اوکړي. (۴)

(۱) (فَاتَّقُوا الدُّنْيَا) أَيْ: اِحْذَرُوا مِنَ الْاِغْتِرَارِ بِمَا فِيهَا مِنَ الْجَاهِ وَالْمَالِ، فَإِنَّهَا فِي وَشْكِ الزَّوَالِ، وَاقْنَعُوا فِيهَا بِمَا يُعِينُكُمْ عَلَى حُسْنِ الْمَآلِ. فَإِنَّهُ لِحَلَالِهَا حِسَابٌ وَلِحَرَامِهَا عَذَابٌ (وَاتَّقُوا النِّسَاءَ) أَيْ: اِحْذَرُوهُنَّ بِأَنْ تَمِيلُوا إِلَى الْمَنْهِيَّاتِ بِسَبَبِهِنَّ، وَتَقَعُوا فِي فِتْنَةِ الدِّمِ لِأَجْلِ الْاِفْتِتَانِ بِهِنَّ (فَإِنَّ أَوَّلَ فِتْنَةِ بَنِي إِسْرَائِيلَ كَانَتْ فِي النِّسَاءِ) أَيْ: فِي شَأْنِهِنَّ وَأَمْرِهِنَّ. وَقَالَ الطِّيبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: اِحْذَرُوا أَنْ تَمِيلُوا إِلَى النِّسَاءِ بِالْحَرَامِ وَتَقْبَلُوا أَقْوَالَهُنَّ، فَإِنَّهُنَّ نَاقِصَاتُ عَقْلٍ لَا خَيْرَ فِي كَلَامِهِنَّ غَالِبًا. مرقاة المفاتيح كتاب النكاح الفصل الاول ج ۵ ص ۲۰۴۴ في تشريح حديث ۳۰۸۶.

(۲) آل عمران آية ۱۴.

(۳) وَفِي الْحَدِيثِ أَنَّ الْفِتْنَةَ بِالنِّسَاءِ أَشَدُّ مِنَ الْفِتْنَةِ بِغَيْرِهِنَّ. وَيَشْهَدُ لَهُ قَوْلُهُ تَعَالَى ﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ﴾ فَجَعَلَهُنَّ مِنْ حُبِّ الشَّهَوَاتِ وَبَدَأَ بِهِنَّ قَبْلَ بَقِيَّةِ الْأَنْوَاعِ إِشَارَةً إِلَى أَنَّهُنَّ الْأَصْلُ فِي ذٰلِكَ. فتح الباري لابن حجر ج۹ ص۱۳۸ في تشريح حديث ۵۰۹۶.

(۴) رُوِيَ أَنَّ رَجُلًا مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ طَلَبَ مِنْهُ ابْنُ أَخِيهِ أَوِ ابْنُ عَمِّهِ أَنْ يُزَوِّجَهُ ابْنَتَهُ فَأَبَى. فَقَتَلَهُ لِيَنْكِحَهَا. أَوْ لِيَنْكِحَ زَوْجَتَهُ. مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۴۵.

يا ددينه د بني اِسرائيلو هغې اُوږدې واقعې طرف ته اِشاره ده چې بلعم بن باعوراء د خپلې ګمراهۍ نه پس قوم ته يوه حِيله اُوخوده (هغه حيله دا وه):

" چې تاسو جينکۍ ښائسته کړئ او د حضرت موسٰی عليه السلام فوج ته يې وَراُوليږئ ځکه که په هغوی کې يو کس هم زِنا اوکړي نو الله ﷻ به وربانديې عذاب راولي "

بيا دوی همداسې اوکړل ، ځوانې ښائسته جينکۍ يې وراُوليږلې ، د حضرت موسٰی عليه السلام په لښکر کې يو کس په دې فِتنه کې مبتلاء شو ، زِنا يې اوکړه ، نو سمدستي په دې لښکر باندې د طاعون بيماري راغله ، ډير په کې مړه شو ، بيا چې کله د حضرت موسی عليه السلام د لښکر نورو خلقو دا سړې او ښځه اُووژل نو دا بيماري ختمه شوه . (۱)

( **نوټ** دا واقعه پوره تفصيل سره ددې " اصلاحي مدلّل تقريرونه " کتاب په ديارلسم جلد صفحه ۱۳۲ باندې ذکر ده . ابوالشمس عفي عنه )

## بې پَردګۍ سره د شيطان تابعداري راځي

کله چې ښځه بې پَردګي کوي نو په دې سره دا د شيطان تابعداري کوي ، او ښځه خو د شيطان د پاره مضبوط جال دی چې ددې په ذريعه په مسلمانانو کې بې حيائي او بې دِيني خورَوي . (۲)

ښځه چې کله د کور نه بهَر رااُووځي نو شيطان يې د سړو په نظرونو کې ښائسته کوي چې په دې سره دا ښځه پخپله هم ګمراه کيږي او نور خلق هم ګمراه کوي .

د ترمذي شريف حديث دی ، رسولُ الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ .

ښځه په پَرده کې د اُوسيدو څيز دی ، کله چې دا د پَردې نه بهَر اُووځي نو شيطان يې د سړو په نظر کې ښائسته ښکاره کوي . ( چې په دې سره نور خلق په دې ګمراه کوي او ښځه

---

(۱) تفسير البغوي ج۲ ص ۲۲۸ سورة الاعراف في تشريح آية ۱۷۵ ، تفسير القرطبي ج۷ ص ۳۱۹.

(۲) عَنْ مُعَاذٍ رضي الله عنه : اِتَّقُوا الدُّنْيَا وَاتَّقُوا النِّسَاءَ. فَإِنَّ إِبْلِيسَ طَلَّاعٌ رَصَّادٌ وَمَا هُوَ بِشَيْءٍ مِنْ فُخُوخِهِ بِأَوْثَقَ لِصَيْدِهِ فِي الْاِتْقِيَادِ مِنَ النِّسَاءِ . مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۴۵ . كنز العمال رقم الحديث ۴۴۳۸۱ .

په خپله هم ګمراه کيږي). (۱)

## شيطان هميشه د انسان د ګمراه کولو کوشش کوي

شيطان هميشه دا کوشش کوي چې انسان ګمراه کړي، ځکه خو الله تعالى انسان خبردار کړی چې د شيطان تابعداري مه کوه او دا په دُښمنۍ سره اُونيسه.

الله ﷻ فرمايي: ﴿ وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴾. (۲)

ترجمه: او تاسو د شيطان د قدمونو پيروي (تابعداري) مه کوئ، بيشکه هغه ستاسو د پاره ښکاره دُښمن دی.

بل ځای فرمايي: ﴿ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا ۭ اِنَّمَا يَدْعُوْا حِزْبَهٗ لِيَكُوْنُوْا مِنْ اَصْحٰبِ السَّعِيْرِ ﴾ (۳)

ترجمه: بيشکه شيطان ستاسو د پاره دُښمن دی پس تاسو دا (هميشه) دُښمن اُوګنړئ (او په دُښمنۍ يې اُونيسئ)، بيشکه دا خپل ټولې ډلې د پاره رابلي چې دوی (هم) خاوندان د دوزخ (يعنی جهنميان) شي.

شيطان انسان ته د بَدکارۍ او بې حيايۍ حکم کوي.

الله ﷻ فرمايي: ﴿ وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ۝ اِنَّمَا يَاْمُرُكُمْ بِالسُّوْۗءِ وَالْفَحْشَاۗءِ وَاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَي اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴾. (۴)

ترجمه: او تاسو د شيطان د قدمونو پيروي مه کوئ، بيشکه هغه ستاسو د پاره ښکاره

---

(۱) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ وقال الترمذيُ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. قال الالباني: صحيح. مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النظر إِلَى الْمَخطوبة وَبَيَان العورات اَلْفَصْل الثَّانِي رقم الحديث ۳۱۰۹(۱۲)، مصنف ابن ابي شيبة رقم ۷٦۱٦، كنز العمال رقم الحديث ۴۵۰۴۵، صحيح الترغيب والترهيب كتاب الصلاة ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها رقم ۳۴٦(۷).

(۲) البقرة آية ۲۰۸.

(۳) فاطر آية ٦.

(۴) البقرة آية ۱٦۸، ۱٦۹.

دُښمن دی ، بیشکه هغه تاسو ته د بدکارۍ او بې حیایۍ حکم کوي ، او ددې (حکم هم درته کوي) چې تاسو په الله باندې (د ځان نه په دروغه) داسې خبرې ووایئ چې تاسو پرې (په خپله هم) نه پوهیږۍ .

د حضرت آدم علیه السلام د پیدائش سره سَم شیطان د انسان سره دُښمني شروع کړی : په قرآن کریم کې ددې تذکره شته چې اول یې حضرت آدم علیه السلام ته سجده اونکړه ، بیا یې حضرت آدم عليه السلام ته وَسوسه وَرواچوله او الله تعالی چې د کومې غنم دانې خوړلو نه منع کړې وُ هغه یې ورباندې اُوخوړه چې ددې په وجه د حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء نه کپړې لرې شوی ، بیا حضرت آدم عليه السلام د جنت د اُونو په پانړو باندې خپل عورت پټ کړو ، بیا الله تعالی حضرت آدم عليه السلام او حضرت حواء رضي الله عنها دواړه د جنت نه رااُوویستل . (۱)

د شیطان د لعنتي کیدو نه پس ده په ډیر تاکید سره دا ووېل چې زه به انسان د هر طرف نه ګمراه کوم ، الله تعالی د شیطان دا خبره داسې نقل کړی :

﴿ فَبِمَآ أَغْوَيْتَنِى لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ۝ ثُمَّ لَـَٔاتِيَنَّهُم مِّنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ أَيْمَـٰنِهِمْ وَعَن شَمَآئِلِهِمْ ۖ وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَـٰكِرِينَ ﴾ .(۲)

ترجمه : په وجه ددې چې تا زه ګمراه کړم نو زه به هم دې خلقو ته ستا په نیغه لاره کې کینم ، بیا به زه خامخا دوی ته د دوی د مخې طرف ، شا طرف ، خي طرف او چپ طرف نه (د

---

(۱) په قرآن کریم سورة الاعراف کې الله تعالی ددې بیان داسې کړی : ﴿ وَيَـٰٓـَٔادَمُ ٱسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ ٱلْجَنَّةَ فَكُلَا مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَـٰذِهِ ٱلشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ۝ فَوَسْوَسَ لَهُمَا ٱلشَّيْطَـٰنُ لِيُبْدِىَ لَهُمَا مَا وُۥرِىَ عَنْهُمَا مِن سَوْءَٰتِهِمَا وَقَالَ مَا نَهَىٰكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هَـٰذِهِ ٱلشَّجَرَةِ إِلَّآ أَن تَكُونَا مَلَكَيْنِ أَوْ تَكُونَا مِنَ ٱلْخَـٰلِدِينَ ۝ وَقَاسَمَهُمَآ إِنِّى لَكُمَا لَمِنَ ٱلنَّـٰصِحِينَ ۝ فَدَلَّىٰهُمَا بِغُرُورٍ ۚ فَلَمَّا ذَاقَا ٱلشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْءَٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ ٱلْجَنَّةِ ۖ وَنَادَىٰهُمَا رَبُّهُمَآ أَلَمْ أَنْهَكُمَا عَن تِلْكُمَا ٱلشَّجَرَةِ وَأَقُل لَّكُمَآ إِنَّ ٱلشَّيْطَـٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴾ . الاعراف آية ۱۹ تر ۲۲ .

﴿ يَـٰبَنِىٓ ءَادَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ ٱلشَّيْطَـٰنُ كَمَآ أَخْرَجَ أَبَوَيْكُم مِّنَ ٱلْجَنَّةِ يَنزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْءَٰتِهِمَآ ۗ إِنَّهُۥ يَرَىٰكُمْ هُوَ وَقَبِيلُهُۥ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ ۗ إِنَّا جَعَلْنَا ٱلشَّيَـٰطِينَ أَوْلِيَآءَ لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾ . الاعراف آية ۲۷ .

(۲) الاعراف آية ۱۶ ، ۱۷ .



ګمراه کولو د پاره ) راځم، او ته به په دوی کې اکثر خلق شکر کوونکي او نه مومې.

﴿قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُومًا مَّدْحُورًا ۖ لَّمَن تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكُمْ أَجْمَعِينَ﴾.(۱)

ترجمه : الله تعالی ورته اوفرمایل : اُوځه ددې ځای نه ذلیل رټلې شوی، یقین اوکړه چې څوک په دوی کې ستا تابعداري اوکړي نو زه به خامخا د تاسو ټولو نه جهنم ډک کړم.

بهر حال، شیطان د انسان ښکاره دُښمن دی، دده د ګمراه کولو کوشش کوي، بیا خاصکر چې کله ښځه بې پَردې راأووځي نو دا خو بیا د شیطان د پاره مضبوط جال دی، خامخا به ددې په ذریعه خلق ګمراه کوي.

## پَرده نه کوونکې زَنانه بَدترینې ښځې او مُنافقانې دي

کومې ښځې چې پَرده نه کوي نو داسې ښځو ته په احادیثو کې بَدترینې ښځې او منافقانې ویل شوي، او داسې ښځې به جنت ته ډیرې کمې داخلیږي، بلکې اکثره به جهنم ته داخلیږي. رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

خَيْرُ نِسَائِكُمُ الْوَدُودُ الْوَلُودُ الْمُوَاتِيَةُ الْمُوَاسِيَةُ إِذَا اتَّقَيْنَ اللهَ. وَشَرُّ نِسَائِكُمُ الْمُتَبَرِّجَاتُ الْمُتَخَيِّلَاتُ وَهُنَّ الْمُنَافِقَاتُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْهُنَّ إِلَّا مِثْلُ الْغُرَابِ الْأَعْصَمِ. (۲)

په تاسو کې بهترینې ښځې هغه دي چې هغه محبت کوونکې وي، ډیرې بچې زیږوونکې وي، د خپل خاوند سره موافقه وي، مددګاره (غمخواره) وي خو دا هله چې دوی د الله ﷻ نه ویریږي. او بَدترینې ښځې هغه دي چې د پرَدو سرو د وړاندې خپل زِینت ښکاره کوي (یعنی بې پَردګي کوي)، متکبّره وي، نو داسې ښځې منافقانې دي، داسې ښځې به ډیرې کمې جنت ته داخلیږي.

د " إِلَّا مِثْلُ الْغُرَابِ الْأَعْصَمِ " مطلب دادی چې لکه څرنګې په کارغانو کې د سپینو وزَرو واله یاسپینو خپو واله کارغه ډیر کم وي نو همدغه شان به مذکوره ښځې هم په ډیر

(۱) الاعراف آیة ۱۶، ۱۷.

(۲) السنن الکبری للبیهقي رقم الحدیث ۱۳۲۷۸، الترغیب والترهیب لقوام السنّة فصل في ذکر الزوجة السوء رقم الحدیث ۱۵۲۷، کنزالعمال رقم الحدیث ۴۴۵۶۹، وصححه الالباني في سلسلة الاحادیث الصحیحة برقم ۱۸۴۹ و رقم ۶۳۲.

لږ مقدار کې جنت ته داخلیږي . (۱)

## د بې پَردګۍ په وجه د جهنم مستحق کیدل

کومه ښځه چې بې پَردګي کوي ، بهَرته د وتلو په وَخت په سَر باندې لوپټه نه اچوي ، او د پرَدو سړو د وړاندې خپل ویښتان ښکاره کوي نو د داسې ښځې د پاره د جهنم سخته سزا ذکر شوی .

۱ . حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللَّهُ په '' اَلزّواجر '' کې او علامه ذهبي رَحِمَهُ اللَّهُ په '' اَلکبائر '' کې دا حدیث رانقل کړی : حضرت علي ﷺ فرمایي چې یو ځل زه او حضرت فاطمة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نبي ﷺ ته ورغلو ، مونږ هغه اُولید چې ډیر زیات یې ژړل ، ما ورنه پوښتنه اوکړه :

فِدَاكَ أَبِيْ وَأُمِّيْ يَا رَسُوْلَ اللهِ ! مَا الَّذِيْ أَبْكَاكَ ؟

اې د الله رسوله ! زما مور او پلار دې په تاسو قربان شي تاسو څه شی ژړوي ؟ (یعنی ولې ژاړې ؟ ) .

نبي علیه السلام اوفرمایل : اې علي ! په کومه شپه چې زه معراج ته تللې ووم نو ما د خپل اُمت څه ښځې اُولیدی چې قِسما قِسم عذاب ورکولې شو ، اوس ما چې د هغوی د عذاب تصوّر اوکړو نو ځکه مې اُوژړل .

بیا پیغمبر علیه السلام د هغې عذاب تفصیل شروع کړو :

رَأَيْتُ امْرَأَةً مُعَلَّقَةً بِشَعْرِهَا يَغْلِيْ دِمَاغُهَا .

ما یوه ښځه اُولیده چې د ویښتانو نه زوړَنده وه او دِماغو یې د کټوې په شان جوش وهلو ..... ( بیا نبي ﷺ د نورو زَنانه وُ د عذاب تذکره هم اوکړه ) .

حضرت فاطمې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا چې دا خبرې واوریدی نو پاڅیده او وې فرمایل :

---

(۱) « اَلغُرَاب الأَعْصَم » هُوَ الأَبْيَضُ الجَنَاحَيْنِ، وَقِيْلَ الأَبْيَضُ الرِّجْلَيْنِ . أَرَادَ: قِلَّةَ مَنْ يَدْخُلُ الجَنَّةَ مِنَ النِّسَاءِ. لِأَنَّ هٰذَا الوَصْفَ فِي الغِرْبَانِ عَزِيْزٌ قَلِيْلٌ . وَفِيْ حَدِيْثٍ آخَرَ « قَالَ: اَلمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ مِثْلُ الغُرَابِ الأَعْصَمِ. قِيْلَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ ! وَمَا الغُرَابُ الأَعْصَمُ ؟ قَالَ: الَّذِيْ إِحْدٰى رِجْلَيْهِ بَيْضَاءُ» . النهاية في غريب الحديث والأثر ج ۳ ص ۲۴۹ (عَصَمَ) .

اې زما محبوب پلاره ، زما د سترګو یخوالي یه ! دې ښځو به څه اعمال کول چې په دې عذاب کې مبتلاء شوي ؟ نبي علیه السلام ورته اوفرمایل :

يَا بُنَيَّةُ ! أَمَّا الْمُعَلَّقَةُ بِشَعْرِهَا فَإِنَّهَا كَانَتْ لَا تُغَطِّيْ شَعْرَهَا مِنَ الرِّجَالِ .

اې زما لورې ! کومه ښځه چې د ویښتانو نه زوړنده وه (او دماغو یې د کتهوی په شان جوش وهل ) نو هغې به د پردو سرو نه خپل ویښتان نه پټول ( نو ځکه په دې عذاب کې مبتلاء وه ) . (۱)

۲ . علماؤ یوه واقعه رانقل کړې چې یوه ښځه به په نرۍ کپړو کې بې پردې د کور نه بهر وتله ، کله چې وفات شوه نو د خپل کور واله یو کس په خوب کې اُولیده چې د الله ﷻ د وړاندې په نرۍ کپړو کې پیش شوه ، په دې وخت کې هوا راغله ، ددې بدن ښکاره شو ، الله تعالی ورنه اِعراض اوکړو او حکم یې اوکړو چې دا جهنم ته داخله کړئ :

فَإِنَّهَا كَانَتْ مِنَ الْمُتَبَرِّجَاتِ فِي الدُّنْيَا.

ځکه دا به په دُنیا کې بې پردې په زینت کې وتله . (۲)

---

(۱) قَالَ عَلِيٌّ كَرَّمَ اللهُ وَجْهَهُ : دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَفَاطِمَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فَوَجَدْنَاهُ يَبْكِيْ بُكَاءً شَدِيْدًا . فَقُلْتُ : فِدَاكَ أَبِيْ وَأُمِّيْ يَا رَسُوْلَ اللهِ ! مَا الَّذِيْ أَبْكَاكَ ؟ قَالَ : يَا عَلِيُّ ! لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِيْ إِلَى السَّمَاءِ رَأَيْتُ نِسَاءً مِنْ أُمَّتِيْ يُعَذَّبْنَ بِأَنْوَاعِ الْعَذَابِ فَبَكَيْتُ لِمَا رَأَيْتُ مِنْ شِدَّةِ عَذَابِهِنَّ . رَأَيْتُ امْرَأَةً مُعَلَّقَةً بِشَعْرِهَا يَغْلِيْ دِمَاغُهَا ..... فَقَامَتْ فَاطِمَةُ الزَّهْرَاءُ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهَا وَقَالَتْ : يَا حَبِيْبِيْ وَقُرَّةَ عَيْنِيْ مَا كَانَ أَعْمَالُ هٰؤُلَاءِ حَتّٰى وَقَعَ عَلَيْهِنَّ هٰذَا الْعَذَابُ ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : يَا بُنَيَّةُ ! أَمَّا الْمُعَلَّقَةُ بِشَعْرِهَا فَإِنَّهَا كَانَتْ لَا تُغَطِّيْ شَعْرَهَا مِنَ الرِّجَالِ .... الزواجر عن اقتراف الكبائر ج ۲ ص ۷۹ اَلْكَبِيْرَةُ الثَّمَانُوْنَ بَعْدَ الْمِائَتَيْنِ نُشُوْزُ الْمَرْأَةِ . الكبائر للذهبي ص ۱۷۸ اَلْكَبِيْرَةُ السَّابِعَةُ وَالْأَرْبَعُوْنَ نشوز الْمَرْأَة على زَوجهَا.

(۲) وَقَدْ حُكِيَ أَنَّ امْرَأَةً كَانَتْ مِنَ الْمُتَبَرِّجَاتِ فِي الدُّنْيَا وَكَانَتْ تَخْرُجُ مِنْ بَيْتِهَا مُتَبَرِّجَةً . فَمَاتَتْ . فَرَآهَا بَعْضُ أَهْلِهَا فِي الْمَنَامِ وَقَدْ عُرِضَتْ عَلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ فِيْ ثِيَابٍ رِقَاقٍ . فَهَبَّتْ رِيْحٌ فَكَشَفَتْهَا فَأَعْرَضَ اللهُ عَنْهَا وَقَالَ : خُذُوْا بِهَا ذَاتَ الشِّمَالِ إِلَى النَّارِ ، فَإِنَّهَا كَانَتْ مِنَ الْمُتَبَرِّجَاتِ فِي الدُّنْيَا. الكبائر ص ۱۷۸ اَلْكَبِيْرَةُ السَّابِعَةُ وَالْأَرْبَعُوْنَ نشوز الْمَرْأَة على زَوجهَا. الزواجر عن اقتراف الكبائر ج ۲ ص ۷۸ اَلْكَبِيْرَةُ الثَّمَانُوْنَ بَعْدَ الْمِائَتَيْنِ نُشُوْزُ الْمَرْأَةِ .

# د بې پَردګۍ په وجه په عذابِ قبر کې مبتلاء کيدل

د بې پَردګۍ په وجه زَنانه په عذابِ قبر کې مبتلاء کيږي ، کومې زَنانه چې نرۍ کپړې اغوندي ، يا سرتور سَر يا کلاؤ مخ د پرَدو سرو مخې راځي نو دوی ته به په قبر کې داسې سخت عذاب ورکولې شي چې که مونږ ته د هغې عذاب پته اولږي نو مونږ به مرې څَخول پريږدو .(۱) او الله ﷻ د عبرت د پاره کله کله د قبر عذاب خلقو ته ښايي.

مفتي عبدالرؤف سکهروي په خپل کتاب "اصلاحي بيانات" کې د عذابِ قبر متعلق يو واقعه رانقل کړی ، کومه چې د عبرت نه ډکه ده .

دا واقعه په کلکت کې راپيښه شوې وه ، چې يوه ښځه وفات شوه ، خلقو دفن کړه ، په دې لاره باندې يو کس تيريدو ، هغه دې قبرنه څه درزار او آوازونه واوريدل .

نو د کلي خلق يې په منډه راوستل ، او دا قبر يې رااُوسپړل ، څنګه چې يې د قبر نه تَخته رالرې کړه ، نو وې ليدل چې په قبر کې يوه ښځه لغړه ناسته ده ، خو کفن يې مکمل ختم شوې وُ ، دې ښځې وويل : ما له څه کپړې او څادر راوړئ چې ځان په کې تاؤ کړم ، خلقو ورله په تيزۍ باندې کپړې او غټ څادر راوړو ، دې په هغې کې ځان راتاؤ کړو او په منډه باندې خپل کور ته راغله .

کله چې کورته رااُورسيده نو کمرې ته ننوته ، او د کمرې دروازه يې د دننه نه د ځان پسې بنده کړه ، خلق چې راغلل او وې ليده چې دروازه د دننه طرفه بنده ده ، دې ته يې وويل :

دروازه خلاصه کړه . دې ورته وويل : زه به دروازه خلاصه کړم خو چونکه زما حالت ډير خراب دی ، د کتلو لائق نه دی ، که تاسو رانتوځۍ نو داسې کس راشئ چې زما د ليدلو طاقت لري . نو څلور زړه وَر کسان دننه ورغلل .

**د بې پردګۍ سزا** : نو دننه دې ښځې په څادر کې ځان راتاؤ کړې و ، د ټولو نه مخکې يې خپل سَر ښکاره کړو ، دوی او ليده چې په سَر باندې يې نه ويښتان شته او نه څرمن .

دوی ورنه پوښتنه وکړه : دا ويښتان دې څه شو ؟ دې ورته وويل :

زه به مخکې چې د کور نه وَتم نو سَر به مې ښکاره و ، او په سَر مې هيڅ زړو کې (لوپټه) نه په سَر کول ، کله چې قبر کې کينولې شوم نو فرښتو دا سزا راکړه چې زما هر هر ويښته يې راښکود ، تر دې چې زما د سَر څرمن هم ورسر لاړه .

(۱) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۵۲ پردہ .

**پردي خلقو ته د شونډو سرې کولو سزا** ددې نه روستو دې ښځې خپله خُله ښکاره کړه ، مونږ چې اوليده نو صرف غاښونه يې ښکاريدل او شونډې يې بالکل نه وې ·
مونږ ورنه پوښتنه وکړه : چې دا شونډې دې څه شوې؟ دې راته ووېل :
زه به چې د کور نه کله وتم نو ما به پردو (نامَحرَمه) خلقو ته خپلې شونډ سرې کولې ، فرښتو په قبر کې دا سزا راکړه چې زما غونډې شونډې يې رانه کټ کړې ·

**د نَاخُن پالش سزا** : ددې نه پس دې ښځې د خپل لاس او خپو ګوتې راښکاره کړې ، نو مونږ اوليده چې ددې د لاس او خپو په ګتو کې يو نُوک هم نه و ، مونږ ورنه پوښتنه اوکړه : ستا نُوکونه څه شو ؟ دې راته ووېل :
چې کله به زه بهر ته وَتم نو د پردو سړو د پاره به مې د لاس او خپو په نُوکانو باندې ناخُن پالش لړول ، او بل دا چې ددې ناخُن پالش په وجه به داَودس او غُسل کولو په وخت کې اُوبه هم لاندې نُوک ته نه رسيدې ، نو کله چې په قبر کې کيښودې شوم نو فرښتو رانه دا يو يو نُوک اُوويست . کله چې دې ښځې دا خبرې اوکړې نو بې هوشې وربانډې راغله ، او په هماغه ځای کې وفات شوه . داخلق وايي چې : مونږ دوباره دا ښځه قبرستان ته وې وړه او هلته مو دَفن کړه ·(۱)

**عبرت** : په دې واقعه کې د هغه ښځو دپاره لوي عبرت دی کومې چې بې پَردې په بازارونو کې ګرځي ، يا پردو سړو ته شونډې سرې کوي او ځان ورته ښکلې کوي ، او يا په نُوکونو باندې ناخُن پالش لړوي . الله دې مونږ ټول د قبر د عذاب نه اوساتي .آمين

**د يو اعتراض جواب** : که څوک دا اعتراض اوکړي : چې د مرګ نه پس خو څوک دوباره نه راژوندې کيږي نو بيا دا ښځه څنګه راژوندې شوه ؟
نو ددې جواب دادی چې د الله تعالی عام قانون دادی چې د مرګ نه پس څوک دوباره نه راژوندې کيږي ليکن کله کله د عبرت د پاره الله تعالی داسې کوي چې يو کس راژوندې کړي او بيا يې واپس وفات کړي ·

(۱) اصلاحی بیانات ج۱ ص۱۰۲ تا ۱۰۵ ، چه گناه گار عورتیں لمولان عبدالرؤف سکهروي صاحب ، مثالی فکر انگیز واقعات و لطائف ص۱۲۵ ، ناقابل یقین سچے واقعات ص۱۴۳ باب نمبر۸ .

حافظ ابن ابي الدنيا رَحِمَهُ اللهُ په دې باندې مستقل يو كتاب ليكلى، نوم يې دى " مَنْ عَاشَ بَعْدَ الْمَوْت " (يعنى هغه څوک چې د مرګ نه پس دوباره راژوندي شوي)، په دې كتاب كې ده په سَنَد سره ډير داسې واقعات رانقل كړي چې په هغې كې انسان د مرګ نه پس دوباره راژوندي شوې وي د خلقو سره يې خبرې كړي وي او بيا واپس وفات شوې وي

همدارنګې حافظ ابن رجب حنبلي رَحِمَهُ اللهُ په خپل كتاب " أهوال القبور " كې هم بعضې همدغه شان واقعات رانقل كړي.

بهرحال، كله كله الله تعالى د خلقو د عبرت د پاره مړې دوباره راژوندې كړي، د خلقو سره خبرې اوكړي او بيا وفات شي، دا څه د قرآن و سنت خلاف نده. البته د الله تعالى عام قانون دا ندى چې انسان د مرګ نه پس دوباره راژوندې كړي.

## د نن صبا ښځو حالت

ډير د آفسوس مقام دى چې نن صبا كله ښځې د كور نه اُوځي نو شوندې سرې كړي، سُرخي پُودر اُومږي، خوشبو استعمال كړي، نرى كپړې واغوندي، لوپټه د سَر په ځاى په مرى كې واچوي، متونه سينې او د بدن د ښائست ځايونه ښكاره كړي، بغير ضرورته په بازارونو كلبونو او د سېل په ځايونو كې د پرَدو سرو سره ځنګ په ځنګ ګرځي، د هغوى سره خنداګانې كوي، د ګډا او سرود په مجلسونو كې شركت كوي، په سينماګانو كې فِلمونه او ډرامې ګوري، او داسې د بې حيايۍ كارونه كوي چې انسان د هغې د بيان نه شرميږي، الله او رسول چې د پَردې متعلق كوم صريح احكامات بيان كړي هغه د خپو لاندې كوي، په لباس او شكل و شباهت كې د غير مُسلمو د فيشنونو اِتباع كوي

آيا دا ښځې هم ځان ته مسلمانانې وايي؟ آيا دا ښځې په هم دا تمنّىٰ لري چې د قيامت په ورځ به رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ شفاعت اوكړي؟

### د موجوده زمانې بې حياء ښځې خود جاهليت زمانې د بې حياء ښځو نه مخكې شوى

د موجوده زمانې دا بې حياء ښځې خو د جاهليت د زمانې د بې حياء ښځو نه هم مخكې لاړې؛ ځكه د جاهليت زمانې واله ښځو به كپړې اغوستې وى خو خپل زِينت به يې ښكاره كول او د دې زمانې بې حياء ښځو خو كپړې هم اُوويستى، بازار ته چې رااُوځي نو صرف د

بدن يو څو ځايونه يې پټ کړي وي نور يې اکثره بدن ښکاره وي ، ځان يې د ناوې په شان جوړ کړې وي ددې د پاره چې د خلقو توجّه ځان ته راواړوي .

مخکې به چې د مسلمانانو ښځې د کور نه بهر په سفر تللې نو په سورلۍ باندې به يې ورله پردې اُوتړلې چې دا چاته ښکاره نشي ، او پرده به د شرافت نخه وه ، ليکن ننصبا د بعضې شريفو خاندانونو ښځې هم په بازار کې بربنډ سر او بې پردې ګرځي ، او ورځ په ورځ دا حالات ښکته راروان دي .

يا بعضې کم عقلې بوډۍ ښځې چې بازار ته ځي نو د ځان سره ځوانه لور هم بوځي ، يا ددې بوډۍ ښځې دماغ دومره کار نه کوي چې پخپله يې پړونې په سر کړې وي خو ليکن ددې ځوانې لور په سر باندې يې لوپټه هم نه وي ، او متې يې ښکاره وي ، حالانکه زياته فتنه خو ددې ځوانې جينۍ نه خورېږي چې دې طرف ته د خلقو توجّه راوړي .

په کار خو دا وه چې دې بوډۍ دا ځوانه لور د ځان سره بازار ته نه راوستې ، او که د څه ضرورت د پاره يې راوستې نو کم از کم په پرده کې راوستل پکار وو ، ليکن ددې بوډۍ مقصد صرف د خپلو لورانو نمائش کول وي نو ځکه دا کار کوي .

## بې پردګي به د قيامت په ورځ ظلمت وي

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

مَثَلُ الرَّافِلَةِ فِي الزِّينَةِ فِي غَيْرِ أَهْلِهَا كَمَثَلِ ظُلْمَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا نُورَ لَهَا . (۱)

کومه ښځه چې د پردو سړو د وړاندې د زينت په کپړو کې په تکبّر (او نخرو) سره ګرځي نو ددې مثال د قيامت د ورځې د هغې ظلمت (تيارې) په شان دی چې د هغې د پاره رڼا نه وي .

يعنې د داسې ښځې د پاره به د قيامت په ورځ ظلمت وي . يا دا مطلب دی چې داسې ښځه به د قيامت په ورځ په داسې حالت کې راځي چې تکه توره به وي . (۲)

(۱) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ خُرُوجِ النِّسَاءِ فِي الزِّينَةِ رقم الحديث ۱۱۶۷ ، المعجم الكبير للطبراني ج ۲۵ ص ۳۸ رقم الحديث ۷۰ مَيْمُونَةُ بِنْتُ سَعْدٍ خَادِمَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، معرفة الصحابة لأبي نعيم ج ۶ ص ۳۴۴۴ رقم الحديث ۷۸۳۹ ، الأحاد والمثاني لابن ابي عاصم رقم الحديث ۳۴۳۹ . وصححه السيوطي في الجامع الصغير برقم ۸۱۳۲ ، وضعفه الالباني في سلسلة الاحاديث الضعيفة برقم ۱۸۰ .

(۲) (كَمَثَلِ ظُلْمَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ) أَيْ تَكُونُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهَا ظُلْمَةٌ (لَا نُورَ لَهَا) اَلضَّمِيرُ لِلْمَرْأَةِ . ←←←←←

قاضي ابوبکر بن عربي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : اګر چې دې حديث ته امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ ضعيف ويلی خو معنٰی يې صحيح ده . (۱)

## د بې پَردګۍ په وجه په غونډه معاشره کې بې حيائي خوَريږي

د بې پَردګۍ ګناه صرف د همدې ښځې پورې محدود نده بلکې ددې په وجه په غونډه معاشره کې بې حيائي او بې غېرتي خوريږي ، هر کس د سترګو په زِنا کې مبتلاء کيږي ، نو غونډ د الله ﷻ په عذاب کې ګرفتاريږي .

**د بې پَردګۍ په وجه د مغربي معاشرې بَدحالي** ګُفري ملکونو چې پَرده ختمه کړې ده او دبې حيايۍ اجازت يې ورکړی نو د هغوی معاشره ورځ په ورځ تباهۍ طرف ته روانه ده ، کورنۍ نِظام يې داسې تباه دی چې ډيرو ښځو ته په کې طلاق ورکړې شوې دی ، زِنا دومره عامه شوې چې د خلقو د وړاندې د سټيج د پاسه زِنا کولې شي ، کومې ښځې چې په دفترونو کې کار کوي د هغوی سره جبرًا زِنا کولې شي ، جينکۍ بې واده حاملې شي ، بيا دا حرامي بچيان ضائع کړي ، او د ډيرو بچو پلار په کې معلوم نه وي .

دا ټولې خرابيانې د بې پَردګۍ نه شروع شوې ، يعنی اول بهر ته د وتلو په وخت خپل مخ ښکاره کړي ، بيا دومره زړه وَرې شي چې په اُوچتو سترګو باندې سړو ته نيغ نيغ ګوري ، بيا د ول وسِنګار شروع کړي چې خلق راته اُوګوري ، بيا نرۍ کپړې اغوستل شروع کړي ، بيا سينې ، مټې او سَر ښکاره کړي ، بيا د خلقو سره تعلقات پيدا کړي ، بيا په هوټلو کلبونو او سينماګانو کې د سړو سره خُله په خُله شي ، نو چې کله خبره دې اَندازې ته اُورسي نو بيا د ټولو بَدکاريو او بې حيايو دروازه کلاوُ شي ، او معاشره تباهۍ طرف ته روانه شي ، او خلق د الله ﷻ په عذاب کې ګرفتار شي .

---

←←← قَالَ الدَّيْلَمِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : يُرِيْدُ الْمُتَبَرِّجَةَ بِالزِّيْنَةِ لِغَيْرِ زَوْجِهَا . تحفة الاحوذي بشرح جامع الترمذي ج ۴ ص ۲۷۶ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ خُرُوجِ النِّسَاءِ فِي الزِّينَةِ في تشريح حديث ۱۱۶۷ .

... يريد أنها تأتي يومَ القيامة سوداء مظلمة كأنها متجسدة من ظلمة . فيض القدير للمناوي ج ۵ ص ۵۰۷ .

(۱) قال القاضي ابوبكر بن العربي رَحِمَهُ اللهُ : ذَكَرَهُ التِّرمذي وَضَعَّفَهُ . وَلَكِنَّ الْمَعْنَى صَحِيْحٌ . عارضة الاحوذي ج ۵ ص ۱۱۳ .

## بې پَردګۍ سره بې غېرتي پيدا کيږي

بې پَردګۍ سره بې غيرتي پيدا کيږي، بيا داسې قوم د خپل ناموس، خپلې حياء او خپل ملک نه پوره دِفاع نشي کولی.

آيا غېرتي سړي دا برداشت کوي چې دده ښځه دې څو څو ورځې نه وي د پرَدو سړو سره دې په هوټلو کې يوائې شپې تېروي خرچه دې ورباندې دا کوي او فائده دې ورنه بل څوک اخلي؟ هيڅ کله نه.

څه نا څه غېرت خو په حيواناتو کې هم وي چې نَر حيوان خپل مؤنث حيوان ته بل څوک نه پرېږدي، ليکن دې مغربي تهذيب دده بعضې خلقو فِطرت داسې مَسخ کړی چې دوی د خپلو ښځو دا بې حيائي او بې غېرتي په خپلو سترګو باندې ګوري خو هيڅ غږ نه کوي.

## د بې پَردګۍ په وجه ښځه د اسلامي آدابو نه محرومه کيږي

د بې پَردګۍ په وجه ښځه د اسلامي آدابو او اسلامي اخلاقو نه محرومه کيږي، ځکه اسلام ښځې ته د حياء او عِفت حکم کړی، د نظر او ژبې د حفاظت حکم يې ورته کړی، اوس چې کله زَنانه بې پَردې اُووځي او د پرَدو سړو سره يې اختلاط راشي نو په دې سره حياء او عزت ختم شي، د سترګو او ژبې حفاظت هم ختم شي.

## د بې پَردګۍ په وجه ښځې ډېرې طلاقيږي

کومې ښځې چې بې پَردې ګرځي يا د پرَدو سړو سره ګډون کوي نو په داسې ښځو باندې د خاوند بَدګماني پيدا کيږي ځکه دا د نورو بې پَرده ښځو واقعات اَوري نو پخپله ښځه يې هم بَدګماني پيدا شي، بيا يې په زړه کې ورسره نفرت پيدا شي، آخري نتيجه يې طلاقو ته اُورسي. مخکې به د طلاقو واقعات په کُفري ملکونو کې زيات وو خو اوس دده بې پَردګۍ په وجه په اسلامي ملکونو کې هم زيات شوي.

## نن صبا په وَدونو کې ډيره بې پَردګي کيږي

نن صبا په وَدونو کې ډيره بې پَردګي کيږي، د دِيندارو کورونو ښځې هم په واده کې د پَردې لحاظ نه ساتي، بيا ډيره د بې شرمۍ خبره داده چې د ناوې او نورو ښځو ويډيوګانې کولې شي ددې د پاره چې نور خلق يې هم اوګوري، بعضې يې په کې په اِنټرنِټ او فېس بُک

باندې هم دا ویډیوګانې خوَرې کړي چې ټوله دُنیا یې اوګوري ، او په دې باندې فخر هم کوي.

په بعضو ځایونو کې ناوې ته داسې اُوچت ځای جوړ شوې وي مخ یې ښکاره وي چې خلق دا اوګوري او اُووایي چې دا څومره ښائسته ده ، د پرَدو خلقو د شهوت نه ډک نظرونهورباندې لږي ، خو دوی ته دا هیڅ د ګناه کار نه ښکاري ، داځکه چې د دوی نه حیاء ختمه شوې وي نو اوس یې چې څه خوَښه وي نو هغه کوي.

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم فرمايي : إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَافْعَلْ مَا شِئْتَ .(۱)
چې کله درکې حیاء نه وي نو بیا چې دې څه خوښه وي هغه کوه (خو سزا به یې اُوګورې).
یعنې چې کله درنه حیاء ختمه شي نو بیا خو بل داسې څیز نشته چې هغه تا د فحاشۍ او ګناهونو نه منع کړي.

خو چې په چا کې چې معمولي غیرت او معمولي حیاء وي هغه به هیڅ کله داسې بې پرَدګي برداشت نه کړي.

## ناوې تختول

چې کله د شریعت خلاف وَرزې کیږي نو بیا به خامخا د بې عزتۍ واقعات هم راپیښیږي.
په یو واده کې ناوې ښکاره مخ ناسته وه ، چې کله یې په ګاډي کې ورله نو په دې وخت کې یې هم مخ ښکاره وُ ، دا ډیره ښائسته وه ، دراَئیور پرَدې کس وُ ، هغه چې ناوې داسې ښکاره مخ اُولیده نو په زړه کې یې شیطاني وَسوسې راپیدا شوی ، د ګاډي په شیشه کې به یې دې ناوې ته کتل ، ده ددې ناوې د تختولو د پاره دا تدبیر اوکړو چې دا ګاډې یې د نورو نه ډیر تېز بوتللو ، چې کله ورنه د واده نور ګاډي ډیر شاته پاتې شو نو ده په یو ځای کې یو دَم بریک اُووهلو او وې ویل چې :

ګاډې خراب شو ، اوس نه ستارټ کیږي ، تاسو ګوز شئ او دِیکه اُووهئ.

---

(۱) صحیح البخاري كِتَابُ أَحَادِيثِ الأَنْبِيَاءِ بَابُ حَدِيثِ الغَارِ رقم الحديث ۳۴۸۳ .

وفي رواية : إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ . صحیح البخاري كِتَابُ أَحَادِيثِ الأَنْبِيَاءِ بَابُ حَدِيثِ الغَارِ رقم الحديث ۳۴۸۳ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۷۱۰۷ .

نو د ناوې نه علاوه ټول خلق کوز شو او دیکه یې اُووهله ، کله چې ده موقع اُومونده نو ګاډې یې سټارټ کړو او په تېزۍ سره اُوتختید ، ناوې یې هم د ځان سره اُوتختوله ، ځان یې غائب کړو ، د ډېر تلاش نه څلور ورځې پس خلقو پیدا کړو ، خو د ناوې عزت تار تار شوې وُ . دا نقصان ددې وُ چې خلقو د شرعي حُکم " پَردې " لحاظ او نه ساتل نو ځکه ددې بې عزتۍ سره مخامخ شو .

## د بې پَردګۍ په وجه ښځې تختول

ډېر خلق په خپلو کورونو کې د پَردې لحاظ نه کوي ځوان کس د پرَدۍ ځوانې ښځې سره ګپ شَپ لګوي نو خامخا په زړونو کې یې شیطاني وَسوسې پیدا کیږي ، بیا ددې خرابه نتیجه دا راأوځي چې دا کس دا جینۍ اُوتختوي ، نو د دواړو خاندانونو د پاره ذِلت او رَسوائي جوړه شي .

بیا خاصکر په اَخبارونو کې هم ډېر داسې واقعات راځي چې په فلانکۍ علاقه کې سړي خپله ورَندار ( د وړور ښځه ) اُوتختوله ، یا یې خپله خِینه ( د ښځې خور ) اُوتختوله.

او دا کار اکثره هغه خلق کوي چې شریعت د هغوی نه د پَردې حکم کړې وي خو دوی پَرده نه کوي او کورونو ته آزاد ځي راځي ، نو آخر یې ددې ښځو سره تعلقات پیدا شي او وې تختوي .

که چیرته مسلمانان د پَردې لحاظ اوساتي د کومو خلقو نه چې شریعت د پَردې حکم کړې وي هغه کور ته نه راپرې ږدي او ښځې بِلاضرورت بهر نه پرېږدي نو هیڅ کله به داسې واقعات نه راپېښیږي .

## د بې پَردګۍ په وجه کورنې نِظام مکمل تباه کیږي

د بې پَردګۍ په وجه کورنې نِظام مکمل تباه کیږي ، د کور اِطمینان او سکون ختمیږي ، د ښځې او خاوند په مینځ کې بې اِعتمادي پیدا کیږي ، نسب یې محفوظ نه وي ، او ډېرې ښځې د خاوندانو نه طلاقیږي .

په یورپي ملکونو کې چې سهر شي نو سړي خپلې ډِیوټۍ ( کار ) له لاړ شي ، ښځه خپلې ډیوټۍ له لاړه شي ، ماشومان چائیلډ کِیئر اِدارې ته اُوسپاري او کور ته قلف ( تاله )

ورواچوي ، نو چې کله د ماشوم تربیت نور خلق اوکړي او دا د مور د شفقت نه محرومه شي نو دده په زړه کې به بیا د والدینو څه قدر پیدا شي ؟

ښځه خو د کورنظام جوړولو د پاره بُنیاد دی ، که دا صحیح وي نو ټول کور به صحیح وي ، او که دا خرابه شي نو ټول کور خرابیږي .

د ماشوم د پاره د مور غیږ اوله مدرسه ده ، ده ته د مور د شفقت او ښه تربیت ضرورت وي، که موریې پاکدامنه حیاناکه وي او ددې بچي ښه تربیت اوکړي نو بیا به ددې ماشوم په زړه کې د والدینو عزت هم وي او دده نه یو لوي عِلمي شخصیت هم جوړیدې شي .

خو که موریې پخپله بې حیاء او کوڅه ډَبه وي نو دا به د بچو د اَخلاقو څه تربیت اوکړي ؟

نن چې د مغربي معاشرې کورنې ژوند تباه دی نو د هغې وجه همدا ده چې هلته ښځې ته خپل مقام ندې ملاؤ شوی ، ښځه الله ﷻ د کور مُنتظِمه کرځولې خو دوی بهر رااُوویسته .

## د ښځې په باره کې د ګورباچوف نظریه

که علماء د ښځې د پَردې خبره کوي نو خلق دا ګمان کوي چې دوی مُتعَصِّبین او تَنګ نظره دي ځکه دا خبرې کوي ، حالانکه اوس خو غیر مُسلمو هم دا منلی چې د ښځې په باره کې د اسلام کومه نظریه ده هغه صحیح ده .

د نن نه یو څو کاله مخکې د سوویت یونین آخري صدر " میخائل ګورباچوف " یو کتاب لیکلی ، د هغې نوم دی " پروستهرائیکا " ، هغه کتاب چاپ شوی ، په ټوله دُنیا کې مشهور دی ، ده په هغه کتاب کې د ښځو په باره کې مستقل باب قایم کړی :

( Status of women ) یعنی د ښځې مقام .

په دې باب کې ده په واضحه طریقې سره دا خبره لیکلی :

" مونږ مغرب والهٔ ښځه د کورنه بهر رااُوویسته اګرچې په دې کې به مونږ ته معاشي فائدې هم حاصلې شوې وي ، زمونږ په پیداوار کې به هم زیاتوالې راغلې وي ځکه سړي او ښځې ټول کار کوي خو ددې فوائدو سره سره زمونږ کورنې نظام هم تباه شوی او دا نقصان د هغه فوائدو نه ډیر زیات دی ، لهذا زه په خپل ملک کې د پروستهرائیکا په نوم باندې تحریک شروع کوم په دې سره زما غټ مقصد دادی چې کومه ښځه د کور نه اُوتې ده هغه څنګه واپس کور ته راولو ؟ او که داسې اونکړو نو لکه څرنګې چې زمونږ کورنې

نظام تباه شوی همدغه شان به زمونږ پوره قوم هم تباه شي " .

محترمو مسلمانانو ! دا د يو غير مُسلمه کس اِقرار دی چې د ښځو په باره کې يې په کور کې د پاتې کيدو نظريه لرله . (۱)

نن صبا خلق دا کوشش کوي چې که ښځه هم د کور نه د کاروبار د پاره راأوباسم نو روپۍ به زياتې أوګټم . لږ سوچ په کار دی چې که يو کس روپۍ زياتې أوګټي خو چې کورني نظام يې تباه شي نو ددې څه فائده ده ؟

د روپو مقصد خو دادی چې انسان ته اِطمينان او سکون حاصل شي ، خو چې کله په بې پَردګۍ سره کورني نظام تباه شي ، اِطمينان او سکون ختم شي نو بيا په روپو څه ؟

## د ښځو د آزادۍ نعره د مغربي تهذيب دُهوکه ده

مغربي تهذيب واله کافران د فحاشۍ او زِنا کارۍ خوَرولو د پاره دا آواز پورته کوي چې " ښځو ته دې آزادي ملاؤ شي " ، او ديته د " *تحريک آزادي نسواں* " نوم ورکوي ، دا اګر چې په ظاهره باندې ښه خبره معلوميږي خو په حقيقت کې دا د دوی غټه دُهوکه ده .

دوی په ميډيا باندې د ښځو مَظلوميت بيانوي ، بيا ورسره هغه ويډيوګانې هم ښايي چې په هغې کې په اَطرافو کې يو څو زَنانه وُ سره ظلم شوې وي ، خلق چې دا ويډيوګانې ګوري نو وايي چې " دا خو يقيني د ښځو سره ظلم دی ، دوی ته دې آزادي ملاؤ شي "

ليکن په حقيقت کې دا کافران په دې طريقې سره په مسلمانانو کې فحاشي او زِناکاري خوَرول غواړي ، د دوی اصل مقصد دادی چې زَنانه بې پَردې شي ، او هر سړې ورنه په بازار او هوټلو کې خپل جِنسي خواهش په آسانه پوره کولې شي .

نو په ظاهره باندې د دوی د ښځو د آزادۍ دا نَعره ډيره خوَندوَره معلوميږي ليکن ددې شاته چې کوم مقاصد پټ دي هغه ډير خطرناک دي ، ځکه دوی چې ښځو ته داکومه آزادي ورکول غواړي ( چې په بازارونو کې بې پَردې اوګرځي ، او څه يې چې زړه غواړي هغه اوکړي ) نو په دې سره خو د مسلمانانو خانداني ژوند تباه کيږي ، بيا به نکاح ته هيڅ ضرورت پاتې نشي ، هر سړې او هره ښځه چې څه وخت اوغواړي او چا سره اوغواړي د يو

---

(۱) اصلاحي خطبات ج ۱ ص ۱۴۸ .

څو روپو په عوض کې به خپل خواهش پوره کوي ، حالانکه د نورو ټولو مذهبونو په نسبت اسلامي شريعت ښځو ته ډير حقوق ورکړي ، په ميراث وغيره کې يې خپل حقوق معلوم دي ، د کور شهزادګۍ يې ګرځولې ، د قيمتي ملغلرې په شان يې په پَرده کې محفوظ ساتلې . لهذا د ښځو د آزادۍ په نوم چې کومه نعره اُوچتولې شي دا د دوی ډوکه ده .

**د مثال په ذريعه وضاحت** : صرف ستاسو د پوهې د پاره درته يو مثال پيش کوم چې دا خبره درته پوره واضحه شي : ددې مثال داسې دی لکه يو شپونکي چې خپلې ګډې د کور په چارديوالۍ کې د لېوانو نه محفوظې کړې وي ، ځکه بهر لېوان ګرځي ، هغوی کوشش کوي چې په څه طريقې سره دا ګډې اُوخوري ، ليکن د شپونکي په وجه کور ته نشي ورتللی . اوس لېوان ددې کور بهر راجمع شي او دا آوازونه اُوچتوي چې :

دې شپونکي ددې ګډو حقوق غصب کړي ، په کار ده چې ګډو ته آزادي ملاؤ شي ، او د خپلې خوَښې آزادانه ژوند تېر کړي .

ګډې چې دا خبرې واوري نو دا هم اووايي چې لېوان خو ښه خبره کوي په کار ده چې مونږ ته آزادي ملاؤ شي . شپونکې ورته ډير نصيحت اوکړي چې د هغوی خبره په ظاهره باندې ډيره ښه معلوميږي خو ددې شاته مقاصد نور دي . ليکن ګډې د شپونکي نصيحت اُو نه مني . کله چې دا ګډې د کور نه بهر اُووځي او غر ته لاړې شي نو هلته وربانديې لېوان حمله اوکړي او ټولې ماتې کړي . دا مې درته صرف يو مثال پيش کړو .

همدغه شان د مغربي تهذيب واله هم د ښځو د آزادۍ او حقوقو خبره کوي خو چې کله ښځه بهر بې پَردې رااُووځي او دخپلې خوَښې کارونه شروع کړي نو دوی ورنه قدم په قدم خپل خواهشات او مقاصد پوره کوي ، چې په دې سره ددې حياء و عزت ختميږي او غونډ خانداني ژوند يې تباه کيږي .

نو ځکه شريعت ښځو ته حُکم کړی چې په حياء او عزت سره په کورونو کې ژوند تير کړي .

## اسلام د سړي او ښځې په مينځ کې کار تقسيم کړی

د انسان د ژوند دوه مختلف شعبې دي : يوه د کور بهر شعبه ، او بله د کور دَننه شعبه . اسلام دا دواړه شعبې تقسيم کړي : د کور بهَر کارونه يې سړو ته حواله کړي ، لکه روزي

ګټل ، تجارت کول ، سياست او حکومت کول .

او د کور دننه کارونه يې ښځو ته سپارلي . ځکه خو الله تعالى ښځو ته فرمايي :

﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ ﴾ او تاسو په کورونو کې اُوسئ . (۱)

همدارنګې نبي عليه السلام هم د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت فاطمې رضي الله عنها په مينځ کې کارونه تقسيم کړي وو : حضرت علي رضي الله عنه ته يې اوفرمايل : چې ته د کور بهر کارونه کوه او حضرت فاطمې رضي الله عنها ته يې اوفرمايل چې ته د کور دننه کارونه کوه. (۲)

د سړو او ښځو په مينځ کې د کارونو د تقسيم دا خبره په عقل سره هم معلوميږي ؛ ځکه الله تعالى سړي جسماني لحاظ سره مضبوط پيدا کړي دي او ښځې يې کمزورې پيدا کړي دي ، د کور بهر کارونه چونکه مشقّت او قوّت غواړي نو ځکه يې دا سړو ته سپارلي ، او د کور دننه کارونه دومره مشقّت نه غواړي نو ځکه يې دا ښځو ته سپارلي .

اوس که څوک د سړو بهر درانه کارونه د کمزورو ښځو په اُوږو باندې اَچوي نو دا د ښځو سره ظلم دی .

يا د مغرب واله د ښځو سره غټ ظلم دا هم کوي چې اول وړاندې بهر په دفترونو کې اُوه يا اته ګنټې کار اوکړي ، بيا چې کور ته راشي نو د کور کارونه هم وړاندې کوي چې دا ورسره ظلم دی .

لهذا که چيرته دا دواړه طبقې خلق ددې تقسيم لحاظ اوساتي او هر يو په خپله خپله دائره کې کار اوکړي نو ژوند به په اِطمينان او سکون روان وي ، خو که ښځې د کور نه بهر رااُووځي او د سړو په کارونو کې حصه واخلي نو کورنې نظام يې مکمل تباه کيږي .

---

(۱) الاحزاب آية ۳۳ .

(۲) قَالَ ابن حبيب فِي "الْوَاضِحَةِ" : « حَكَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَبَيْنَ زَوْجَتِهِ فاطمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حِينَ اشْتَكَيَا إِلَيْهِ الْخِدْمَةَ، فَحَكَمَ عَلَى فَاطِمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بِالْخِدْمَةِ الْبَاطِنَةِ خِدْمَةِ الْبَيْتِ وَحَكَمَ عَلَى عَلِيٍّ رضي الله عنه بِالْخِدْمَةِ الظَّاهِرَةِ » . ثُمَّ قَالَ ابن حبيب وَالْخِدْمَةُ الْبَاطِنَةُ: الْعَجِينُ وَالطَّبْخُ وَالْفَرْشُ وَكَنْسُ الْبَيْتِ وَاسْتِقَاءُ الْمَاءِ وَعَمَلُ الْبَيْتِ كُلِّهِ . زاد المعاد في هدي خير العباد لابن قيم الجوزية ج ۵ ص ۱۶۹ فَصْلٌ فِي حُكْمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي خِدْمَةِ الْمَرْأَةِ لِزَوْجِهَا .

په دې کې هيڅ شک نشته چې انساني ژوند کې د ښځې او سړي مثال داسې دی لکه د ګاډي دوه پائې (ټېرونه). ګاډی به هله په خپل رَفتار باندې صحيح چلېږي چې کله دا دواړه پائې په خپل خپل ځای کې لږېدلې وي، يوه پايه په يو طرف کې لږېدلې وي او دويمه په بل طرف کې. اوس که دا دواړه په يو طرف کې اُولړي نو بيا به ګاډې نه ځي.

همدغه شان انسان به په دُنيا کې د اطمينان او سکون ژوند هله تيروي چې سړې او ښځې په خپل خپل ميدان کې کار کوي، يعنی سړې بهر کار کوي، او ښځه دَننه د کور کار کوي. اوس که ښځه هم بهر کارونو ته راأووځي نو يقيني چې کورنې نِظام مکمل تباه کيږي.

## د ښځو او سړو د مساوات خبره د فِطرت خلاف ده

مغرب واله وايي چې" مونږ د سړو او ښځو په مينځ کې مساوات کوو". نو د دوی دا خبره هم د فِطرت خلاف ده؛ ځکه چې کله الله تعالی د سړو او ښځو وجود ځانله ځانله آنداز باندې پيدا کړي، سړو ته يې يو شان صلاحيتونه ورکړي او ښځو ته بل شان، سړو ته يې يو شان خيالات ورکړي او ښځو ته بل شان، دا په دې باندې دلالت کوي چې د سړو او ښځو کارونه هم جدا جدا دي، سړي د بهر مشقت واله کارونو د پاره دي او ښځې د کور آسانه کارونو د پاره. لهذا څوک چې د سړو او ښځو په مينځ کې د مساوات نعره لږوي نو دا د فِطرت خلاف ده.

## سړو ته په ښځو باندې فضيلت حاصل دی

الله تعالی د سړو او ښځو په تخليق کې فِطرةً فرق ساتلی، هر يو ته يې ځانله ځانله صلاحيتونه ورکړي، په سړو کې چې کوم اَوصاف دي دا په ښځو نشته، او په ښځو کې چې کوم اَوصاف دي دا په سړو کې نشته، هريو يې ته د خپل خپل کار مناسب صلاحيت ورکړی

اګر چې د الله ﷻ په نزد باندې د فضيلت دارومدار په تقوٰی او پرهيزګاری باندې دی. په قرآن کريم کې ذکر دي: ﴿إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ﴾.(۱)

ترجمه: بيشکه په تاسو کې ډير عزت مند د الله تعالی په نزد هغه کس دی چې هغه ډير پرهيزګار وي.

---

(۱) الحجرات آية ۱۳.

خو بيا هم الله تعالى په ډيرو کارونو کې سړو ته په ښځو باندې فضيلت ورکړی. دا خبره صراحةً په قرآن کريم کې دوه (٢) ځايه ذکر ده.

**اول**: الله ﷻ فرمايي: ﴿ اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَّبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ ﴾.(١)

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ په بيانُ القرآن کې ددې ترجمه داسې کړی:

سړي په ښځو باندې حاکمان (نِګرانان) دي (د دوه وجوهاتو په وجه باندې: يو) ددې په وجه چې الله تعالى بعضو (يعنى سړو) ته په بعضو (يعنى ښځو) باندې (قدرتي) فضيلت ورکړی (دا وَهبي اَمر دی)، او (دويم) ددې په وجه چې سړو خپل مالونه (په ښځو باندې په مهر او نان نفقه کې) خرچ کړي دي (او خرچ کوونکې لاس بهتر دی، دا کسبي اَمر دی).(٢)

په دې آيت کې په ﴿ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ﴾ کې صراحةً ذکر شو چې الله تعالى سړو ته په ښځو باندې فضيلت ورکړې دی.

**دويم**: الله ﷻ فرمايي: ﴿وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ ﴾.(٣)

ترجمه: او الله تعالى چې په تاسو کې بعضو له په بعضو نورو باندې کوم فضيلت ورکړی تاسو د هغې تمنّا مه کوئ.

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ په بيانُ القرآن کې ددې ترجمه داسې کړی:

او تاسو (ټولو سړو او ښځو ته داحکم شوی چې په فضائلِ وَهبيه وُ کې) داسې کار تمنّا مه کوئ چې په هغې کې الله تعالى بعضو (مثلا سړو) ته په بعضو (مثلا ښځو باندې) فوقيت ورکړی (لکه سړي کيدل، يا سړو ته په ميراث کې دوچَند حصه ملاويدل، يا په ګواهۍ کې د سړو کامِل کيدل، وغيره).

(١) النساء آية ٣٤.

(٢) تفسير بيان القرآن ج ١ ص ٣٥٣ طبع مكتبه رحمانيه.

(٣) النساء آية ٣٢.

حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللَّهُ ددې آيت په شانِ نزول کې ذکر کړي : چې يو ځل حضرت اُمّ سلمة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نبي عليه السلام ته اوفرمايل : چې مونږ ته په ميراث کې ( د سړو په نسبت ) نيمه حصه ملاويږي ، او نور په فلاني فلاني کارونو کې زمونږ او د سړو په مينځ کې فرق دی .

( د حضرت اُمّ سلمة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا مقصد اعتراض نه وُ ، بلکه مقصد يې دا وُ چې که چيرته مونږ هم سړي وی نو دا به ښه وه ) نو دا مذکوره آيتِ مبارکه نازل شو .(۱)

## قرآن کريم د سړو او ښځو په مرتبو کې فرق کړی

څوک چې دا وايي "چې د سړو او ښځو په مرتبه کې هيڅ فرق نشته" نو د دوی دا خبره د قرآن کريم هم خلاف ده . ځکه قرآن کريم د سړو او ښځو په مرتبه کې فرق کړی ، يو څو مثالونه درته ذکرکوم :

**اول مثال** : الله تعالی سړي په ښځو باندې نګرانان ( حاکمان ) مقرر کړي :

﴿ اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ ﴾ . ترجمه : سړي په ښځو باندې نګرانان دي .

او ښځې ته يې د سړي د فرمانبرداری حکم کړی ، او دا فرمانبرداري يې د شريفې ښځې علامه ګرځولی : ﴿ فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ ﴾ .(۲)

ترجمه : پس نېکانې ښځې ( د خپلو خاوندانو ) تابعدارې وي .

او الله تعالی سړو ته د ښځو د فرمانبرداری حکم ندې کړی ، بلکه د ښځو سره يې د حُسنِ سلوک حکم کړی : ﴿ وَعَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ﴾ .(۳)

---

(۱) تفسير بيان القرآن ج ۱ ص ۳۵۲ طبع مکتبه رحمانيه .

په تفسير بغوي کې ددې آيت شان نزول داسې ذکر دی : قَوْلُهُ تَعَالَى: { وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ } الآية. قَالَ مُجَاهِدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ : قَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا : يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ! إِنَّ الرِّجَالَ يَغْزُوْنَ وَلَا نَغْزُوْ، وَلَهُمْ ضِعْفُ مَا لَنَا مِنَ الْمِيْرَاثِ، فَلَوْ كُنَّا رِجَالًا غَزَوْنَا كَمَا غَزَوْا وَأَخَذْنَا مِنَ الْمِيْرَاثِ مِثْلَ مَا أَخَذُوْا . فَنَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ . تفسير البغوي ( معالم التنزيل في تفسير القرآن ) ج ۲ ص ۲۰۴ . و اخرجه الواحدي بسنده في أسباب النزول ص ۱۸۱ ، وانظر: تفسير الطبري ۸ / ۲۶۱، الدر المنثور ۲ / ۵۰۷. تفسير القرطبي ج ۵ ص ۱۶۲ .

(۲) النساء آية ۳۴ .

(۳) النساء آية ۱۹ .

ترجمه: او تاسو د ښځو سره په ښه طريقه ژوند تيروئ.

ددې آيتونو نه معلومه شوه چې الله تعالى سړي د كورنګرانان (حاكمان) مقرر كړي او ښځې يې د دوى ماتحت ګرځولي. نو دواړه برابر نه شو.

**دويم مثال**: الله تعالى په ميراث كې د سړو حصه د ښځو په دو چند مقرر كړې:

﴿لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ﴾.(۱)

ترجمه: د سړي برخه د دوه ؤ ښځو برابر ده. (يعنى سړي ته د ښځې په دوچند حصه ده).

لهذا د هلک حصه د جينۍ د حصې نه، د پلار حصه د مور د حصې نه، د خاوند حصه د بي بي د حصې نه، او د ورور حصه د خور د حصې نه زياته ده. (ددينه هم معلومه شوه چې سړي او ښځې برابر ندي).

**دريم مثال**: قرآن كريم د ښځو ګواهي د سړو په نيمائي ګرځولې، يعنى د دوه ښځو ګواهي يې د يو سړي د ګواهۍ برابر ګرځولې.

﴿ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ ﴾.(۲)

ترجمه: كه چيرته دوه سړي نه وي نو بيا يو سړې او دوه ښځې ګواهان جوړكړئ.

همدارنګې د سړو او ښځو په ګواهۍ كې نور فرق هم شته، ځكه ځانله د سړو ګواهي معتبر ده ليكن ځانله د ښځو ګواهي معتبر نده، ددې سره د سړي ګواهي ضروري ده.

(البته كوم كارونه چې صرف د ښځو سره خاص وي او په هغې باندې د سړو خبريدل عادةً ممكن نه وي نو بيا په دې كې صرف د ښځو ګواهي هم معتبر ده).

په حدود او قصاص كې صرف د سړو ګواهي معتبر ده، په دې كې د ښځو ګواهي معتبر نده.(۳)

**څلورم مثال**: قرآن كريم د طلاقو اِختيار سړي ته وركړى، ښځو ته يې ندې وركړى.

---

(۱) النساء آية ۱۱.

(۲) البقرة آية ۲۸۲.

(۳) عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: مَضَتِ السُّنَّةُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْخَلِيفَتَيْنِ مِنْ بَعْدِهِ: أَلَّا تَجُوزَ شَهَادَةُ النِّسَاءِ فِي الْحُدُودِ. مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۸۷۱۴ كِتَابُ الْحُدُودِ فِي شَهَادَةِ النِّسَاءِ فِي الْحُدُودِ

**پنځم مثال:** قرآن کريم سړي ته په يو وخت باندې د څلورو ښځو سره د نکاح کولو اجازت ورکړې ، ليکن ښځې ته يې په يو ځل د يو نه زيات خاوندانو سره د نکاح اجازت ندې ورکړې . ( البته که يو خاوند يې وفات شي يا طلاق ورکړي نو بيا د عدت تيريدو نه پس د بل سره نکاح کولې شي ) .

د قرآن کريم ددې آيتونو نه د اخبره معلومه شوه چې د سړو او ښځو په مرتبه کې فرق شته ، لهذا څوک چې دا وايي " چې د سړو او ښځو په مرتبه کې هيڅ فرق نشته " د دوی خبره د قرآن کريم خلاف ده . (۱)

ددينه علاوه نور مثالونه هم شته چې په هغې کې اسلامي شريعت د سړو او ښځو په مرتبه کې فرق کړی :

**شپږم مثال:** په اسلامي شريعت کې د ښځې دِيَت د سړي د دِيَت په نيمائي دی ، او په دې باندې د صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او ائمه اَربعهؒ اجماع ده . (۲)

**اووم مثال:** سړې قاضي جوړيدې شي خو ښځه قاضي ( جَجَه ) نشي جوړيدی ، او په دې باندې د ائمه اَربعهؒ اتفاق دی . د نورو درې ائمهؒ په نزد په څه معامله کې د ښځې فيصله نافذ نده ، او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد ددې فيصله د حُدود او قصاص نه علاوه

---

(۱) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۶۱۱ ، ۶۱۲ ع ۱۱ .

(۲) وَإِنْ كَانَ أُنْثَى فَدِيَةُ الْمَرْأَةِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ دِيَةِ الرَّجُلِ لِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فَإِنَّهُ رُوِيَ عَنْ سَيِّدِنَا عُمَرَ. وَسَيِّدِنَا عَلِيٍّ. وَابْنِ مَسْعُودٍ. وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ رِضْوَانُ اللهِ تَعَالَى عَلَيْهِمْ أَنَّهُمْ قَالُوا فِي دِيَةِ الْمَرْأَةِ : إِنَّهَا عَلَى النِّصْفِ مِنْ دِيَةِ الرَّجُلِ . وَلَمْ يُنْقَلْ أَنَّهُ أَنْكَرَ عَلَيْهِمْ أَحَدٌ فَيَكُونَ إِجْمَاعًا. وَلِأَنَّ الْمَرْأَةَ فِي مِيرَاثِهَا وَشَهَادَتِهَا عَلَى النِّصْفِ مِنَ الرَّجُلِ فَكَذَلِكَ فِي دِيَتِهَا . بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع ج ۷ ص ۲۵۴ كِتَابُ الْجِنَايَاتِ وُجُوبُ الدِّيَةِ.

وَأَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ عَلَى أَنَّ دِيَةَ الْمَرْأَةِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ دِيَةِ الرَّجُلِ. قَالَ أَبُو عُمَرَ: إِنَّمَا صَارَتْ دِيَتُهَا ـ وَاللهُ أَعْلَمُ ـ عَلَى النِّصْفِ مِنْ دِيَةِ الرَّجُلِ مِنْ أَجْلِ أَنَّ لَهَا نِصْفَ مِيرَاثِ الرَّجُلِ، وَشَهَادَةُ امْرَأَتَيْنِ بِشَهَادَةِ رَجُلٍ . وَهٰذَا إِنَّمَا هُوَ فِي دِيَةِ الْخَطَإِ. وَأَمَّا الْعَمْدُ فَفِيهِ الْقِصَاصُ بَيْنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ لِقَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: ( اَلنَّفْسَ بِالنَّفْسِ ) وَ ( الْحُرُّ بِالْحُرِّ ) كَمَا تَقَدَّمَ فِي الْبَقَرَةِ . تفسير القرطبي ( الجامع لاحكام القرآن ) ج ۵ ص ۳۲۵ سورة النساء في تشريح آية ۸۲ .

نورو أمورو کې نافذ ده ، خو ښځه قاضي جوړول ګناه ده . (۱)

اتم مثال: ښځه د ملک سَر براه (بادشاه) نشي جوړيدی. (۲)

و په دې باندې د ټول اُمت اجماع ده . ځکه چې د بادشاهۍ د پاره کوم صفتونه ضروري

هغه الله تعالی په سړو کې پيدا کړي دي ، په ښځه کې نشته .

بل دا چې ښځې ته د پَردې حکم شوی ، او دا پَردو سړو سره د اختلاط نه منع شوی

ځکه د بادشاه د پاره د نورو خلقو سره ملاویدل راځي .

بل دا چې ښځه ناقصُ العقل وي او د بادشاهۍ د پاره کامل عقل واله سړي په کار دی .

ښځه د ملک سرابراه جوړيدل ناجائز ده . (۳)

ت: ددې آخري دوه مسئلو پوره تشريح روستو په فقهي مسائلو کې د صفحه ۳۴۵ نه تر صفحه ۳۵۶ پورې

ده . ابوالشمس عفي عنه)

---

(وَالْمَرْأَةُ تَقْضِيْ فِيْ غَيْرِ حَدٍّ وَقَوَدٍ وَإِنْ أَثِمَ الْمُوَلِّيْ لَهَا) لِخَبَرِ الْبُخَارِيِّ « لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمْ اِمْرَأَةً » .

المختار (قَوْلُهُ: فِيْ غَيْرِ حَدٍّ وَقَوَدٍ) لِأَنَّهَا لَا تَصْلُحُ شَهَادَةً فِيهِمَا فَلَا تَصْلُحُ حَاكِمَةً. رد المحتار على الدر المختار

ص ۴۴۰ بَابُ كِتَابِ الْقَاضِي إِلَى الْقَاضِي مَطْلَبٌ فِي جَعْلِ الْمَرْأَةِ شَاهِدَةً فِي الْوَقْفِ . آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۶۱۷

، فتاوی محمودیه ج ۲۵ ص ۱۰۰ قضاء وتحکیم کے احکام .

عَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ، قَالَ: لَقَدْ نَفَعَنِي اللهُ بِكَلِمَةٍ أَيَّامَ الْجَمَلِ، لَمَّا بَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ فَارِسًا مَلَّكُوا

ةَ كِسْرَى قَالَ: « لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمُ امْرَأَةً » . صحيح البخاري كِتَابُ الْفِتَنِ بَابُ الْفِتْنَةِ الَّتِي تَمُوجُ كَمَوْجِ

ر رقم الحديث ۷۰۹۹ . ورقم الحديث ۴۴۲۵ كِتَابُ الْمَغَازِي بَابُ كِتَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى كِسْرَى وَقَيْصَرَ

) امام بغوي رَحِمَهُ اللهُ د بخاري شريف حديث په تشريح کې ليکلي: اِتَّفَقُوْا عَلَى أَنَّ الْمَرْأَةَ لَا تَصْلُحُ أَنْ تَكُوْنَ

امًا وَلَا قَاضِيًا، لِأَنَّ الْإِمَامَ يَحْتَاجُ إِلَى الْخُرُوْجِ لِإِقَامَةِ أَمْرِ الْجِهَادِ، وَالْقِيَامِ بِأُمُوْرِ الْمُسْلِمِيْنَ. وَالْقَاضِيْ يَحْتَاجُ

الْبُرُوْزِ لِفَصْلِ الْخُصُوْمَاتِ. وَالْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ لَا تَصْلُحُ لِلْبُرُوْزِ ، وَتَعْجَزُ لِضَعْفِهَا عَنِ الْقِيَامِ بِأَكْثَرِ الْأُمُوْرِ. وَلِأَنَّ

رْأَةَ نَاقِصَةٌ، وَالْإِمَامَةُ وَالْقَضَاءُ مِنْ كَمَالِ الْوِلَايَاتِ فَلَا يَصْلُحُ لَهَا إِلَّا الْكَامِلُ مِنَ الرِّجَالِ. شرح السنة للبغوي

۱۰ ص ۷۷ بَابُ كَرَاهِيَةِ تَوْلِيَةِ النِّسَاءِ في تشريح حديث ۲۴۸۷ .

ل الامام القرطبي رَحِمَهُ اللهُ: وَأَجْمَعُوْا عَلَى أَنَّ الْمَرْأَةَ لَا يَجُوْزُ أَنْ تَكُوْنَ إِمَامًا. تفسير القرطبي ج ۱ ص ۲۷۰

ررة البقرة في تشريح آية ۳۰ .

اية المجتهد ج ۲ ص ۳۴۹ ، ازالة الخفاء ج ۱ ص ۴ . آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۶۱۸ ، وص ۶۲۰ ...

اوى حقانيه ج ۲ ص ۲۹۶ ، وص ۳۶۳ .

بهر حال ، ددې مثالونه دا خبره واضحه شوه چې د سړو او ښځو مرتبه برابر نده ، بلکه الله تعالى په ډيرو اُمورو کې سړو ته په ښځو باندې فضيلت ورکړی ، او ډير کارونه داسې دي چې په اسلامي شريعت کې د هغې اجازت صرف سړو ته شوی ، ښځو ته ندې شوی .
لهذا څوک چې د سړو او ښځو د مساوات خبره کوي دا د قرآن کريم او فِطرت خلاف ده .

## مغرب واله د ټولو نه ذليل کارونه ښځو ته سپارلي

مغرب واله خو په خُله باندې دا وايي چې " مونږ سړو او ښځو ته يو شان حقوق ورکوو او په حکومت کې ورته غټې غټې عُهدې ورکوو " ليکن که تاسو په ژوَر نظر ورته اوګورئ نو دوی د حکومت غټې عُهدې په شمار يو څو ښځو ته ورکړي ددې څو ښځو نه علاوه يې نورو ښځو ته ټول ذليل کارونه سپارلي .
دوی ښځو ته په هوټلو ، هوائي جهازونو او غټو ګادو کې د پرَدو سړو خوشحالولو خدمت سپارلی چې سړي کله هم او غواړي خپل خواهش ورنه پوره کولې شي .
دوی ښځو ته په سينماګانو او کلبونو کې د بې شرمۍ کارونه سپارلي ، په دفترونو کې يې د سړو د استقبال د پاره مقرر کړي .
دوی ښځو ته په سړکونو باندې د جارو وهلو خدمت سپارلی .
آيا همدا سړو او ښځو ته يو شان حقوق ورکول دي ؟
دوی خو يو څو ښځو ته غټې عُهدې ورکولو سره نورې ټولې ښځې ذليله کړی .

## اسلام ښځو ته ډير عزت ورکړی ، خو مغرب والؤ ښځه ذليله کړه

اسلام ښځو ته ډير مقام ورکړی : ښځو ته يې د عزت لِباس وَرواغوست ، په سَر يې ورله د حياء لوپټه وَر په سَر کړه ، د کور شهزادګۍ يې اوګرځوله ، د قيمتي ملغلرې په شان يې د غلطو خلقو د نظرونو نه محفوظ کړه ، په ميراث کې يې ورته پوره حقوق ورکړل .
ليکن مغرب والؤ ښځه بهر سړکونو ته بربنډه رااُويسته ، په هوټلو او دفترونو کې يې ذليله کړه ، د خپلو خواهشاتو پوره کولو ذريعه يې اوګرځوله ، د خپل تجارت چلولو د پاره يې آله اُوګرځوله ، په خپلو مصنوعاتو باندې يې د ښځو د هر اَندام لغَړ تصويرونه ورکړل چې خلق دا څيز واخلي ، او د ښځو کورنې ژوند يې تباه کړو .

## عجیبه آزادي ؟

مغرب واله وايي چې : " اسلام ښځه په کور کې قید کړی او مونږ ورته آزادي ورکول غواړو " . مونږ ورته وايو چې کله يوه ښځه په خپل کور کې په عزت سره د خپل مور او پلار ، يا د خپل خاوند او بچو خدمت کوي نو ديته تاسو د ښځې قید کیدل ، ذِلت او غلامي وایې خو چې کله تاسو دا د کور نه بهر اُوباسی په دفترونوکې د آفسرانو نَخرې برداشت کوي ، په هوټلو او هوائي جهازونو کې د پردو سرو خدمت کوي ، د هغوی د پاره مېزونه او کمرې صفا کوي ، هغوی ورته د شهوت په نظر ګوري ، جبرًا ورنه خواهشات پوره کوي ، عزت يې تار تار کوي نو بيا دا ستاسو په نزد باندې آزادي او عزت دی .

دا خو عجيبه آزادي ده ؟

آيا آزادي همديته وايي چې تاسو مغرب واله د ښځو نه د حياء جامه لرې کړه او بَربنډه مو کړه ؟ آيا آزادي همديته وايي چې تاسو ښځه په سَرکونو او کوڅو کې ذليله کړه ؟

آيا آزادي همديته وايي چې تاسو د ښځو نه په دفترونو او کارخانو کې د نورو کارونو سره سره خپل خواهشات پوره کوی ؟

آيا آزادي همديته وايي چې تاسو ښځه د خپلو مجالسو نمائش جوړه کړه ؟

آيا آزادي همديته وايي چې تاسو ښځه د کور نه د تجارت مَنډی ته رااُوويسته ؟

دا آزادي خو دې تاسو ته مبارک وي . مونږ مسلمانانو ته د ښځو د داسې آزادۍ هیڅ ضرورت نشته . چې په چا کې معمولي حياء او غيرت وي هغه به هيڅ کله د خپلې لور او خپلې خورد پاره داسې آزادي برداشت نکړي څنګه چې دا مغرب واله غواړي .

## په مُنظمې طريقې سره د ښځو بې پَردې کولو سازش روان دی

يهود او نصارٰی د اوّلې ورځې نه د اسلام دُشمنان دي ، دوی دا کوشش کوي چې په څه طريقې سره اسلام او مسلمانان بَدنام کړي ، د مسلمانانو ښځو نه حياء او غيرت ختم کړي او بې پَردې يې کړي ، ددې د پاره دوی په مُنظمې طريقې سره کار کوي ، د حقوق نسوان په نوم يا د ښځو د آزادۍ په نوم باندې تحريکونه چلوي ، مقصد يې دا وي چې زِنا عامه شي او د مسلمانانو نه حياء او غيرت ختم شي .

د بَدقِسمتۍ نه په اسلامي ملکونو باندې حکمرانان هم اکثره هغه خلق دي چې هغوی ټول تعلیمونه د امریکې او برطانیې په یونیورسټو کې کړي دي ، د هغوی تربیت په بې حیاء معاشره کې شوې وي ، هغوی د اسلامي تعلیماتو نه خبر نه وي ، د هغوی په زړه کې د الله او رسول محبت نه وي ، د شرابو او ګډا په مجلسونو کې خوشحال وي ، نو چې کله داسې خلق د ملک حکمرانان شي نو خامخا به په ملک کې بې حیائي او بې پَردګي خوَروي، بلکې دوی په خپل ملک کې د غیر مسلمو په اِشارې سره داسې اِدارې جوړې کړي دي چې هغوی په مُنظَمې طریقې سره په مختلو غوړو زیړو نومونو باندې ښځې د کورنو نه رااُوبیستې ، د ښځو پَرده یې ختمه کړه ، زِنا یې عامه کړه ، او مخلوط تعلیم یې شروع کړو .

## اسلام ښځو ته پوره حقوق ورکړي

اسلام ښځو ته پوره حقوق ورکړي ، اُصولي لحاظ سره درته اِجمالا یو څو بیانوم :

۱ . اسلام ښځې ته د مور ، خور ، بي بي ، او لور په حیثیت سره اُوچت مقام ورکړی. الله و رسول چې د مور په خدمت باندې ، د خور په احترام باندې ، د بي بي په محبت باندې ، او د لور په ښه تربیت باندې د څومره ثوابونو وعدې کړي هغه په هیچا باندې پټې ندي .

۲ . اسلام د ښځې نان نَفقه ، کپړې ، د اُوسیدو کور د سړي په ذِمه مقرر کړي . په ښځه باندې یې دا بُوج ندې اچولی .

۳ . اسلام د ښځو د دِیني تعلیم و تربیت اهتمام هم کړی ، چې سړي به دوی د داسې اخلاقو او اَعمالو نه بچ کوي چې په هغې سره دوی د جهنم مستحق ګرځي .

الله تعالی فرمایي :

﴿ يَآأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا قُوٓا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ ﴾ . (۱)

ترجمه : اې مؤمنانو ! تاسو خپل ځانونه او خپل کور واله د هغه اُور نه اُوساتئ چې د هغې خشاک ( کافران او ګناهګاران ) خلق ، او کانړي دي .

---

(۱) التحریم آیة ٦ .

حضرت علي ﷺ ددې آيت ﴿ قُوٓا أَنفُسَكُمۡ وَأَهۡلِيكُمۡ نَارٗا ﴾ په تفسير کې فرمايي :
عَلِّمُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمُ الْخَيْرَ . (۱)
تاسو د خېر ( يعنی د دين ) خبرې پخپله هم زده کړئ ، او خپل کور واله ۇ ته يې هم اوښايئ .
بهر حال ، اسلام ښځو ته اُوچت مقام ورکړی : ښځو ته يې د حياء لوپټه وَرپه سَر کړه ، د کور شهزادګۍ يې اوګرځوله ، د قيمتي ملغلرې په شان يې د غلطو خلقو د نظرونو نه محفوظ کړه ، او په ميراث کې يې ورته پوره حقوق ورکړل .

# آيا ښځې نور څه حقوق غواړي ؟

باوجود ددينه چې اسلام ښځو ته پوره حقوق ورکړي خو نن صبا بيا هم د مغربي تهذيب نه متأثره بعضې ښځې دا وايي چې : " مونږ ته دې خپل حقوق راکړې شي "
مونږ ورته دا وايو چې تاسو نور څه حقوق غواړئ ؟
آيا بَربنډ سَر کلاوُ سينې په بازارونو کې ګرځيدل ، او د پرَدو سړو سره په دفترونو او کلبونو کې يو ځای غاړې کيدل غواړئ ؟
آيا په سينماګانو او درامو کې بَربنډ ګډيدل غواړئ ؟
آيا د يو څو روپو په خاطر د پرَدو سړو خواهشات پوره کول غواړئ ؟
آيا په تعليمي ادارو ، دفترونو ، او کارخانو کې د پرَدو سړو سره څنګ په څنګ

---

(۱) رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ فِي قَوْلِهِ قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ قَالَ عَلِّمُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمُ الْخَيْرَ . وَقَالَ الْحَسَنُ تُعَلِّمُهُمْ وَتَأْمُرُهُمْ وَتَنْهَاهُمْ . قَالَ أَبُو بَكْرٍ: وَهٰذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ عَلَيْنَا تَعْلِيمَ أَوْلَادِنَا وَأَهْلِينَا الدِّينَ وَالْخَيْرَ وَمَا لَا يُسْتَغْنَى عَنْهُ مِنَ الْآدَابِ وَهُوَ مِثْلُ قوله تَعَالَى وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا وَنَحْوَ قَوْلِهِ تَعَالَى لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وسلم وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ . وَيَدُلُّ عَلَى أَنَّ لِلْأَقْرَبِ فَالْأَقْرَبِ مِنَّا مَزِيَّةً فِي لُزُومِنَا تَعْلِيمَهُمْ وَأَمْرَهُمْ بِطَاعَةِ اللهِ تَعَالَى وَيَشْهَدُ لَهُ قَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ . وَمَعْلُومٌ أَنَّ الرَّاعِيَ كَمَا عَلَيْهِ حِفْظُ مَنِ اُسْتُرْعِيَ وَحِمَايَتُهُ وَالْتِمَاسُ مَصَالِحِهِ فَكَذَٰلِكَ عَلَيْهِ تَأْدِيبُهُ وتعليمه . وقال صلى الله عليه وسلم فَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلَى أَهْلِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْهُمْ وَالْأَمِيرُ رَاعٍ عَلَى رَعِيَّتِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْهُمْ . احكام القرآن للجصاص ج ۳ ص ۶۲۴ مطلب : يجب علينا تعليم اولادنا واهلينا سورة التحريم آية ۶ .

کیناستل او د هغوی شهوت پوره کول غواړئ ؟

آیا په دې نازک صورت باندې د سړو کارونه په خپله ذِمه اخیستل غواړئ ؟

مونږ نه پوهیږو چې تاسو نور څه حقوق غواړي ؟ د ښځو چې کوم حقوق دي هغه خو اسلام دوی ته ورکړي دي ، لیکن دوی چې دا کوم حقوق غواړي اسلام هیڅ کله ددې اجازت نه ورکوي ، دا خو د غیر مسلمو تهذیب دی .

افسوس چې دا ښځې د غیر مسلمو د ښځو نه عبرت نه اخلي ، هغوی چې کله د کورونو نه بهر دفترونو او کارخانو ته راأووتی نو نن یې ډیر بَد اَنجام دی ، کورنې ماحول یې مکمل تباه دی ، اِطمینان او سکو ن یې نشته ، د یو څو روپو په خاطر هر کس ورنه خپل جِنسي خواهش پوره کولې شي .

## د ښځو د بې پَردګۍ په وجه سړي د سترګو په زِنا کې مبتلاء کیږي

د ښځو د بې پَردګۍ یو نقصان دادی چې ددې په وجه سړي په بَدنظرۍ کې مبتلاء کیږي ، بیا ډیر کرَته ددې بَدنظرۍ په وجه په زړه کې عِشق او غلط خیالات راشي او آخر خبره زِنا ته اُورسي ، په دې ګناه کې ورسره دا ښځې هم شریکې شي ځکه د همدوی په وجه دا سړي په ګناه کې مبتلاء شو . او بَدنظرۍ ته په احادیثو کې د سترګو زِنا ویل شوی .

د بخارې شریف حدیث دی ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي :

فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ . د سترګو زِنا غلط نظر دی .(۱)

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا، أَدْرَكَ ذٰلِكَ لَا مَحَالَةَ. فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ، وَ زِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ، وَالنَّفْسُ تَمَنّٰى وَتَشْتَهِي، وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذٰلِكَ كُلَّهُ وَيُكَذِّبُهُ . صحیح البخاري كِتَابُ الإِسْتِئْذَانِ بَابُ زِنَا الْجَوَارِحِ دُونَ الْفَرْجِ رقم الحدیث ۶۲۴۳ ، صحیح مسلم كتاب الْقَدَرِ بَابُ قُدِّرَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظُّهُ مِنَ الزِّنَا وَغَيْرِهِ رقم الحدیث ۲۰(۲۶۵۷) .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ ، وَاللِّسَانُ يَزْنِي . وَالْيَدَانِ تَزْنِيَانِ، وَالرِّجْلَانِ تَزْنِيَانِ ، وَيُحَقِّقُ ذَلِكَ الْفَرْجُ أَوْ يُكَذِّبُهُ . صحیح ابن حبان مخرجا كِتَابُ الْحُدُودِ بَابُ الزِّنَى وَحَدِّهِ ذِكْرُ إِطْلَاقِ اسْمِ الزِّنَى عَلَى الأَعْضَاءِ إِذَا جَرَى مِنْهَا بَعْضُ شُعَبِ الزِّنَى رقم ۴۴۱۹ ، المعجم الكبير رقم ۸۶۶۱ ، مسند احمد مخرجا رقم ۸۵۳۹

بَدنظری، ته د سترګو زِنا ځکه ویل شوی چې دا کله سبب اوګرځي د زِنا د پاره ، نو مبالغةً ورته د سترګو زِنا ویل شوی .(۱)

د مذکوره حدیث نه معلومه شوه چې پرَدو ښځو ته کتل حرام دي. (۲)

بلکې علماؤ دیته ګناهِ کبیره ویلی. علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللّٰهُ په " الزواجر " کې پرَدو ښځو ته په شهوت سره کتل مستقله ګناهِ کبیره شمار کړی ، او ددې په باره کې یې ډیر احادیث راوړي دي .(۳)

## الله تعالی مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو ته د نظرونو ښکته کولو حکم کړی

په قرآن کریم کې الله جَلَّ جَلَالُهُ مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو ته د نظرونو ښکته کولو حکم کړی

﴿ قُلْ لِّلْمُؤْمِنِیْنَ یَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَیَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ؕ ذٰلِكَ اَزْكٰی لَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِیْرٌۢ بِمَا یَصْنَعُوْنَ ۝ وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ یَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَیَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ ﴾ . (۴)

ترجمه : اې پیغمبره ! ته مؤمنانو سړو ته اُووایه چې خپلې سترګې ( نظرونه ) ښکته ساتي ، او د خپلو شرمګاهو حفاظت دې کوي ، دا ددوی د پاره ډیره پاکیزه (او بهتره ) خبره

---

(۱) ( فَزِنَا الْعَیْنِ النَّظَرُ ) لِأَنَّ النَّظَرَ قَدْ یَجُرُّ إِلَی الزِّنَا فَتَسْمِیَةُ مُقَدِّمَةِ الزِّنَا بِالزِّنَا مُبَالَغَةٌ . أَوْ إِطْلَاقٌ لِلْمُسَبِّبِ عَلَی السَّبَبِ . مرقاة المفاتیح ج ۱ ص ۱۵۸ رقم الحدیث ۸۶ .

(۲) « فَزِنَی الْعَیْنِ النَّظَرُ » . فَإِطْلَاقُ اسْمِ الزِّنَی عَلَی نَظَرِ الْعَیْنِ إِلَی مَا لَا یَحِلُّ دَلِیلٌ وَاضِحٌ عَلَی تَحْرِیمِهِ وَالتَّحْذِیرِ مِنْهُ . وَالْأَحَادِیثُ بِمِثْلِ هٰذَا كَثِیرَةٌ مَعْلُومَةٌ . وَمَعْلُومٌ أَنَّ النَّظَرَ سَبَبُ الزِّنَی فَإِنَّ مَنْ أَكْثَرَ مِنَ النَّظَرِ إِلَی جَمَالِ امْرَأَةٍ مَثَلًا قَدْ یَتَمَكَّنُ بِسَبَبِهِ حُبُّهَا مِنْ قَلْبِهِ تَمَكُّنًا یَكُونُ سَبَبَ هَلَاكِهِ . وَالْعِیَاذُ بِاللّٰهِ . فَالنَّظَرُ بَرِیدُ الزِّنَی .
اضواء البیان في ایضاح القرآن بالقرآن ج ۵ ص ۵۱۰ سورة النور آیة ۳۱ .

(۳) علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي : اَلْكَبِیرَةُ الثَّانِیَةُ وَالْأَرْبَعُونَ وَالثَّالِثَةُ وَالْأَرْبَعُونَ وَالرَّابِعَةُ وَالْأَرْبَعُونَ بَعْدَ الْمِائَتَیْنِ : نَظَرُ الْأَجْنَبِیَّةِ بِشَهْوَةٍ مَعَ خَوْفِ فِتْنَةٍ ، وَلَمْسُهَا كَذٰلِكَ . وَكَذَا الْخَلْوَةُ بِهَا بِأَنْ لَمْ یَكُنْ مَعَهُمَا مَحْرَمٌ لِأَحَدِهِمَا یَحْتَشِمُهُ ، وَلَوْ اِمْرَأَةٌ كَذٰلِكَ وَلَا زَوْجَ لِتِلْكَ الْأَجْنَبِیَّةِ ... الزواجر عن اقتراف الكبائر ج ۲ ص ۳ .

(۴) النور آیة ۳۰ .

ده ، بیشکه الله تعالی د خلقو په هغه کارونو ښه خبردار دی کوم چې دوی کوي .) او ته مؤمنانو ښځو ته اُووایه چې دوی دې خپلې سترګې (او نظرونه) ښکته ساتي ، او د خپلو شرَمګاهو حفاظت دې کوي .

**د آیت تشریح :** په دې آیت کې الله تعالی مؤمنانو ته د نظرونو ښکته کولو حکم کړی .

د نظرونو ښکته کولو مطلب دادی چې هغه ځایونو ته اُو نه ګوري کومو ته چې شریعت کتل حرام کړي دي . (۱)

علامه ابن حبان رَحِمَهُ اللهُ هم ددې تفسیر دا کړی چې پرَدی ښځې ته په خراب نظر سره کتل حرام دي ، او هسې ورته (بِلا ضرورت) کتل مکروه دي . (۲)

د شرمګاهو د حفاظت مطلب دادی چې په هغه ځای کې شهوت پوره نکړي چې هلته شریعت ده ته شهوت پوره کول حرام کړي وي ، په دې کې زِنا ، لِواطت ، او مُشت زَني (موټې وهل) ټول داخل دي .

ددې آیت نه معلومه شوه چې په حرامې طریقې سره شهوت پوره کول او ددې ټول اَسباب حرام دي ، خو په دې آیت کې الله تعالی ددې اِبتداء او اِنتهاء واضحه کړه او دا مینځني اَسباب په کې پخپله داخل شو .

ځکه په حرامې طریقې سره د شهوت پوره کولو اوّلنې سبب بَدنظري ده او آخرنې سبب یې زِنا ده چې دا په دې آیت کې صریح ذکر شو ، او مینځني اسباب لکه د پرَدی ښځې سره خبرې کول ، لاس وَروړل وغیره په کې پخپله داخل شو . (۳)

حضرت عبیده فرمایي : كُلُّ مَا عُصِيَ اللهُ بِهِ فَهُوَ كَبِيْرَةٌ . وَقَدْ ذَكَرَ الطَّرَفَيْنِ . .

---

(۱) ( يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ ) أَيْ: عَنِ النَّظَرِ إِلَى مَا لَا يَحِلُّ النَّظَرُ إِلَيْهِ . تفسير البغوي ج ۳ ص ۴۰۱ .

( يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ ) هٰذَا أَمْرٌ مِنَ اللهِ تَعَالَى لِعِبَادِهِ الْمُؤْمِنِيْنَ أَنْ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ عَمَّا حَرَّمَ عَلَيْهِمْ . فَلَا يَنْظُرُوْا إِلَّا إِلَى مَا أَبَاحَ لَهُمُ النَّظَرَ إِلَيْهِ . وَأَنْ يَغُضُّوْا أَبْصَارَهُمْ عَنِ الْمَحَارِمِ . تفسير ابن كثير ج ٦ ص ۳۸ سورة النور آية ۳۰ .

(۲) تفسير معارف القرآن سورة النور آية ۳۰ .

(۳) تفسير معارف القرآن سورة النور آية ۳۰ .

په کوم څيز سره چې د الله ﷻ د حکم نافرماني کيږي هغه ګناه کبيره ده ، او په دې آيت کې الله تعالی دواړه طرفونه ذکر کړل ( چې اول يې بَدنظري ده ، او آخر يې زِنا ده ) . (۱)

## بَدنظري د شيطان زَهريله غشې دی

بد نظري د شيطان زهريله غشې دی ددې په وجه مسلمانان په ډيرو ناجائزو کارونو کې مبتلاء کيږي . حديثِ قدسي دی ، الله تعالی فرمايي :

إِنَّ النَّظْرَةَ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيْسَ مَسْمُوْمٌ ، مَنْ تَرَكَهَا مَخَافَتِيْ أَبْدَلْتُهُ إِيْمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِيْ قَلْبِهِ . (۲)

بيشکه بَدنظري د ابليس په غشو کې زهريله غشې دی ، څوک چې زما د يَرې دا پريږدي نو زه به ورته ددې په عِوض کې داسې اِيمان ورکړم چې دا به په خپل زړه کې د هغې خوږوالي محسوسوي .

**په بَدنظرۍ سره د شيطان طمع پيدا کيږي** : حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمايي :

مَا كَانَ مِنْ نَظْرَةٍ فَلِلشَّيْطَانِ فِيْهَا مَطْمَعٌ ، وَالْإِثْمُ حَوَازُّ الْقُلُوْبِ .

کوم نظر چې غلط استعمال شي ( يعنې پرَدو ښځو ته اُوکتل شي ) نو د شيطان په دې کې طمع وي ، او ګناهونه په زړونو باندې تسلّط حاصلوي . (۳)

---

(۱) تفسير ابن كثير ج ٦ ص ٣٩ سورة النور آية ٣٠ .

(۲) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ١٠٣٦٢ ، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ٣٨ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ١٢٩٤٦ باب غضّ البصر ، كنز العمال رقم الحديث ١٣٠٦٧ ، تفسير ابن كثير ج ٦ ص ٤٠ سورة النور في تشريح آية ٣٠ ، اعراب القرآن وبيانه ج ٦ ص ٥٩٧ ، الزواجر ج ٢ ص ٤ .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « اَلنَّظْرَةُ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيْسَ مَسْمُوْمَةٌ فَمَنْ تَرَكَهَا مِنْ خَوْفِ اللهِ أَثَابَهُ جَلَّ وَعَزَّ إِيْمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِيْ قَلْبِهِ » المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ٧٨٧٥ وقال الحاكم : هَذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ ، حلية الاولياء ج ٦ ص ١٠١ ، كنز العمال رقم الحديث ١٣٠٧٦ .

(۳) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ٨٧٤٩ ، مجمع الزوائد كِتَابُ الْعِلْمِ بَابٌ فِي الْبِرِّ وَالْإِثْمِ رقم الحديث ٨١٩ وقال الهيثمي : رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ كُلَّهُ بِأَسَانِيْدَ رِجَالُهَا ثِقَاتٌ . صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ١٩٠٧(٨) كتاب النكاح وما يتعلق به ، شعب الايمان رقم الحديث ٥٠٥١ ، الزهد لابي داؤد رقم الحديث ١٢٥ ، كنز العمال رقم الحديث ٧٣٢٠ .

## قصدًا پرَدی ښځې ته کتونکي باندې د الله ﷻ لعنت راوريږي

څوک چې بِلا عُذره قصدًا پرَدی ښځې ته ګوري نو په داسې کس باندې د الله تعالی لعنت راوريږي ، او کومه ښځه چې قصدًا بِلاضرورته پرَدو سړو ته خپل زِينت ښکاره کوي نو په داسې ښځه هم د الله تعالی لعنت راوريږي .

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي : لَعَنَ اللهُ النَّاظِرَ وَالْمَنْظُوْرَ إِلَيْهِ . (۱)

الله تعالی په کتونکي باندې او څه ته چې کتلې شي په هغوی باندې لعنت ليږلې دی .

يعنی کوم کس چې بِلاعُذره پرَدی ښځې ته يا بل هغه ځای ته ګوري چې شريعت هغې ته کتل حرام کړي وي نو په داسې سړي د الله تعالی لعنت وي ، همدارنګې کومه ښځه چې قصدًا بِلا عُذره پرَدو سړو ته خپل ښائست ښکاره کوي نو په دې باندې هم د الله ﷻ لعنت راوريږي . (۲)

ددينه معلومه شوه چې کومه ښځه بازار ته بې پَردې لاړه شي او ديته کوم کس بِلاعُذره قصدًا ګوري نو په دې دواړو باندې د الله تعالی لعنت راوريږي .

همدارنګې که غير مَحرَم کس کور ته ننوځي او زَنانه ورنه پَرده نه کوي ، دواړه يو بل ته ګوري نو په دوی باندې هم د الله ﷻ لعنت راوريږي ؛ ځکه په دې حديث کې د قاعده ګليه په طور باندې هر حرام نظر مستحق د لعنت ګرځول شوی . (۳)

په فتاوی محموديه کې ذکر دي چې پرَدی ښځې ته د شهوت په نظر سره کتل حرام دي ځکه دا د سترګو زِنا ده ، ددينه توبه ويستل په کار دي ، او څوک چې ددينه توبه نه اُوباسي نو دا په ګناه باندې اِصرار کول دي ( او په کومه ګناه باندې چې اِصرار اوشي نو هغه ګناه

---

(۱) شعب الايمان رقم الحديث ۷۳۹۹ ، مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النظر إِلَى الـمخطوبة وَبَيَان العورات اَلْفَصْل الثالث رقم الحديث ۳۱۲۵(۲۸) ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۳۵٦٦ ، كنز العمال رقم الحديث ۱۹۱٦۲ ،۰ رقم الحديث ۲٦٦۳۴ .

(۲) ( لَعَنَ اللهُ النَّاظِرَ ) أَيْ بِالْقَصْدِ وَالإِخْتِيَارِ ( وَالْمَنْظُوْرَ إِلَيْهِ ) أَيْ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ وَاضْطِرَارٍ . وَحُذِفَ الْمَفْعُوْلُ لِيَعُمَّ جَمِيْعَ مَالَا يَجُوْزُ النَّظَرُ إِلَيْهِ تَفْخِيْمًا لِشَأْنِهِ . مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۹ في تشريح حديث ۳۱۲۵

(۳) شرعي پرده لمولانا عاشق الهي بلند شهري ص ۵۳ .

کبیره ګرځي) . (۱)

## کومې ښځې چې دینې مدرسو ته ځي هغوی دې هم د پَردې اهتمام کوي

اول په دې خبره باندې ځان پوهه کړئ چې د ښځې د پاره څلور یا پنځه کاله نِصاب ویل او ځان عالِمه کول نه فرض دي او نه واجب ، بلکې په ښځه باندې صرف ضروري تعلیم فرض دی ، دا پوره نِصاب ویل صرف جائز دی ، خو ددې د پاره هم دا ضروري ده چې په پَرده کې به ځي ، مخ او لاسونه به نه ښکاره کوي .

اوس که یوه زَنانه مدرسې ته د تللو په وخت پَرده نه کوي یا نور خلافِ شرع کارونه کوي نو بیا مدرسې ته نه تلل افضل دي ، دغه وجه ده چې شریعت بار بار ښځې ته په کور کې د پاتې کیدو حکم کړی ، الله تعالی فرمایي :

﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ ﴾ . (۲)

ترجمه : او تاسو په کورونو کې اُوسئ ، او د رومبي جاهلیت (د زمانې) په شان ښائست مه ښکاره کوئ .

او نبي علیه السلام هم په کور کې د ښځې د پاره مونځ کول افضل ګرځولی . (۳)

تاسو دیته سوچ اوکړئ چې مونځ یو فرضي عبادت دی خو بیا هم شریعت ښځې ته حکم کړی چې دا څومره په پټ ځای کې اوکړي نو ډیر افضل دی .

(۱) وكلّ معصيةٍ اصرّ عليه العبدُ فهي كبيرةٌ ، وكلّ ما استغفر عنها فهي صغيرةٌ . شرح العقائد النسفية مع النبراس ص ۲۲۵ بحث الكبيرة والصغيرة . فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۸۳ .

(۲) الاحزاب آية ۳۳ .

(۳) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِيْ بَيْتِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِيْ حُجْرَتِهَا . وَصَلَاتُهَا فِيْ مَخْدَعِهَا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهَا فِيْ بَيْتِهَا . سنن ابي داؤد كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ التَّشْدِيْدِ فِيْ ذَلِكَ (اى فِيْ خُرُوْجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسْجِدِ) رقم الحديث ۵۷۰ قال الالباني: صحيح . مشكوة المصابيح كتاب الصَّلَاة بَاب الجَمَاعَة وفضلها الفَصل الثَّاني رقم الحديث ۱۰۶۳(۱۲) ، صحيح ابن خزيمة رقم الحديث ۱۶۹۰ ، و رقم الحديث ۱۶۸۸ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۹۱۰۱ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۹۴۸۲ ، المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۵۷ وقال الحاكم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . ووافقه الذهبي ، السنن الكبرى للبيهقي رقم ۵۳۶۱ ، شرح السنة للبغوي رقم ۸۶۵ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۲۱۰۹ .

نو د ښځې د پاره څلور یا پنځه کاله نِصاب ویل او پوره عالِمه جوړیدل خو نه فرض دي او نه واجب ، بلکه زیات نه زیات مستحب یا فرضِ کفایه دي ، اوس دیته د تللو په وخت بې پردګي کول یا خلافِ شرع کارونه کول به څنګه جائز شي ؟

دغه وجه ده چې بعضې اکابرینو به د بَناتو مدارس نه خوښول .

خو کومو اکابرینو چې د بَناتو مدارس شروع کړي دي د هغوی مقصد دادی چې کله ښځه اسلامي تعلیم حاصل کړي نو دا به آئنده د خپل اَولاد صحیح اسلامي تربیت اوکړي او خپل کور به د اسلامي اصولو مطابق اُوچلوي .

لیکن چې کومې ښځې مدرسې ته د تللو په وخت پخپله د اسلامي اصولو لحاظ نه ساتي ، پَرده نه کوي ، یا په کور کې د خپل مور او پلار خدمت نه کوي نو دا به آئنده څه په دې باندې عمل اوکړي ؟ یا د دې تعلیم څه فائده ده ؟

لهذا کومې ښځې چې مدرسو ته ځي د هغوی د پاره هم د پَردې ډیر اِهتمام په کار دی ، که دوی پَرده اونکړي نو د دوی سزا د نورو ښځو په نسبت زیاته ده ؛ ځکه عامې ښځې کیدې شي د پَردې د اَهمیت نه خبرې نه وي او دوی خو ښه خبرې وي نو چې پَرده نه کوي سزا به یې نوره هم زیاته وي .

په یو روایت کې راځي : وَيْلٌ لِلْجَاهِلِ مَرَّةً ، وَوَيْلٌ لِلْعَالَمِ سَبْعَ مَرَّاتٍ . (۱)

جاهل ( چې غلطي اوکړي نو دده ) د پاره یو پیره هلاکت دی او عالِم ( چې غلطي اوکړي نو دده ) د پاره اُووه (۷) پیرې هلاکت دی .

## د بالِغ سړي بالغو جینکو ته د دَرس ورکولو حکم

په فتاوی عثمانیه کې ذکر دي : په دې کې هیڅ شک نشته چې بل ته قرآن کریم خودل یا بل ته یادول د ثواب کار دی ، د سړو په شان ښځو له هم قرآن کریم زده کول په کار دي خو د ښځو په تعلیم کې ډیر اِحتیاط په کار دی ، او د اِحتیاط تقاضا داده چې د ښځو د تعلیم د پاره ښځه اُستاذه مقرر شي .

(۱) مرقاة المفاتيح ج ۸ ص ۳۲۲۱ بَابُ الأَمْرِ بِالتَّعَزُّرِ في تشريح حديث ۵۱۲۹ ، و ص ۳۲۵۴ ، و ج ۱ ص ۲۹۷ ، و ص ۳۳۴ ، و ج ۷ ص ۳۱۰۶ .

خو که چیرته ښځه اُستاذه نه پیدا کیده نو بیا د ضرورت په وجه سړی مقررول جائز دي خو ددې د پاره دا شرائط دي چې : دا کس به عُمر رسیده مُتقي او پرهیزګار وي ، د هیڅ قسمه بې اِحتیاطۍ او فِتنې یَره به ورنه نه وي ، د اُستاذ او طالباتو په مینځ کې به مضبوطه پَرده وي ، هیڅ کله به اُستاذ او طالبه ځانله نه یو ځای کیږي ، طالباتې به ددې اُستاذ د وړاندې بِلاضرورته خبرې نه کوي . پس که دا شرائط برابر وي نو بیا بالغو جینکو ته بالغ سړې دَرس ورکولې شي .

امام نووي رحمه الله څه احادیث ذکر کړي ، د هغې نه پس فرمایي :

وَ فِيْ هٰذِهِ الْأَحَادِيْثِ اِسْتِحْبَابُ وَعْظِ النِّسَاءِ ، وَتَذْكِيْرِهِنَّ الْآخِرَةَ ، وَأَحْكَامَ الْإِسْلَامِ ، وَحَثِّهِنَّ عَلَى الصَّدَقَةِ ، وَهٰذَا إِذَا لَمْ يَتَرَتَّبْ عَلٰى ذٰلِكَ مَفْسَدَةٌ وَخَوْفٌ عَلَى الْوَاعِظِ أَوِ الْمَوْعُوْظِ أَوْ غَيْرِهِمَا . (۱)

ددې احادیثو نه معلومیږي چې ښځو ته وعظ کول ، هغوی ته آخرت رایادول ، هغوی د اسلام د احکامو نه خبرول او هغوی ته د صدقې ترغیب ورکول مستحب دي ، خو شرط دادی چې ددینه څه فساد نه پیدا کیږي . همدارنګې واعظ د پاره ، چاته وعظ کولې شي هغه د پاره او د دوی نه علاوه د بل چا د پاره په فِتنه کې د مبتلاء کیدو یَره نه وي . (۲)

## پردې جینۍ ته په ځانله کمره کې ټیوشن کول ناجائز دي

پَردې ځوانې جینۍ ته په ځانله کمره کې ټیوشن کول ، او د هغې سره ګپ شپ لګول ناجائز دی ، ځکه ددینه فِتنه پیدا کیږي . بزرګانو به ددې په باره کې ډیره سختي کوله :

**د جُنید بغدادي رَحِمَهُ اللّٰهُ قول :** جُنید بغدادي رَحِمَهُ اللّٰهُ ډیر لوی بزرګ تیر شوې دی ، دده نه چا پوښتنه اوکړه چې : آیا پَردې سړی پَردې ښځې ته سبق خودلې شي ؟ دده ورته ووئیل : که چیرته سبق خودونکی لوی بزرګ " بایزید بسطامي رَحِمَهُ اللّٰهُ " وي ، زده کوونکې ښځه لویه بزرګه " رابعه بصریه " وي ، په کوم ځای کې چې ورته سبق خودلې شي دا بیتُ الله وي ، او څه چې ورته خودلې شي هغه قرآن کریم وي خو بیا هم

(۱) شرح النووي على مسلم ج ٦ ص ۱۷۲ کتاب الجمعة في تشریح حدیث ۱ (۸۸۴)

(۲) فتاوی علمانیه ج ۱۰ ص ۹٦ الحجاب .

ددې اجازت نشته.

تاسو اوس پخپله سوچ اوکړئ چې په دې دَور کې اُستاذ خو د بایزید بسطامي په شان لوي بزرګ نشي کیدی، او ښځه د رابعه بصریه په شان بزرګه نشي جوړیدی خو بیا هم چې جُنید بغدادي رَحِمَهُ اللهُ د دوی په شان بزرګانو ته اجازت ورکول خوښ نکړل نو اوس به د نورو د پاره څنګه جائز شي؟

په احادیثو کې ذکر دي، چې حضرت اُمّ حُمَید رَضِيَ اللهُ عَنهَا نبي علیه السلام ته راغله او ورته وې ویل: يَارَسُوْلَ اللهِ! إِنِّيْ أُحِبُّ الصَّلَاةَ مَعَكَ.

اې د الله رسوله! زه د تاسو سره (په مسجدِنبوي کې په جَمعې سره) مونځ کول خوښوم. نبي علیه السلام ورته اوفرمایل:

قَدْ عَلِمْتُ أَنَّكِ تُحِبِّيْنَ الصَّلَاةَ مَعِيْ، وَصَلَاتُكِ فِيْ بَيْتِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ حُجْرَتِكِ، وَصَلَاتُكِ فِيْ حُجْرَتِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ دَارِكِ، وَصَلَاتُكِ فِيْ دَارِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ مَسْجِدِ قَوْمِكِ، وَصَلَاتُكِ فِيْ مَسْجِدِ قَوْمِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ مَسْجِدِيْ.

ما ته معلومه ده چې ته د ما سره مونځ کول خوښوی خو ستا هغه مونځ چې ته یې د کور په کمره کې دَننه اوکړې دا ستا د پاره د هغه مونځ نه ډیر بهتر دی کوم چې ته په بهر کمره کې اوکړې (کومه چې د صحن سره نزدې وي)، او ستا هغه مونځ چې ته یې د صحن سره متّصل کمره کې اوکړې دا د هغه مونځ نه ډیر بهتر دی کوم چې ته د کور په صحن کې اوکړې، او ستا هغه مونځ چې ته یې د کور په صحن کې اوکړې دا د هغه مونځ نه ډیر بهتر دی چې ته یې د خپل قوم (او قبیلې) په جُما کې اوکړې، او ستا د پاره د خپل قوم په جُمات کې مونځ کول زما په جُمات (مسجدِ نبوي) کې د مونځ کولو نه ډیر بهتر دی.

راوي د حدیث وایي چې اُمّ حُمَید رَضِيَ اللهُ عَنهَا (چې د نبي علیه السلام دا خبرې واوریدی نو دې) حکم اوکړو، او ددې د پاره د کور په دَننه آخري تیاره حصه کې د مانځه د پاره ځای جوړ کړې شو فَكَانَتْ تُصَلِّيْ فِيْهِ حَتّٰى لَقِيَتِ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ.

دې به همیشه په دې دَننه کمره کې مونځ کول تر دې چې د الله ﷻ سره یې ملاقات اوشو. (یعنی تر د وفاته پورې بهر جُمات ته لا نه ړه بلکه په همدې محفوظ ځای کې یې مونځ

کولو ) . (۱)

**عبرت** : تاسو اوس پخپله سوچ اوکړئ چې د اُمّ حُمَيد رَضِيَ اللهُ عَنها په زړه کې د دِين څومره لويه جَذبه وه ، او يقيني چې دا به ډير لوي سعادتوُ چې چا به په مسجدِنبوي کې د نبي عليه السلام پسې شاته فرض مونځ په جَمعي سره اداء کړو ، خو بيا هم نبي عليه السلام هغې ته نصيحت اوکړو چې ستا د پاره په کور کې مونځ کول ډير بهتر دی .

نو اوس به څنګه د بل ځوان کس د پاره دا جائز شي چې هغه د ځواني جينۍ سره په بنده کمره کې ځانله ناست وي ، هغې ته ټيوشن کوي ( سبق ورته ښائي ) ، يو بل ته نيغ نيغ ګوري او خبرې ورسره کوي ؟ آيا ددينه به فِتنه نه پيدا کيږي ؟ ضرور به پيدا کيږي .

ددې خو داسې مثال دی لکه اُوړې لبوه او کمزوري ګډه چې ځانله په کمره کې بند کړی نو خامخا به ورته نقصان رسوي .

نن چې د ځوانانو اُستاذانو ځوانانو جينکو ته په کورونو کې د ټيوشن کولو نه څومره د بې شرمۍ واقعات پيدا کيږي په هغې باندې ټول خلق خبر دي خو هسې سترګې رياندې پټوي .

## په پَرده داره او بې حياء ښځه کې فرق

پَرده داره او بې پَردې ښځه کې ډير غټ فرق دی : ځکه پَرده داره ښځه حياناکه ، پاکدامنه او مُعزّزه وي او بې پَردې ښځه بې حياء پليته او سپکه وي .

---

(۱) عَنْ أُمِّ حُمَيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنها امْرَأَةِ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ رضي الله عنه ، أَنَّهَا جَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ ! إِنِّي أُحِبُّ الصَّلَاةَ مَعَكَ . قَالَ : « قَدْ عَلِمْتُ أَنَّكِ تُحِبِّينَ الصَّلَاةَ مَعِي، وَصَلَاتُكِ فِي بَيْتِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي حُجْرَتِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِي حُجْرَتِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِي دَارِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِي دَارِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِي » ، قَالَ : فَأَمَرَتْ فَبُنِيَ لَهَا مَسْجِدٌ فِي أَقْصَى شَيْءٍ مِنْ بَيْتِهَا وَأَظْلَمِهِ ، فَكَانَتْ تُصَلِّي فِيهِ حَتَّى لَقِيَتِ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۷۰۹۰ ، صحيح ابن خزيمة رقم الحديث ۱۶۸۹ باب اختيار صلاة المرأة في حجرتها ... ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۲۲۱۷ ذِكْرُ البَيَانِ بِأَنَّ صَلَاةَ الْمَرْأَةِ كُلَّمَا كَانَتْ أَسْتَرَ كَانَ أَعْظَمَ لِأَجْرِهَا ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۲۱۰۶ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۳۴۰(۱) ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها .

پَرده داره ښځه په کور کې د قیمتي ملغلرې په شان محفوظه وي او بې پَردې ښځه په سینماګانو هوټلو او پارکونو کې ذلیله او رَسوا وي.

پَرده داره ښځه غیرتي وي او بې پَردې ښځه د بې غیرتۍ او بې حیایۍ په آخري دَرجې باندې ولاړه وه.

پَرده داره ښځه په خپله هم د ګناهونو نه محفوظ وي او د نورو خلقو د ګناهونو سبب هم نه ګرځي او بې پَردې ښځه پخپله هم ګناهګاره وي او نور خلق هم د سترګو په زِنا کې مبتلاء کوي.

پَرده داره ښځه په اِطمینان او سکون سره ژوند تېروي او بې پَردې ښځه په ټینشَن کې مبتلاء وي.

## د غونډ تقریر خلاصه:

د غونډ تقریر خلاصه دا رااُووته چې په اسلام کې د زَنانهٔ د پاره د پَردې ډیر فضائل او فوائد بیان شوي:

په پَردې کولو سره د الله او رسول د حکم تابعداري راځي، پَرده کول د زړونو د پاکوالي ذریعه ده، د اِیمان تقاضا ده، د ښځې د پاره حیاء عِفّت او پاکدامني ده، د زِنا او لاَعلاجه مرضونو ختمیدو ذریعه ده، پَرده کول د غیرت موافق ده، د نسب د حفاظت ذریعه ده، د شیطاني وَسوسو نه د حفاظت ذریعه ده، د اَصیلو ښځو علامه ده، ددینه علاوه د پَردې نور ډیر فضائل هم ذکر شوي.

همدارنګې په اسلام کې د بې پَردګۍ ډیرې سزاګانې او نقصانات هم ذکر شوي:

بې پَردګۍ سره د الله او رسول د حکم مخالفت راځي، بې پَردګي ښکاره ګناه او ښکاره بغاوت دی، د بې پَردګۍ په وجه زَنانه د جنت نه محرومه کیږي او د جهنم مستحقې ګرځي، په داسې ښځو باندې لعنت ویل شوی، بې پَردګي ګناهِ کبیره او رَسوائي ده، په دې سره ښځه ذلیله کیږي، بې پَردګي د شِرک نه پس لویه فِتنه ده، په دې سره د شیطان تابعداري راځي، پَرده نه کوونکې زَنانه بدترینې ښځې او منافقانې دي، د بې پَردګۍ په وجه زَنانه په عذابِ قبر کې مبتلاء کیږي، بې پَردګي د قیامت په ورځ ظُلمت دی، په دې سره په معاشره کې بې حیائي خوَریږي، بې غیرَتي پیدا کیږي، ښځه د اسلامي آدابو نه محرومه

کیږي ، ښځې ډیرې طلاقیږي ، او د زَنانهٔ د بې شرمۍ مختلف واقعات رامینځ ته کیږي ، د بې پَردګۍ په وجه کورنۍ نِظام مکمل تباه کیږي .

نن صبا چې مغربي تهذیب واله د آزادۍ کومه نعره اُوچتوي دا هسې دُهوکه ده ، ځکه اسلام ښځې ته ډیر عزت ورکړی او مغرب والهٔ ښځه ذلیله کړې ده .

لهذا زَنانهٔ ته د پَردې ډیر اِهتمام په کار دی ، بیا خاصکر په بې پَردګۍ سره سړي د سترګو په زِنا یعنی بَدنظرۍ کې مبتلاء کیږي چې دا ځانله خطرناکه ګناه ده .

**بې پَردګي د ټولو مفاسدو جَرړه ده** : کهمونږ د قرآن کریم ، احادیثو او تاریخ په رڼا کې اوګورو نو دا به راته معلومه شي چې بې پَردګي د ټولو مفاسدو جَرړه ده ، او د ټولو شرونو دروازه ده ؛ ځکه اسلام چې کوم کار حرام کړې وي په هغې کې به خامخا ډیر نقصانات او مفاسِد وي .

## دُعا

الله تعالی دې د مسلمانانو زَنانهٔ په زړونو کې د پَردې اَهمیت پیدا کړي ، د بې پَردګۍ او بې حیایۍ نه دې محفوظ اُوساتي .

ربِّ کریم دې زمونږ د ټولو په زړونو کې د اسلامي احکاماتو قدر پیدا کړي چې د شریعت هر حکم بې د چُون و چرا اُومنو .

یَا اِلٰهَ الْعَالَمِیْنَ ! مونږ ټول د بې حیایۍ او فحاشۍ د سیلاب نه اُوساته ، او څوک چې په دې کې اَخته دي ته ورته د توبې توفیق نصیب کړه .

یا الله ! په مسلمانانو زَنانهٔ باندې د حیاء او عزت څادر واچوه ، د فحاشۍ او بې حیایۍ نه یې محفوظ اوساته .

اې ربه ! مونږ ټولو ته په صحیح طریقې سره د خپل محبوب " محمّدٌ رّسولُ الله صلی الله علیه وسلم " اِتباع رانصیبه کړه ، او د غیر مسلمو د اِتّباع نه مو اُوساته .

آمِیْن یَا رَبَّ الْعَالَمِیْن .

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

﴿ وَقَرۡنَ فِىۡ بُيُوۡتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجۡنَ تَبَرُّجَ الۡجَاهِلِيَّةِ الۡاُوۡلٰى ﴾

الاحزاب آية ۳۳.

# ښځو د پاره د کور نه د بهَر وتلو شرائط او آداب

تاليف


اَبُو الشَّمۡس مولانا نُوۡرُ الۡهُدٰى عُفِيَ عَنۡهُ

مُدَرِّس دَارُ العلوم فيض القُرآن اكاخيل كالونى مردان

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# ښځو د پاره د کور نه د بهر وتلو شرائط او آداب

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَحْدَهٗ ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مَنْ لَّا نَبِيَّ بَعْدَهٗ ، وَلَا رَسُوْلَ بَعْدَهٗ ، وَهُوَ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ ، وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ أَجْمَعِيْنَ ، وَعَلٰى مَنْ تَبِعَهٗ وَتَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ ،

اَمَّا بَعْدُ فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ :

﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى ﴾ . (۱)

وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ إِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ . (۲)

صَدَقَ اللهُ الْعَظِيْمُ .

## زنانه به په پَرده کې اُوسیږي

زما خوږو قدرمنو او عزت مندو مسلمانانو ورونو ! د زَنانهٔ د پاره د پَرْدو سره نه پَرده فرض ده . (۳)

ځکه د دې ثبوت د قرآن کریم د صریحو آیتونو ، متواترو صریحو احادیثو ، اِجماعِ اُمت او قیاس نه شوی .

(۱) الاحزاب آية ۳۳ .

(۲) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ وقال الترمذي : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ . قال الالباني : صحيح . مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النظر إِلَى الْمَخطوبة وَبَيَانِ العورات اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۱۰۹(۱۲) ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۷٦۱٦ ، كنزالعمال رقم الحديث ۴۵۰۴۵ ، صحيح الترغيب والترهيب كتاب الصلاة ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها رقم الحديث ۳۴٦(۷) .

(۳) فتاوی محموديه ج ۲۸ ص ۷۵ پرده کا ثبوت اور اس کا وجوب ، بدائع الصنائع ج ۵ ص ۱۲۱ كتاب الاستحسان ، الفقه الحنفي و ادلته ج ۲ ص ۳۸۷ كتاب الحظر والاباحة . زيلعي ج ٦ ص ۱۷ كتاب الكراهية فصل في النظر والمس .

الله تعالی زَنانه وُ ته په کور کې د پاتې کیدو حکم کړی :

﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى ﴾ .(۱).

ترجمه : او تاسو په کورونو کې اُوسئ ، او د رومبي جاهلیت (د زمانې ) په شان ښائست مه ښکاره کوئ .

د مذکوره آیت نه د پَردې په باره کې دوه خبرې معلومې شوی :

اول دا چې الله تعالی دا غواړي چې زَنانه دې بغیر ضرورته د کور نه بهَر نه راأوځي ، او په شریعت کې اصلي پَرده هم د کورونو پَرده ده .

دویم دا چې که زَنانه د کور نه د څه ضرورت د پاره بهر راأوځي نو د زِینت سره دې نه راأوځي بلکه بُرقع یا لوي پروني دې په سَر کړي .(۲)

ځکه کله چې زَنانه بې پَردګۍ سره أووځي نو شیطان ددې په ذریعه خلق ګمراه کوي .

رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ .(۳)

ښځه عورت دی ( یعنی په پَرده کې د اُوسیدو څیز دی ) ، کله چې دا د پَردې نه بهَر أووځي نو شیطان یې د سړو په نظر کې ښائسته ښکاره کوي .

البته د ضرورت په وخت بهر وتلې شي خو ددې د پاره څه شرائط او آداب دي کوم چې د قرآن کریم او احادیثو نه معلومیږي .

د هغه شرائطو ذکر کولو نه مخکې درته دا بله مسئله واضح کوم

---

(۱) الاحزاب آية ۳۳ .

(۲) تفسیر معارف القرآن سورة الاحزاب في تشریح آية ۳۳ .

(۳) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ ,وقال الترمذي: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. قال الالباني: صحيح. مشكوة المصابيح كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ إِلَى الْمَخْطُوبَةِ وَبَيَانِ الْعَوْرَاتِ اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۱۰۹(۱۲) ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۷۶۱۶ ، كنز العمال رقم الحديث ۴۵۰۲۵ ، صحيح الترغيب والترهيب كتاب الصلاة ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها رقم الحديث ۳۴۶(۷) .

# د ضرورت په وجه ښځه په پرده کې بهر وتلې شي

۱ . په قرآن کريم او احاديثو کې چې ښځې ته د پَردې حکم شوی نو ددې دا مطلب ندی چې گني ښځه دې د قيدي په شان په کور کې په پَنجره کې بنده وي او بهَر دې بالکل نه اُوځي ، بلکه اسلام ښځې ته د دِيني يا دُنيوي ضرورت په وخت د کور نه د وتلو اجازت ورکړی ، خو شرط يې دا لږولی چې په پَرده کې به وي ، خپل زِينت به چاته نه ښکاره کوي ، په داسې لباس او داسې اَنداز کې به ځي چې د خلقو جَذبات نه راپورته کوي . البته بِلاضرورت به د کور نه بهر نه اُوځي .(۱)

۲ . مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللهُ په تفسير معارف القرآن کې ذکر کړي چې : په ﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ ﴾ آيت سره زَنانهؤ د پاره په کور کې پاتې کيدل واجب گرځول شوي خو ليکن بيا هم په وروسې جُمله ﴿ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى ﴾ کې ديته اشاره ده چې مطلقًا وتل منع ندي ، بلکه هغه وتل منع دي چې په هغې کې زِينت ښکاره کول وي .

همدارنگې په همدې سورة کې روستو د بل آيت ﴿ يُدْنِيْنَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ﴾ نه هم دا معلوميږي چې زَنانه د پاره د ضرورت په وخت د کور نه د وتلو اجازت شته خو شرط دادی چې په پَرده کې به وي .

۳ . بيا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عمَل نه هم ددې جواز ثابتيږي ؛ ځکه د حِجاب حکم نازليدو نه پس هم نبي عليه السلاَم خپلې بيبيانې د ځان سره حج او عُمرې ته بوتللې وی ، غزاگانو له يې د ځان سره بوتللې وی .

همدارنگې د ډيرو صحيح رواياتو نه دا ثابت دي چې اَزواج مُطهّرات به د خپلو والدينو ملاقات د پاره د کور نه بهر وتلی ، دغسې د خپلو رِشته دارو د بيمارپُرسۍ او تَعزيت (غَم رازی) ته به هم تللی ، تر دې چې د نبي عليه السلام په زمانه کې خو زَنانهؤ د پاره جُمات ته د تللو اجازت هم ؤ .

(۱) فتاوی حقانيه ج ۲ ص ۴۸٦ . وهکذا في فتاوی عثمانيه ج ۱۰ ص ۱۰۵ .

همدارنګې د پیغمبر علیه السلام د وفات نه پس هم د حضرت زینب رضي الله عنها او حضرت سَودة رضي الله عنها نه علاوه نورې ټولې اَزواج مُطهّرات حج او عُمرې ته تللی ، په صحابه کرامو رضي الله عنهم کې هیچا دا بَد نه دې ګڼړلې . (۱)

بلکه حضرت عُمر رضي الله عنه چې کله اَمیرُ المؤمنین وُ نو دوی بعضې اَزواج مُطهّرات په خپل اِنتظام سره حج ته اُولیږلی ، او ورسره یې حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه د دوی د نګرانۍ او حفاظت د پاره ورسره اُولیږل .

بهر حال ، د قرآن کریم د آیتونو په اِشارو سره ، د نبي علیه السلام په خپل عمل سره ، او د صحابه کرامو په اِجماع سره د ښځو د پاره د ضرورت په موقعو کې د کور نه بهر وتل جائز دي ، لکه : د حج او عُمرې د پاره تلل ، د طَبعي ضرورتونو د پاره تلل ، د والدینو او خپلوانو د بیمارپُرسۍ او تَعزیت د پاره تلل .

همدارنګې که د یوې زَنانه د ژوند ضروریاتو (نان ، نَفقې) د پاره څه بل اِنتظام نه وُ نو

---

(۱) ټولې اَزواج مطهّرات لکه حضرت زینب رضي الله عنها او حضرت سَودة رضي الله عنها د نبي علیه السلام د وفات نه پس حج او عُمرې ته نه تللی ، دا ځکه چې کله نبي علیه السلام اَزواج مُطهّرات حَجّة الوداع له د ځان سره بوتللی نو په واپسۍ کې یې ورته او فرمایل : إِنَّمَا هِيَ هٰذِهِ ثُمَّ ظُهُوْرَ الْحُصُرِ . ددې حدیث نه حضرت زینب رضي الله عنها او حضرت سَودة رضي الله عنها دا مطلب واخیست چې : " ستاسو راوتل صرف ددې حجّة الوداع د پاره جائز وو بیا په کور کې په خپلو پُوزکو باندې ناستې اُوسئ " نو ځکه به دوی د نبي علیه السلام د وفات نه پس حج او عُمرې ته نه تللی .
حضرت عائشې رضي الله عنها او نورو اَزواج مُطهّرات ددې حدیث نه دا مطلب واخیست چې : " ستاسو د کور نه راوتل دداسې شرعي سفر د پاره جائز دي ګنې بیا په خپلو کورونو کې په پُوزوکو باندې ناستې اُوسئ " . نو ځکه د نبي علیه السلام د وفات نه پس دوی حج او عُمرې ته تللی . معارف القرآن سورة الاحزاب في تشريح آية ۳۳ .

هغه حدیث پوره دادی : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَزْوَاجِهِ فِيْ حَجَّةِ الْوَدَاعِ : « إِنَّمَا هِيَ هٰذِهِ ثُمَّ ظُهُوْرَ الْحُصُرِ » قَالَ : فَكُنَّ كُلُّهُنَّ يُسَافِرْنَ إِلَّا زَيْنَبَ رضي الله عنها وَسَوْدَةَ رضي الله عنها ، فَإِنَّهُمَا قَالَتَا: لَا تُحَرِّكُنَا دَابَّةٌ بَعْدَمَا سَمِعْنَا مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۱۷۵۲ ، و رقم الحديث ۲۴۳۱ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۱۹۰۵ ، و رقم الحديث ۲۱۹۱۰ ، سنن ابي داؤد رقم الحديث ۱۷۲۲ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۷۹۳۰ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۳۳۱۸ .

وفي رواية : عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَّ بِنِسَائِهِ حَجَّةَ الْوَدَاعِ ، ثُمَّ قَالَ: « إِنَّمَا هِيَ هٰذِهِ ، ثُمَّ ظُهُوْرُ الْحُصُرِ » يَقُوْلُ: « الْزَمْنَ ظُهُوْرَ الْحُصُرِ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ » . مصنف عبدالرزاق الصنعاني رقم ۸۸۱۲ .

دا په پَرده کې د مزدورۍ د پاره هم وتلې شي.

خو په دې ټولو صورتونو کې شرط دادی چې دا به د وتلو په وخت خپل زِينت نه ښکاره کوي، بُرقع يا غټ پړونې به په سَر کوي.(۱)

په دې مسئله ځان پوهه کړئ چې الله تعالی په ښځه باندې د رِزق ګټلو ذِمه واري نده ايخې، د واده نه مخکې يې ددې پوره کفالت د پلار په ذِمه ايخې، او د واده نه پس يې ددې په خاوند باندې ايخې.

خو که يوه ښځه داسې وه چې نه يې پلار وُ، نه يې خاوند وُ، او نه يې د رِزق ګټلو بله ذريعه وه نو ديته د رزق پيدا کولو د پاره د کور نه بهر په پَرده کې وتل جائز دي.(۲)

خو زِينت سره بازار ته تلل، يا د پرَدو سره مخې ته راتلل ورته قطعًا حرام دي.(۳)

## د جائز تفريح د پاره ښځې ته په پَرده کې بهر وتل جائز دي

علماء ليکي چې د جائز تَفريح د پاره هم ښځې ته په پَرده کې بهر وتل جائز دي؛ ځکه رسولُ الله ﷺ بعضې وخت حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ځان سره بهر بوتللې وه.(۴)

د مسلم شريف حديث دی، حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې د رسولُ الله ﷺ يو ګاونډي وُ، د فارس وُ، ډيره ښه ښُوروا (شوربا) به يې تياروله، نو ده نبي عليه السلام ته ښُوروا تياره کړه، بيا راغی او دوی ته يې دعوت ورکړو، پيغمبر عليه السلام ورته اوفرمايل:

وَهٰذِهٖ؟ دا دعوت عائشې ته هم دی؟ هغه وويل: نه.

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل: لَا. بيا خو زه هم نه ځم.

هغه کس په دويم ځل راغی او نبي عليه السلام ته يې دعوت ورکړو، دوی ورته اوفرمايل:

وَهٰذِهٖ؟ آيا عائشة به هم راسره وي؟ هغه ورته وويل: نه.

(۱) تفسير معارف القرآن سورة الاحزاب في تشريح آية ۳۳.

(۲) اصلاحي خطبات ج ۱ ص ۱۶۳، فتاوی عثمانيه ج ۱۰ ص ۱۰۵. آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۵۹۳.

(۳) امداد الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۴.

(۴) اصلاحي خطبات ج ۱ ص ۱۶۳ لمولانا مفتي تقي عثماني دامت برکاتهم العالية.

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل: لَا. زه هم نه ځم.

هغه کس په دريم ځل راغی، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې دعوت ورکړو.

دوی ورته اوفرمايل: وَهٰذِهِ؟ دا دعوت عائشې ته هم دی؟ هغه په دريم ځل وويل: آو.

فَقَامَا يَتَدَافَعَانِ حَتَّى أَتَيَا مَنْزِلَهُ.

پس نبي ﷺ او حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دواړه پاڅيدل، د يو بل پسې روان وو (يعنی پيغمبر عليه السلام ورته مخکې ؤ او حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ورپسې وه)، تر دې چې ددې کس کور ته اُورسيدل. (۱)

**تشريح**: امام نووي رَحِمَهُ اللهُ ليکلي: د دَعوت قبلول واجب دي خو نبي عليه السلام چې اول دده دعوت قبول نکړو نو دا ځکه چې دلته يو عُذر ؤ چې د هغې په وجه پيغمبر عليه السلام ته ددې د قبلولو او نه قبلولو اِختيار ؤ، او په دې وخت کې حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اُوږې هم وه، د خوراک ورسره هيڅ نه وو، نو نبي عليه السلام دا دعوت ځانله خوړل قبول نکړو، بلکه د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اجازت يې هم غوښتو.

خو چې کله ورته په دريم ځل هغه کس اجازت ورکړو نو نبي عليه السلام د دعوت قبلول راجح کړو چې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اُولږه هم ختمه شي. او دا د خپلې بي بي سره خېرخواهي هم ده.

ددې کس په اول ځل باندې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د پاره د دَعوت اِراده نه وه ځکه کيدې شي خوراک کم ؤ او دده مقصد دا ؤ چې دا ټول خوراک په نبي عليه السلام باندې اُوخوري، نو ځکه يې صراحةً دوی ته فرمايل چې دا دعوت هغې ته ندی.

---

(۱) عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ جَارًا لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَارِسِيًّا كَانَ طَيِّبَ الْمَرَقِ. فَصَنَعَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ثُمَّ جَاءَ يَدْعُوهُ. فَقَالَ: «وَهٰذِهِ؟» لِعَائِشَةَ. فَقَالَ: لَا. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا». فَعَادَ يَدْعُوهُ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَهٰذِهِ؟». قَالَ: لَا. قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا». ثُمَّ عَادَ يَدْعُوهُ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «وَهٰذِهِ؟». قَالَ: نَعَمْ فِي الثَّالِثَةِ. فَقَامَا يَتَدَافَعَانِ حَتَّى أَتَيَا مَنْزِلَهُ. صحيح مسلم كتاب الأشربة بَابُ مَا يَفْعَلُ الضَّيْفُ إِذَا تَبِعَهُ غَيْرُ مَنْ دَعَاهُ صَاحِبُ الطَّعَامِ وَاسْتِحْبَابِ إِذْنِ صَاحِبِ الطَّعَامِ لِلتَّابِعِ رقم الحديث ۱۳۹ (۲۰۳۷)، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۲۲۴۳.

خو په دريم ځل يې يا هغې ته هم اجازت اوکړو . (۱)

علماؤ دا هم ليکلي : د نبي عليه السلام دا معمول نه ؤ چې کنې هر دعوت ته به يې حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنهَا د ځان سره بوتلله ، بلکه په دې موقع چې يې دې کس ته بار بار د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا د ځان سره د بوتللو شرط لږول نو دا ځکه چې کيدې شي ددې کس په زړه کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا په باره کې څه خيرې ؤ نبي عليه السلام هغه لرې کول غوښتل .

ددينه علاوه د پيغمبر عليه السلام معمول دا ؤ چې د هر چا دعوت به يې قبلول .

بهر حال ، د مسلم شريف د حديث نه دا هم معلومه شوه چې د جائز تفريح د پاره ښځې ته په پَرده کې بهر وتل جائز دي . (۲)

## نبي عليه السلام د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا سره مَنډه أووهله

ښځې د پاره چونکه د جائز تفريح هم ضرورت وي خو شرط دادی چې دا به د شريعت په حدودو کې دننه په پَرده کې وي ، د غير مَحرَمو سره به يو ځای نه وي .

په احاديثو کې دا هم راځي چې نبي عليه السلام په يو سفر کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا سره مَنډه أووهله ، او مَنډه وهل خو جائز تفريح او سپل دی .

---

(۱) وَأَمَّا الْحَدِيثُ الثَّانِي فِي قِصَّةِ الْفَارِسِيِّ وَهِيَ قَضِيَّةٌ أُخْرَى فَمَحْمُولٌ عَلَى أَنَّهُ كَانَ هُنَاكَ عُذْرٌ يَمْنَعُ وُجُوبَ إِجَابَةِ الدَّعْوَةِ . فَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُخَيَّرًا بَيْنَ إِجَابَتِهِ وَتَرْكِهَا . فَاخْتَارَ أَحَدَ الْجَائِزَيْنِ وَهُوَ تَرْكُهَا إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا مَعَهُ لِمَا كَانَ بِهَا مِنَ الْجُوعِ أَوْ نَحْوِهِ . فَكَرِهَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْإِخْتِصَاصَ بِالطَّعَامِ دُونَهَا . وَهٰذَا مِنْ جَمِيلِ الْمُعَاشَرَةِ وَحُقُوقِ الْمُصَاحَبَةِ وَآدَابِ الْمُجَالَسَةِ الْمُؤَكَّدَةِ . فَلَمَّا أَذِنَ لَهَا اخْتَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجَائِزَ الْآخَرَ لِتَجَدُّدِ الْمَصْلَحَةِ وَهُوَ حُصُولُ مَا كَانَ يُرِيدُهُ مِنْ إِكْرَامِ جَلِيسِهِ وَإِيفَاءِ حَقِّ مُعَاشَرَتِهِ وَمُوَاسَاتِهِ فِيمَا يَحْصُلُ . وَقَدْ سَبَقَ فِي بَابِ الْوَلِيمَةِ بَيَانُ الْأَعْذَارِ فِي تَرْكِ إِجَابَةِ الدَّعْوَةِ وَاخْتِلَافِ الْعُلَمَاءِ فِي وُجُوبِ الْإِجَابَةِ ، وَأَنَّ مِنْهُمْ مَنْ لَمْ يُوجِبْهَا فِي غَيْرِ وليمة العرس كهذه الصورة وَاللهُ أَعْلَمُ .
قَوْلُهُ : ( فَقَامَا يَتَدَافَعَانِ ) مَعْنَاهُ يَمْشِي كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي أَثَرِ صَاحِبِهِ . قَالُوا وَلَعَلَّ الْفَارِسِيَّ إِنَّمَا لَمْ يَدْعُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَوَّلًا لِكَوْنِ الطَّعَامِ كَانَ قَلِيلًا فَأَرَادَ تَوْفِيرَهُ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . شرح النووي على مسلم ( المنهاج شرح صحيح مسلم بن الحجاج ) ج ۱۳ ص ۲۰۸ في تشريح حديث ۲۰۳۷ .

(۲) اصلاحي خطبات ج ۱ ص ۱۶۶ .

د ابوداؤد شريف حديث دی ، حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې زه د نبي عليه السلام سره په سفر کې ووم ، ما د نبي عليه السلام سره پياده مَنډه اُووهله نو زه ورنه په منډه کې مخکې شوم ، کله چې څه وخت پس زما وجود دروند شو (يعنی وجود مې غټ شو) نو ما ورسره بيا مَنډه اُووهله ، په دې ځل رانه نبي عليه السلام مخکې شو ، دوی راته اوفرمايل :

هٰذِهِ بِتِلْكَ السَّبْقَةِ . دا زما مخکې کيدل د هغې ستا مخکې کيدو په مقابله کې شو.

(يعنی مخکې رانه ته په مَنډه کې مخکې شوې وی اوس درنه زه مخکې شوم ، نو خبره سَر په سَر شوه) . (۱)

## ښځې د پاره بې پَردې حالت کې بهر ته چکر له تلل ناجائز دي

د ښځې د پاره بې پَردې حالت کې بهر ته چکر له تلل ناجائز دي ، ځکه دا د عيسايانو شِعار او طريقه ده .

اګر چې د نبي عليه السلام په زمانه کې به زَنانه جُمات ته په پَرده کې مانځه له تللی ، خو د نبي عليه السلام د وفات نه پس چې کله د ښځو فِتنه زياته شوه نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اوفرمايل : لَوْ أَدْرَكَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ لَمَنَعَهُنَّ كَمَا مُنِعَتْ نِسَاءُ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ . (۲)

---

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، أَنَّهَا كَانَتْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ . قَالَتْ: فَسَابَقْتُهُ فَسَبَقْتُهُ عَلٰى رِجْلَيَّ . فَلَمَّا حَمَلْتُ اللَّحْمَ سَابَقْتُهُ فَسَبَقَنِيْ فَقَالَ : « هٰذِهِ بِتِلْكَ السَّبْقَةِ » . سنن ابي داؤد كِتَابُ الْجِهَادِ بَابٌ فِي السَّبَقِ عَلَى الرِّجْلِ رقم الحديث ۲۵۷۸ ، مشكاة المصابيح بَابُ عِشْرَةِ النِّسَاءِ وَمَا لِكُلٍّ وَاحِدَةٍ مِنَ الْحُقُوقِ الْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۲۵۱(۱۴) .

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ الْأَذَانِ بَابُ خُرُوجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِاللَّيْلِ وَالْغَلَسِ رقم الحديث ۸۶۹.

دا حديث په مسلم شريف کې داسې ذکر دی : حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي : لَوْ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ لَمَنَعَهُنَّ الْمَسْجِدَ كَمَا مُنِعَتْ نِسَاءُ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ . صحيح مسلم كِتَابُ الصَّلَاةِ باب منع نساء بني إسرائيل المسجد رقم الحديث ۱۴۴ (۴۴۵) .

که چيرته رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ښځو دا حالت کتلې وی نو دوی به يې ضرور د جُمات نه داسې منع کړې وی لکه د بني اسرائيلو ښځې چې د جُمات نه منع شوې وی .

که چیرته رسولُ الله صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا حالت معلوم کړې وی کوم چې نن ښځو پیدا کړی (چې دوی جمات ته د راتلو په وخت خو شبو استعمالوي، ښائسته کپړې اغوندي او خپل زِينت ښکاره کوي) نو دوی به یې ضرور جُمات ته د تللو نه داسې منع کړې وی لکه د بني اسرائيلو ښځې چې منع شوې وی.

دا حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د خَيرُ القرون حالت بیان کړو ، حالانکې هغې ته بهترینه زَمانه ویل شوی. (۱)

نن صبا خو د فِتنې او فساد غلبه ده نو فقهاء کرامو صراحةً ذکر کړي چې ښځو ته په طريقِ اولٰی سره جُمات ته تلل منع دي. (۲)

نو چې کله په دِيني اُمورو کې ښځو ته د بهر راوتلو دا حکم دی نو بې پَردې حالت کې به په بازارونو کې چکر لګول څنګه جائز شي؟ حالانکه دا دِيني ضرورت هم ندی، بلکه دا بې پَردې حالت کې په بازارونو کې چکر لګول د عیسایانو طریقه ده. (۳)

## د ښځې د پاره د کور نه د بهر وتلو شرائط او آداب ( اجمالاً )

کله چې ښځه د څه ضرورت په وجه د کور نه بهر اُوځي نو ددې د پاره څه شرائط او آداب دي کوم چې د قرآن کريم او احاديثو نه معلومیږي.

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: خَيْرُ أُمَّتِي الْقَرْنُ الَّذِيْنَ يَلُوْنِيْ، ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ... صحيح مسلم كتاب فَضَائِلِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ بَابُ فَضْلِ الصَّحَابَةِ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ رقم ۲۱۰ (۲۵۳۳)

(۲) وَالْفَتْوَى الْيَوْمَ عَلَى كَرَاهَةِ حُضُوْرِهِنَّ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا لِظُهُوْرِ الْفَسَادِ. العناية شرح الهداية ج ۱ ص ۳۶۶.

فِي الْكَافِي: اَلْفَتْوَى الْيَوْمَ عَلَى الْكَرَاهَةِ فِي كُلِّ الصَّلَوَاتِ لِظُهُوْرِ الْفَسَادِ. درر الحكام شرح غرر الأحكام ج ۱ ص ۸۶.

قَالَ الْمُصَنِّفُ فِي الْكَافِي وَالْفَتْوَى الْيَوْمُ عَلَى الْكَرَاهَةِ فِي الصَّلَاةِ كُلِّهَا لِظُهُوْرِ الْفَسَادِ. وَمَتٰى كُرِهَ حُضُوْرُ الْمَسْجِدِ لِلصَّلَاةِ فَلَأَنْ يُكْرَهَ حُضُوْرُ مَجَالِسِ الْوَعْظِ خُصُوْصًا عِنْدَ هٰؤُلَاءِ الْجُهَّالِ الَّذِيْنَ تَحَلَّوْا بِحِلْيَةِ الْعُلَمَاءِ أَوْلٰى. ذَكَرَهُ فَخْرُ الْإِسْلَامِ. البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج ۱ ص ۳۸۰.

(وَلَا يَحْضُرْنَ الْجَمَاعَاتِ) يَعْنِيْ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا. وَيَسْتَوِيْ فِيْهِ الشَّوَابُّ وَالْعَجَائِزُ وَهُوَ قَوْلُ الْمُتَأَخِّرِيْنَ لِظُهُوْرِ الْفَسَادِ فِيْ زَمَانِنَا... تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق ج ۱ ص ۱۳۹. البناية شرح الهداية ج ۲ ص ۲۸۶.

(۳) فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۸۸.

زه درته هغه شرائط اول اِجمالاً ذکر کوم، بیا به یې درته تفصیلاً ذکر کړم :

۱. په بُرقع یا غټ پړوني کې به ټول بدن پټوي .
۲. دا بُرقع به داسې دَولي (ښائسته) نه وي چې د خلقو توجّو ورته راوړي .
۳. دا بُرقع به داسې نرۍ نه وي چې ټول بدن یې ورنه ښکاري .
۴. دا بُرقع به دومره تَنګه نه وي چې د اَندامونو حُجم یې ورنه معلومېږي .
۵. د سړو په شان لباس به نه اَچوي .
۶. د کافرانو ښځو په شان بې حیاء لباس به نه اچوي .
۷. خپل زِینت به نه ښکاره کوي .
۸. د خپل نظر او شرمګاه حفاظت به کوي .
۹. د بهر وتلو په وخت به خوشبو نه استعمالوي .
۱۰. د بهر وتلو په وخت بهتر داده چې زیورات وا نه چوي، او که اچوي یې نو بیا به داسې زیوارت اچوي چې هغه د تللو په وخت شرنګار نه کوي .
۱۱. بهتر داده چې په ساده کپړو کې اُووځي .
۱۲. د لارې په یو طرف به ځي ، د پرَدو سړو سره به ځان نه جنګوَي .
۱۳. په عاجزۍ به ځي ، په نَخرو او تکبّر به نه ځي .
۱۴. د خاوند نه به اجازت اخلي .
۱۵. اُوږد سفر به بغیر د مَحرَم نه نکوي .
۱۶. که د غیر مَحرَمو سره د ضرورت په وخت د خبرو کولو موقع راشي نو په نَرمه لهجه کې به ورسره خبرې نه کوي .

# د ښځې د پاره د کور نه د بهر وتلو شرائط او آداب ( تفصیلا )

اوس درته مذکوره شرائط تفصیل سره ذکر کوم ، ددې د پاره چې خبره درته پوره واضحه شي :

## اول شرط : په بُرقع یا غټ پړوني کې به ټول بدن پټوي

ښځه چې د کور نه اُوځي نو په غټه بُرقع یا لوي پړوني کې به خپل ټول بدن پټوي ، خپلې

سينې، او مخ به نه ښکاره کوي، ځکه د ښځې په مخ او سينو کې داسې کشش دی چې نور خلق ځان طرف ته رامائل کوي.

١. الله تعالى فرمايي: ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ﴾.. (١)

ترجمه: او دوی دې خپلې لوپټې په خپلو گريوانونو (سينو) باندې راواچوي.

٢. الله ﷻ نبي عليه السلام ته فرمايي:

﴿ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ﴾.(٢)

ترجمه: اې پيغمبره! ته خپلو بيبيانو، خپلو لورانو او مؤمنانو زنانهؤ ته اُووايه چې (د كور نه د څه ضرور كار پسې د وتلو په وخت) خپل لوي څادرونه په ځان باندې رانښكته كړي

٣. محمد بن سيرين رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي چې ما د عبيدة سَلماني رَحِمَهُ ٱللَّهُ نه ددې آيت ﴿ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ متعلق پوښتنه اوكړه (چې ددې څه طريقه ده؟)

فَغَطَّى وَجْهَهُ وَرَأْسَهُ وَأَبْرَزَ عَيْنَهُ الْيُسْرَىٰ.

نو هغه (غټ څادر واغوست) خپل مخ او سَر (يې وړياندې) پټ كړو، او چَپه (گسه) سترگه يې ښكاره كړه.(٣)

(نوټ: د زَنانه د پاره د پَردو سرو د وړاندې د مخ پټولو تفصيلي بحث په همدې موضوع كې روستو راروان دی. ابوالشمس عفي عنه)

## دويم شرط: دا بُرقع به داسې ډَولي نه وي چې د خلقو توجه ورته راوړي

زَنانه چې د كور نه د وتلو په وخت كومه بُرقع يا غټ پړوني اچوي نو ددې د پاره دا ضروري ده چې دا به ډيره ډَولي (او ښائسته) نه وي، نقش و نِگار به وړياندې نه وي شوی

(١) النور آية ٣١.

(٢) الاحزاب آية ٥٩.

(٣) قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ رَحِمَهُ ٱللَّهُ: سَأَلْتُ عَبِيدَةَ السَّلْمَانِيَّ رَحِمَهُ ٱللَّهُ عَنْ قول الله عز وجل: ﴿ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ فَغَطَّى وَجْهَهُ وَرَأْسَهُ وَأَبْرَزَ عَيْنَهُ الْيُسْرَىٰ. تفسير ابن كثير ج٦ ص ٤٢٥ سورة الاحزاب آية ٥٩، صفوة التفاسير ج ٢ ص ٣٩٢.

ځکه ښائسته بُرقعې ته د خلقو توجّه راوړي .

بل دا چې الله تعالی ښځې د زِینت ښکاره کولو نه منع کړي دي ، فرمایي :

﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾ . (۱)

ترجمه : او دوی دې خپل زِینت نه ښکاره کوي مگر کوم چې ددینه پخپله ( کاراو حرکت کولو سره ) ښکاره شي .

په دې آیت کې عموم دی ، دا ښائسته کپړو او ښائسته بُرقعې ته هم شامل دی چې دا به نه ښکاره کوي .

په تفسیر معارف القرآن کې ذکر دي : امام جصاص رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې کله الله تعالی په دې آیت ﴿ وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ (۲) ﴾ کې زَنانه په زمکه باندې په زُوره خپه وهلو نه منع کړی چې د زیوراتو آوازیې بل څوک وا نه وَري نو په طریقِ اولٰی سره به زینت ښکاره کول منع وي ، لهذ اوس د زَنانه د پاره ښائسته بُرقع په سَر کول اوبیا بهر وتل ناجائز شو . (۳)

حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې کله رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَنانه جُمات ته د راتلو په وخت د خوشبو استعمالولو نه منع کړې وی او سبب یې دا وُ چې دا شهوت طرف ته دعوت ورکوي ، نو په دې سره به د زَنانه د پاره بهر وتلو په وخت هغه شیان هم منع وي چې هغه د پرَدو خلقو شهوت راپاروي .

لکه : ښائسته کپړې اچول ، زیورات ښکاره کول ، د فخر واله لباس اچول ، او د خلقو

---

(۱) النور آية ۳۱ .

(۲) ترجمه : او دا زَنانه دې ( د تللو په وخت ) زمکه په خپلو خپو باندې ددې د پاره په زُوره نه وهي چې په دې سره ددې د هغه پټو زیوراتو آواز معلوم شي . النور آية ۳۱ .

(۳) تفسیر معارف القرآن سورة النور في تشريح آية ۳۱ .

د احکام القرآن واله اصل عبارت داسې دی : { لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ } . قَالَ أَبُو بَكْرٍ : قَدْ عُقِلَ مِنْ مَعْنَى اللَّفْظِ النَّهْيُ عَنْ إِبْدَاءِ الزِّينَةِ وَإِظْهَارِهَا لِوُرُودِ النَّصِّ فِي النَّهْيِ عَنْ إِسْمَاعِ صَوْتِهَا ، إِذْ كَانَ إِظْهَارُ الزِّينَةِ أَوْلَى بِالنَّهْيِ مِمَّا يُعْلَمُ بِهِ الزِّينَةُ . فَإِذَا لَمْ يَجُزْ بِأَخْفَى الْوَجْهَيْنِ لَمْ يَجُزْ بِأَظْهَرِهِمَا . احکام القرآن للجصاص ج ۳ ص ۴۱۲ .

سره اختلاط کول. (۱)

امام ذهبي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د کومو کارونو په وجه په ښځه باندې لعنت راورېږي په هغې کې دا هم دي چې ښځه د پَردو سره د وړاندې خپل زِينت ښکاره کوي. (۲)

که مونږ سوچ اوکړو نو د پَردې مقصد هم دادی چې د ښځې ښائست، حرکات، او سکنات د پَردو سره نه پَټ شي، اوس چې بُرقعه پخپله داسې ښائسته وي چې د نورو خلقو توجّه ورته راوړي نو بيا خو د پَردې مقصد حاصل نه شو.

لهذا بُرقع ساده په کار ده چې د نورو خلقو مخ ورته نه راوړي.

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ ذکر کړي چې الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ ﴾. او زَنانه دې خپل زِينت نه ښکاره کوي.

په دې آيت کې د زِينت نه مراد لباس دی، لکه په يو بل آيت ﴿ يٰبَنِيٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ (۳) ﴾ کې هم د ټولو مفسّرينو په اتفاق سره د زِينت نه مراد لباس دی.

او حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ هم په ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ ﴾ کې د زِينت تفسير همدا کړې دی" چې زَنانه به ښائسته کپړې او زيورات نه ښکاره کوي بلکه په غټې بُرقعې سره به يې پټوي". اوس چې بُرقع پخپله ښائسته وي نو دا خو زِينت ښکاره کول شو، او دا حرام دي. (۴)

---

(۱) قال الحافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ: وَلِمُسْلِمٍ من حَدِيث زَيْنَب امْرَأَة بن مَسْعُودٍ: «إِذَا شَهِدَتْ إِحْدَاكُنَّ الْمَسْجِدَ فَلَا تَمَسَّنَّ طِيبًا». قَالَ: وَيَلْحَقُ بِالطِّيبِ مَا فِي مَعْنَاهُ لِأَنَّ سَبَبَ الْمَنْعِ مِنْهُ مَا فِيهِ مِنْ تَحْرِيكِ دَاعِيَةِ الشَّهْوَةِ كَحُسْنِ الْمَلْبَسِ وَالْحُلِيِّ الَّذِي يَظْهَرُ وَالزِّينَةِ الْفَاخِرَةِ وَكَذَا الْإِخْتِلَاطُ بِالرِّجَالِ. فتح الباري لابن حجر ج ۲ ص ۳۴۹. احکام الاحکام شرح عمدة الاحکام ج ۱ ص ۱۶۸، فيض القدير ج۱ ص ۳۷۸، اوجز المسالک ج ۴ ص ۱۰۴.

(۲) وَمِنَ الْأَفْعَالِ الَّتِيْ تلعن عَلَيْهَا الْمَرْأَة إِظْهَار الزِّينَة .... الکبائر للذهبي ج۱ ص ۱۳۵ اَلْكَبِيرَةُ الثَّالِثَةُ وَالثَّلَاثُونَ تشبه النِّسَاء بِالرِّجَالِ وتشبه الرِّجَال بِالنِّسَاء.

(۳) ترجمه: اې بني آدمو! تاسو د هر مونځ په وخت خپلې ښائسته کپړې اغوندئ. الاعراف آية ۳۱.

(۴) الفيض الحسن ص ۱۷۰، پرده ضرور کروں کی ص ۳۰۷.

## دریم شرط : دا برقع به داسې نرۍ نه وي چې لاندې ټول بدن ورنه ښکاري

زَنانه به د بهر وتلو په وخت داسې نرۍ بُرقع یا نرۍ کپړې نه اچوي چې د هغې نه لاندې بدن ښکاري ، ځکه په شریعت کې د زَنانه د پاره د نري لباس اچولو سختې سزاګانې ذکر شوي. چونکه نن صبا د نري لباس رواج دی نو ځکه د رته د دې څه تفصیل بیانوم :

## د لباس مقصد

الله تعالی فرمایي : ﴿ يٰبَنِيٓ اٰدَمَ قَدۡ اَنۡزَلۡنَا عَلَيۡكُمۡ لِبَاسًا يُّوَارِيۡ سَوۡاٰتِكُمۡ وَرِيۡشًا وَلِبَاسُ التَّقۡوٰى ذٰلِكَ خَيۡرٌ ؕ ذٰلِكَ مِنۡ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَعَلَّهُمۡ يَذَّكَّرُوۡنَ ﴾ . (۱)

ترجمه : اې د آدم اَولاده ! مونږ تاسو ته لباس ( کپړې ) درکړي ( ددې د پاره ) چې ستاسو شرمګاهونه ( او د سَتر ځایونه ) پَټ کړي ، او ښائست هم دی ، او د پرهیزګارۍ لباس ډیر غوره دی ، دا د الله تعالی نخې دي ، ددې د پاره چې دوی نصیحت قبول کړي .

**فائده** : په دې آیت کې د لباس مقصد دا ذکر شو چې په دې سره به عورت پټولې شي او دا د انسان د پاره حُسن هم دی .

اوس چې زَنانه داسې لباس واغوندي چې په دې کې ددې بدن پوره پَټ نه وي نو بیا خو د لباس مقصد حاصل نه شو ، دا خو غیر شرعي لباس شو .

دا یاد ساتئ چې کله د زَنانه کپړې داسې لنډې وي چې په هغې کې د بدن څه حصه ښکاره وي ، یا داسې نرۍ وي چې لاندې بدن ورنه ښکاري ، یا دومره تَنګې وي چې د بدن د هر اَندام حُجم ورنه صفا معلومیږي نو دا غیر شرعي لباس دی، ددې اغوستل ناجائز دي ، بلکې کپړې داسې په کار دي چې په هغې کې ټول بدن پَټ وي ، دَننه بدن په کې نه ښکاري ، او دومره تَنګې هم نه وي چې د زَنانه هر اندام په کې جدا جدا معلومیږي .

## نبي علیه السلام باریکې کپړې اغوستونکې ښځې نه مخ واړول

د ابوداؤد شریف او مشکوة شریف حدیث دی چې د حضرت عائشې رضي الله عنها خور

(۱) الاعراف آیة ۲۶ .

" أسماء بنت ابي بكر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا " نبي عليه السلام ته راغله :

وَعَلَيْهَا ثِيَابٌ رِقَاقٌ . فَأَعْرَضَ عَنْهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

او ددې په بدن باندې نرۍ کپړې وې نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددينه مخ واړول .

او ورته وې فرمايل :

يَا أَسْمَاءُ ! إِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا بَلَغَتِ الْمَحِيْضَ لَمْ تَصْلُحْ أَنْ يُرٰى مِنْهَا إِلَّا هٰذَا وَهٰذَا .

اې أسماء ! کله چې ښځه د حيض حالت ته اورسي ( يعنی بالغه شي ) نو دا ورله صحيح نده چې ددې د بدن څه حصه اوليدې شي بغير ددې او ددې نه .

دې ويلو سره نبي عليه السلام خپل مخ او خپلو لاسونو ته اِشاره اوکړه . ( چې د ضرورت په وخت د مخ او لاسونو ښکاره کول جائز دي ) . (۱)

ددې حديث نه معلومه شوه چې د زَنانه د پاره باريک لباس اغوستل ناجائز دی . بل ورنه دا هم معلومه شوه چې که يوې زَنانه داسې نرۍ کپړې اغوستې وي چې د هغې نه لاندې ددې بدن ښکاري نو دا د بَربنډې په حکم کې ده ، ځکه خو نبي عليه السلام ددې زَنانه نه مخ واړول .

## نرې لباس اچوونکې ښځې به د جنت بُوی هم اُو نه مومي

د مسلم شريف حديث دی ، رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

صِنْفَانِ مِنْ أَهْلِ النَّارِ لَمْ أَرَهُمَا . قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ كَأَذْنَابِ الْبَقَرِ يَضْرِبُوْنَ بِهَا النَّاسَ . وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ مُمِيْلَاتٌ مَائِلَاتٌ . رُءُوْسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ . لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ .

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ أَسْمَاءَ بِنْتَ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دَخَلَتْ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهَا ثِيَابٌ رِقَاقٌ . فَأَعْرَضَ عَنْهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . وَقَالَ: « يَا أَسْمَاءُ ! إِنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا بَلَغَتِ الْمَحِيْضَ لَمْ تَصْلُحْ أَنْ يُرٰى مِنْهَا إِلَّا هٰذَا وَهٰذَا » وَأَشَارَ إِلَى وَجْهِهِ وَكَفَّيْهِ . سنن ابی داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِيمَا تُبْدِي الْمَرْأَةُ مِنْ زِيْنَتِهَا رقم الحديث ۴۱۰۴ ، مشكوة المصابيح كتاب اللبَاس اَلْفَصْلُ الثَّالِث رقم الحديث ۴۳۷۲(۶۹) ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۴۰۹ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۳۲۱۸ ، و رقم الحديث ۱۳۴۹۶ ، السنن الصغير للبيهقي رقم الحديث ۲۳۵۸ ، كنزالعمال رقم الحديث ۱۹۱۱۵ .

وَلَا يَجِدْنَ رِيْحَهَا ، وَإِنَّ رِيْحَهَا لَيُوْجَدُ مِنْ مَسِيْرَةِ كَذَا وَكَذَا . (۱)

د جهنّميانو دوه ډلې دي چې تر اُوسه ما ندي ليدلي ( بلکه په آئنده زمانه کې به راپيدا کيږي ) : يوه ډله هغه خلق دي چې د هغوی په لاسونو کې به د غوا د لکۍ په شان کوړې وي چې په هغې سره به خلق په ناحقه وهي . دويمه ډله به د هغه ښځو وي چې په ظاهره به يې کپړې اغوستې وي خو په حقيقت کې به بَربنډې وي ، هغوی به سرې ځان طرف ته رامائل کوي ، او پخپله به هم سرو طرف ته مائلې وي ، سَرونه به يې د بُختي اُوښ د خوَزيدونکي قُب په شان خوَزي ، دوی به جنت ته داخلې نشي ، او د جنت بُوی به هم اُو نه مومي ، حالانکه د جنت بُوی دومره دومره (سَل ۱۰۰ کاله) فاصله باندې لرې محسوسيږي.

**د حديث تشريح** : نبي عليه السلام په دې حديث کې د داسې دوه قِسمه ډلو متعلق پيشَن ګوئي کړې چې دا په هاغه زمانه کې نه وی بلکې اوس دا دواړه ډلې موجود دي :

اول قِسم هغه خلق دي چې : " د هغوی په لاسونو کې به د غوا د لکۍ په شان کوړې وي او په دې باندې به خلق په ناحقه وهي " دا هغه خلق دي چې اِقتدار ورسره وي او په غريبانانو باندې ظلم کوي ، لکه دا بعضې خانان يا د زمکو مالِکان چې په معمولي معمولي خبرو باندې غريبانان او زميندارن په بې دَردۍ سره وهي ، په هغوی باندې بيګارونه اَچوي (يعنی کارونه وړباندې مُفت کوي ) .

تر دې چې بعضې خانان دومره مُتکبّر وي چې غريب کس ورباندې سلام واچوي نو دا هم بَدګنړي ځکه دې دا ګمان کوي " چې ګني ده خپل ځان د ما سره برابر کړو او په ما باندې يې سلام واچول" . الله تعالی دې داسې ظالمان او داسې متکبّرين تباه و بَرباد کړي.

نبي عليه السلام دويمه پيشَن ګوئي د هغه ښځو په باره کې اوکړه چې :

( كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ ) په ظاهره به يې کپړې اغوستې وي خو په حقيقت کې به بَربنډې وي .

---

(۱) صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّيْنَةِ بَابُ النِّسَاءِ الْكَاسِيَاتِ الْعَارِيَاتِ الْمَائِلَاتِ الْمُمِيلَاتِ رقم الحديث ۱۲۵ (۲۱۲۸) . مشكوة المصابيح كتاب القصاص بَاب مَا يضمن من الجِنَايَات الفَصْل الأول رقم الحديث ۳۵۲۴ (۱۵) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۸۶۶۵ ، و رقم الحديث ۹۶۸۰ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۷۴۶۱ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۱۸۱۱ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۳۲۶۰ ، شعب الايمان رقم الحديث ۴۹۷۲ ، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۲۵۷۸ ، كنز العمال رقم الحديث ۴۵۰۱۳ .

ددينه مراد هغه ښځې دي چې داسې کپړې يې اچولي وي چې نيم بدن يې پټ وي او نيم بدن يې ښکاره وي ، لکه څرنګې چې نن صبا په بازاري ښځو کې دا رواج دی چې لستونړي ، مخونه او سينې يې ښکاره وي .

يا ورنه هغه ښځې مراد دي چې داسې نرۍ کپړې يې اچولي وي چې لاندې بدن ورنه ښکاري ، نو دا هم په ظاهره خو يې کپړې اچولي وي ليکن حقيقت کې بَربنډه وي .

يا دا مطلب دی چې دې زَنانهٔ به کپړې اچولې وي ليکن د تقوٰی د لباس نه به خالي وي (يعنی داسې اعمال به نه کوي چې د هغې په وجه په آخرت کې د جنت مستحقې شي) .

يا دا مطلب دی چې دا ښځې به د الله ﷻ په نعمتونو کې پټې وي ليکن ددې د شکريې نه به خالي وي ( يعنی ددې نعمتونو شکريه به نه اَداء کوي ) . (۱)

د '' مُمِيْلَاتٌ '' نه مراد هغه ښځې دي چې د خپل ډَول و سِنګار په وجه نور خلق ځان طرف ته مائل کوي . يا ورنه هغه ښځې مراد دي چې د خپل سَر نه لوپټه لرې کوي چې خلقو ته د دوی مخونه ښکاره شي . يا ورنه هغه ښځې مراد دي چې دې خپل مذموم کار ته نور خلق مائله کوي .

د '' مَائِلَاتٌ '' نه مراد هغه ښځې دي چې پخپله سړو طرف ته مائله کيږي .

---

(۱) ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ په '' مرقاة '' کې د ( كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ ) تشريح داسې کړی : (كَاسِيَاتٌ) : أَيْ: فِيْ نِعْمَةِ اللهِ (عَارِيَاتٌ) : مِنْ شُكْرِهَا . وَقِيْلَ: يَسْتُرْنَ بَعْضَ بَدَنِهِنَّ وَيَكْشِفْنَ بَعْضَهُ إِظْهَارًا لِجَمَالِهِنَّ وَإِبْرَازًا لِكَمَالِهِنَّ. وَقِيْلَ: يَلْبَسْنَ ثَوْبًا رَقِيْقًا يَصِفُ بَدَنَهُنَّ وَ إِنْ كُنَّ كَاسِيَاتٍ لِلثِّيَابِ عَارِيَاتٍ فِي الْحَقِيْقَةِ . أَوْ كَاسِيَاتٍ بِالْحُلَلِ وَالْحُلِيِّ. عَارِيَاتٍ مِنْ لِبَاسِ التَّقْوٰى وَمِنْهُ حَدِيْثٌ : « رُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٍ فِي الْعُقْبٰى» .
قَالَ الطِّيْبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : أَثْبَتَ لَهُنَّ الْكُسْوَةَ ثُمَّ نَفَاهَا ، لِأَنَّ حَقِيْقَةَ الْإِكْتِسَاءِ سَتْرُ الْعَوْرَةِ . فَإِذَا لَمْ يَتَحَقَّقِ السَّتْرُ فَكَأَنَّهُ لَا اكْتِسَاءَ . مرقاة المفاتيح ج ٦ ص ٢٣٠٢ في تشريح حديث ٣٥٢٤ .

امام بغوي رَحِمَهُ اللهُ په '' شرح السنة '' کې ددې تشريح داسې کړی : قَوْلُهُ: «كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ» يُرِيْدُ اللَّائِيْ يَلْبَسْنَ ثِيَابًا رِقَاقًا تَصِفُ مَا تَحْتَهَا. فَهُنَّ كَاسِيَاتٌ فِي الظَّاهِرِ. عَارِيَاتٌ فِي الْحَقِيْقَةِ. وَقِيْلَ: هُنَّ اللَّانِيْ يُسْدِلْنَ الْخُمُرَ مِنْ وَرَائِهِنَّ. فَتَنْكَشِفُ صُدُوْرُهُنَّ. فَهُنَّ كَاسِيَاتٌ بِمَنْزِلَةِ الْعَارِيَاتِ إِذَا كَانَ لَا يَسْتُرُ لِبَاسُهُنَّ جَمِيْعَ أَجْسَامِهِنَّ . وَقِيْلَ : أَرَادَ كَاسِيَاتٌ مِنْ نِعَمِ اللهِ تَعَالٰى. عَارِيَاتٌ مِنَ الشُّكْرِ . وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ. شرح السنة للبغوي ج ١٠ ص ٢٧٢ في تشريح حديث ٢٥٧٨ .

یا ورنه هغه ښځې مراد دي چې په ناز او نخرو سره ګرځي ددې د پاره چې سړي ورته مائله شي . یا ورنه هغه ښځې مراد دي چې د پاکدامنۍ نه اعراض کوي او ګناه طرف ته مائله کیږي . د دینه علاوه نور مطلبونه یې هم شته . (١)

( رُءُوْسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ . سرونه به یې د بختي اوښ د خوزیدونکي قب په شان خوزي ) : ددې مطلب دادی چې دا ښځې د خپل سر ویښتان په کپړه یا بل شي باندې اوتړي نو لکه څرنګې چې د بختي اوښ قب د څورب والي په وجه په تللو کې اخوا دیخوا خوزي نو همدغه شان ددې ښځو سرونه هم د بختي اوښ د قب په شان خوزي .

یا دا مطلب دی چې دا ښځې پردو سړو ته نیغ نیغ ګوري ، خپل نظر او خپل سرونه ورنه نه ښکته کوي . (٢)

---

(١) ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ په " مرقاة " کې ددې تشریح داسې کړی : (مُمِيلَاتٌ) : أَيْ: قُلُوْبَ الرِّجَالِ إِلَيْهِنَّ. أَوِ الْمَقَانِعَ عَنْ رُءُوْسِهِنَّ لِيَظْهَرَ وُجُوْهُهُنَّ . وَقِيْلَ: مُمِيلَاتٌ بِأَكْتَافِهِنَّ . وَقِيْلَ: يُمِلْنَ غَيْرَهُنَّ إِلَى فِعْلِهِنَّ الْمَذْمُوْمِ (مَائِلَاتٌ) : أَيْ: إِلَى الرِّجَالِ بِقُلُوْبِهِنَّ أَوْ بِقَوَالِبِهِنَّ . أَوْ مُتَبَخْتِرَاتٌ فِيْ مَشْيِهِنَّ . أَوْ زَائِغَاتٌ عَنِ الْعَفَافِ . أَوْ مَائِلَاتٌ إِلَى الْفُجُوْرِ وَالْهَوٰى . وَقِيْلَ : مَائِلَاتٌ يَمْتَشِطْنَ مِشْطَةَ الْمَيْلَاءِ . وَقِيْلَ: مِشْطَةُ الْبَغَايَا مُمِيلَاتٌ يُمَشِّطْنَ غَيْرَهُنَّ بِتِلْكَ الْمِشْطَةِ. مرقاة المفاتيح ج ٦ ص ٢٣٠٢ في تشريح حديث ٣٥٢٤ .

امام بغوي رَحِمَهُ اللهُ په " شرح السنة " کې ددې تشریح داسې کړی : قَوْلُهُ: « مَائِلَاتٌ » قِيْلَ زَائِغَاتٌ عَنِ اسْتِعْمَالِ طَاعَةِ اللهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى وَمَا يَلْزَمُهُنَّ مِنْ حِفْظِ الْفُرُوْجِ . « مُمِيلَاتٌ ». أَيْ: يُعَلِّمْنَ غَيْرَهُنَّ الدُّخُوْلَ فِيْ مِثْلِ فِعْلِهِنَّ. كَمَا يُقَالُ: أَخْبَثَ فُلَانٌ فُلَانًا. فَهُوَ مُخْبِثٌ : إِذْ عَلَّمَهُ الْخُبْثَ . وَأَدْخَلَهُ فِيْهِ . وَقِيْلَ : مَائِلَاتٌ : مُتَبَخْتِرَاتٌ فِيْ مَشْيِهِنَّ. « مُمِيلَاتٌ » : يُمِلْنَ أَكْتَافَهُنَّ وَأَعْطَافَهُنَّ. شرح السنة للبغوي ج ١٠ ص ٢٧٢ في تشريح حديث ٢٥٧٨ .

(٢) په " مرقاة " کې ذکر دي : ( رُءُوْسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ ) أَيْ: يُعَظِّمْنَهَا وَيُكَبِّرْنَهَا بِلَفِّ عِصَابَةٍ وَنَحْوِهَا . وَقِيْلَ: يَطْمَحْنَ إِلَى الرِّجَالِ لَا يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ . وَلَا يُنَكِّسْنَ رُءُوْسَهُنَّ ( الْمَائِلَةِ) : صِفَةٌ لِلْأَسْنِمَةِ. وَهِيَ جَمْعُ السَّنَامِ، وَالْمَائِلَةُ مِنَ الْمَيْلِ ، لِأَنَّ أَعْلَى السَّنَامِ يَمِيْلُ لِكَثْرَةِ شَحْمِهِ. وَهٰذَا مِنْ صِفَاتِ نِسَاءِ مِصْرَ. مرقاة المفاتيح ج ٦ ص ٢٣٠٢ في تشريح حديث ٣٥٢٤ .

په " شرح السنة " کې ذکر دي ، وَقَوْلُهُ: « رُءُوْسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ » قِيْلَ : مَعْنَاهُ : أَنَّهُنَّ يُعَظِّمْنَ رُءُوْسَهُنَّ بِالْخُمُرِ وَالْعَمَائِمِ حَتّٰى تُشْبِهَ أَسْنِمَةَ الْبُخْتِ . وَقِيْلَ : يَطْمَحْنَ إِلَى الرِّجَالِ. لَا يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ. وَلَا يُنَكِّسْنَ رُءُوْسَهُنَّ . شرح السنة للبغوي ج ١٠ ص ٢٧٢ في تشريح حديث ٢٥٧٨ .

نبي ﷺ د داسې ښځو په باره کې فرمايي : لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ ، وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا . دوی به جنت ته داخلې نشي ، او د جنت بُوی به هم اُو نه مومي .

ددې مطلب دادی چې کوم وخت پاکدامنې ښځې جنت ته داخليږي او د جنت بُوی محسوسوي نو په هغه وخت کې به دوی جنت ته نه داخليږي او د جنت بُوی به نه محسوسوي ، اګر چې ددې ګناه سزا خوړلو نه پس به آخر دا جنت ته داخليږي ، ځکه هر مؤمن به د سزا خوړلو نه پس آخر هم جنت ته ځي .

يا د حديث مطلب دادی چې کومې ښځې ځان ته د ګناه حلاله اوګڼي نو دا به هيڅ کله جنت ته داخلې نشي او د جنت بُوی به محسوس نکړي ، ځکه حرام کار ځان ته حلال ګڼړل کُفر دی ، او د کافر د پاره جنت نشته .

يا ددې حديث نه مراد زَجر او تَشديد دی . (۱)

نبي عليه السلام په خپله زمانه کې داسې ښځې نه وې ليدلی ځکه په هغه زمانه کې حيا او پَرده وه خو چې بيا هم نبي عليه السلام خبر ورکړو " چې په آئنده زمانه کې به د سر ښځې پيدا کيږي " او اوس يقيني چې همداسې ښځې شته نو دا د نبي ﷺ معجزه وه چې د آئنده زمانې د ښځو په باره کې يې څنګه خبر ورکړې وُ هماغه شان صحيح اُوخَت . (۲)

**عبرت** : په دې حديث کې د هغه ښځو د پاره سخته سزا ذکر شوه چې هغوی نرۍ کپړې اغوندي ، يا داسې کپړې آغوندي چې په هغې کې يې د بدن څه حصه ښکاري .

---

(۱) (لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ) : صِفَةٌ لِلنِّسَاءِ . وَلَمْ يَذْكُرْ لِلرِّجَالِ مِثْلَهَا اخْتِصَارًا وَإِيجَازًا ذَكَرَهُ الطِّيبِيُّ (وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا . وَإِنَّ رِيحَهَا لَتُوجَدُ) : جُمْلَةٌ حَالِيَةٌ (مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا) : أَيْ : مِائَةِ عَامٍ مَثَلًا . قَالَ الْقَاضِي : مَعْنَاهُ أَنَّهُنَّ لَا يَدْخُلْنَهَا وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا حِينَ مَا يَدْخُلُهَا وَيَجِدُ رِيحَهَا الْعَفَائِفُ الْمُتَوَرِّعَاتُ . لَا أَنَّهُنَّ لَا يَدْخُلْنَ أَبَدًا لِقَوْلِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَدِيثِ أَبِي ذَرٍّ ﷺ : « وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ » ثَلَاثًا . أَقُولُ : وَيُمْكِنُ أَنْ يَكُونَ مَحْمُولًا عَلَى الْإِسْتِحْلَالِ . أَوِ الْمُرَادُ مِنْهُ الزَّجْرُ وَالتَّغْلِيظُ . وَيُمْكِنُ أَنَّهُنَّ لَا يَجِدْنَ رِيحَهَا وَإِنْ دَخَلْنَ فِي آخِرِ الْأَمْرِ

مرقاة المفاتيح ج ٦ ص ٢٣٠٢ في لشريح حديث ٣٥٢٤ .

(۲) (لَمْ أَرَهُمَا) : خَبَرٌ . وَفِي رِوَايَةٍ : لَمْ أَرَهُمَا بَعْدُ . اَلْمُرَادُ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمْ يَرَهُمَا فِي عَصْرِهِ لِطَهَارَةِ ذَلِكَ الْعَصْرِ بَلْ حَدَثَا بَعْدَهُ . قَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ : هَذَا الْحَدِيثُ مِنَ الْمُعْجِزَاتِ . وَفِيهِ ذَمُّ هَذَيْنِ الصِّنْفَيْنِ

مرقاة المفاتيح ج ٦ ص ٢٣٠٢ في لشريح حديث ٣٥٢٤

## نرۍ کپړې اغوستونکې ښځې د پاره د قیامت په ورځ رَسوائي

د بخاري شریف حدیث دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :

رُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٍ فِي الْآخِرَةِ .(۱)

ډیر لباس اغوستونکې ښځې به په آخرت کې بَربنډې وي .

یعنی چا چې نرۍ کپړې اغوستې وي او بدن یې پوره پټ نه وي نو د قیامت په ورځ به د دوی د پاره رَسوائي وي .

## نبي علیه السلام د نرۍ کپړې لاندې د بلې کپړې لګولو حکم اوکړو

۱ . په احادیثو کې ذکر دي چې رسولُ الله ﷺ حضرت دِحیه کلبي رضي الله عنه هرقل بادشاه ته لیږلې وُ ، چې کله واپس راغی نو نبي علیه السلام ده ته د کتّان نه جوړه شوې مِصري کپړه ورکړه ، او ورته وې فرمایل :

(دا په مینځ باندې دوه ځایه کړه ) ددې نیم نه ځانله قمیص جوړ کړه ، او نیمه کپړه خپلې بي بي ته ورکړه چې ځان له ورنه لوپټه جوړه کړي .

کله چې حضرت دِحیه کلبي رضي الله عنه روان شو نو پیغمبر علیه السلام ورته اوفرمایل :

مُرْهَا تَجْعَلُ تَحْتَهَا شَيْئًا لِئَلَّا يَصِفَ (۲)

بي بي ته دې حکم اوکړه چې ددینه لاندې څه کپړه اُولګوي ددې د پاره چې لاندې بدن

---

(۱) صحيح البخاري كِتَابُ العِلْمِ بَابُ العِلْمِ وَالعِظَةِ بِاللَّيْلِ رقم الحديث ۱۱۵ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۶۹۱ ، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۸۵۵۲ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۸۳۳ .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : كَمْ مِنْ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٍ يَوْمَ الْقِيَامَ . صحيح البخاري بَابُ مَاكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَجَوَّزُ مِنَ اللِّبَاسِ وَالبُسْطِ رقم الحديث ۵۸۴۴ .

(۲) عَنْ دِحْيَةَ بْنِ خَلِيْفَةَ الْكَلْبِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ بَعَثَهُ إِلَى هِرَقْلَ . فَلَمَّا رَجَعَ أَعْطَاهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُبْطِيَّةً فَقَالَ: « اِجْعَلْ صَدِيْعَهَا قَمِيْصًا وَ أَعْطِ صَاحِبَتَكَ صَدِيْعًا تَخْتَمِرُ بِهِ » فَلَمَّا وَلَّى قَالَ : « مُرْهَا تَجْعَلُ تَحْتَهَا شَيْئًا لِئَلَّا يَصِفَ » . المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۳۸۴ وقال الحاكم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . كنز العمال رقم الحديث ۴۱۲۴۱ ذيل لباس المرأة ، تفسير القرطبي ج ۱۴ ص ۲۴۴ سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۹ .

يې ورنه ښکاره نشي.

۲. حضرت أسامة بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي چې ماته نبي عليه السلام نرۍ کپړه راکړه، ما هغه خپلې بي بي ته ورکړه .... پيغمبر عليه السلام ماته أوفرمايل: هغې ته حکم اوکړه چې ددې لاندې بله کپړه أولړوي، ځکه ما سره دا يره ده چې (که بله کپړه او نه لړوي نو) ددينه به د هغې د بدن حُجم ښکاره شي. (۱)

ددې احاديثو نه معلومه شوه چې زَنانه به دومره نرۍ کپړې نه اغوندي چې د هغې نه يې لاندې بَدن ښکاري. او که کپړه نرۍ وي نو لاندې به ورته بل أسترا چوي.

د صحابه کرامو او تابعينو په دې باندې اجماع ده چې د ښځې د پاره داسې لباس اغوستل ناجائز دی چې د هغې لاندې بدن ښکاري، يا دومره تَنګ وي چې هر أندام يې ځانله ځانله ښکاري. (۲)

حضرت عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به هم زَنانه د داسې نري او تَنګ لباس اغوستلو نه منع کولی. (۳)

---

(۱) پوره حديث داسې دی: عَنِ ابْنِ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ. أَنَّ أَبَاهُ أُسَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. قَالَ: كَسَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُبْطِيَّةً كَثِيفَةً كَانَتْ مِمَّا أَهْدَاهَا دِحْيَةُ الْكَلْبِيُّ. فَكَسَوْتُهَا امْرَأَتِي. فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا لَكَ لَمْ تَلْبَسِ الْقُبْطِيَّةَ؟» قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ! كَسَوْتُهَا امْرَأَتِي. فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مُرْهَا فَلْتَجْعَلْ تَحْتَهَا غِلَالَةً. إِنِّي أَخَافُ أَنْ تَصِفَ حَجْمَ عِظَامِهَا». مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۱۷۸٦، و رقم الحديث ۲۱۷۸۸، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۳۷٦، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۳۲٦۲، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۵۸٦، مجمع الزوائد باب كسوة النساء رقم الحديث ۸٦۱۱.

(۲) لايختلف العلماء في جميع المذاهب: أنّ المرأة يجب عليها ألّا تلبس لباسًا ملتصقًا يصف جسمها، ولا أنْ تلبسَ شفافا يبدي لون او هيئة ما يجب عليها ستره من بدنها، وهنّ المقصودات بقوله صلى الله عليه وسلم في أحد الصنفين من اهل النار (نِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ) يعنى لاهي كاسية ولاهي عارية لشفوف لباسها و وصفه ..... وقد أجمع الصحابة والتابعون على النهي عنه، فقد جاء عن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ من وجوه: أنه كان ينهى النساء عن لبس ما يصف ويشف، رواه جماعة كعبدالله بن خبيب الجهني، و عبدالله بن أبي سلمة، وأبي يزيد المزني، و أبي صالح، و مسلم البطين، وسليمان بن مسهر كلهم يرويه عن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، و رواه نافع عن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، وعكرمة عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا. الحجاب في الشرع والفطرة ص ۷۵.

(۳) قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: ... وَلَا تُلْبِسُوا نِسَاءَكُمُ الْقَبَاطِيَّ. فَإِنَّهُ إِنْ لَا يَشِفَّ يَصِفُ. مصنف عبدالرزاق رقم ۹۲۵۳.

# حضرت عائشې رضي الله عنها د خپلې وریرې نرۍ لوپټه اوشلوله او غټه لوپټه یې ور په سَر کړه

په موطأ امام مالک او مشکوة شریف کې دا حدیث ذکر دی :

دَخَلَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَلٰى عَائِشَةَ رضي الله عنها زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَعَلٰى حَفْصَةَ خِمَارٌ رَقِيْقٌ. فَشَقَّتْهُ عَائِشَةُ رضي الله عنها وَكَسَتْهَا خِمَارًا كَثِيْفًا. (۱)

(یوه ورځ) حضرت حفصة بنت عبدالرحمن (چې دا د حضرت عائشې رضي الله عنها وریره وه) په حضرت عائشې رضي الله عنها باندې په داسې حالت کې راداخله شوه چې په دې باندې نرۍ لوپټه وه، حضرت عائشې رضي الله عنها (د غصې او هغې ته د اَدب د پاره) دا لوپټه په مینځ دوه ځایه اُوشلوله، او هغې ته یې غټ پړونې ور په سَر کړو. (۲)

# نرې لباس د مؤمنانو ښځو نه وي

په تفسیر قرطبي کې دا حدیث ذکر دی چې د بني تمیم څه ښځې حضرت عائشې رضي الله عنها ته راغلې، نرۍ کپړې یې اغوستې وې، حضرت عائشې رضي الله عنها ورته اوفرمایل :

إِنْ كُنْتُنَّ مُؤْمِنَاتٍ فَلَيْسَ هٰذَا بِلِبَاسِ الْمُؤْمِنَاتِ. وَإِنْ كُنْتُنَّ غَيْرَ مُؤْمِنَاتٍ فَتَمَتَّعْنَ بِهِ. (۳)

---

(۱) موطا الإمام مالک كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ مَا يُكْرَهُ لِلنِّسَاءِ لُبْسُهُ مِنَ الثِّيَابِ رقم الحديث ٦. مشكوة المصابيح كتاب اللباس الفصل الثالث رقم الحديث ۴۳۷۵ (۷۲). السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۳۲٦۵، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۰۸۳

(۲) (فَشَقَّتْهُ عَائِشَةُ) : أَيْ قَطَعَتْهُ نِصْفَيْنِ غَضَبًا عَلَيْهَا وَجَعَلَتْهُمَا مِنْدِيلَيْنِ. فَلَا يُرَدُّ أَنَّ فِيْ شَقِّهَا تَضْيِيْعًا (وَكَسَتْهَا) : أَيْ أَلْبَسَتْهَا بَدَلَ الْخِمَارِ الرَّقِيْقِ (خِمَارًا كَثِيْفًا) : أَيْ غَلِيْظًا خَشِنًا تَأْدِيْبًا لَهَا وَتَرْبِيَةً بِآدَابِهَا الْمَأْخُوْذَةِ مِنَ الْمُرَبِّي الْأَكْمَلِ فِيْ تَرْكِ الدُّنْيَا وَحُسْنِ مَلَابِسِهَا. وَيُحْتَمَلُ أَنَّ الْخِمَارَ كَانَ مِمَّا يَنْكَشِفُ مَا تَحْتَهَا مِنَ الْبَدَنِ وَالشَّعَرِ فَغَيَّرَتْهَا. مرقاة المفاتيح ج۷ ص۲۷۹۳ في تشريح حديث ۴۳۷۵.

(۳) دَخَلَ نِسْوَةٌ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ عَلٰى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَلَيْهِنَّ ثِيَابٌ رِقَاقٌ. فَقَالَتْ عَائِشَةُ رضي الله عنها : إِنْ كُنْتُنَّ مُؤْمِنَاتٍ فَلَيْسَ هٰذَا بِلِبَاسِ الْمُؤْمِنَاتِ. وَإِنْ كُنْتُنَّ غَيْرَ مُؤْمِنَاتٍ فَتَمَتَّعْنَ بِهِ. تفسير القرطبي ج ۱۴ ص ۲۴۴ سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۹ عودة الحجاب ج ۳ ص ۹۸. اظهار الحق الصواب في حكم الحجاب ص ۲۷.

که چیرته تاسو مومناني يَی نو بيا دا (نرۍ کپړې) د مؤمنانوښځو لباس ندی ، او که مؤمناني نه يَی نو بيا ددينه فائده واخلئ.

چې کومې زَنانه به نرې لباس اغوستې ؤ او حضرت عائشې رضي الله عنها به اُوليدی نو ورته فرمايل به يې چې مؤمناني ښځې داسې لباس نه اَچوي.

يوې زَنانه نرۍ لوپټه په سَر کړې وه نو حضرت عائشې رضي الله عنها ورته اوفرمايل :

لَمْ تُؤمِنْ بِسُوْرَةِ النُّوْرِ اِمْرَأَةٌ تَلْبَسُ هٰذَا ؟

ته په سورة نُور باندې ايمان نه لرې؟ آيا ښځه داسې لوپټه (او لباس) اچوي؟ (۱)

## نن صبا ښځې د غير مسلمو فيشن جوړوي

افسوس چې نن صبا ښځې د اسلامي لباس هيڅ پَرواه نه ساتي ، بلکه په اَمريکه او يورپي ملکونو کې چې بې حياء او پَليتې ښځې کوم قِسمه فيشن جوړ کړي هماغه شان فيشن د اسلامي ملکونو بعضې ښځې هم جوړوي :

داسې کپړې اغوندي چې مخ ، لاسونه ، سِينې ، او د بدن نور اَندامونه يې ښکاره وي ، لوپَټه يې په مرۍ کې اچولې وي او دواړه طرفونه يې شاته زړوَند کړي وي ، بعضې په کې داسې نرۍ کپړې اچوي چې د بدن لاندې حصه يې ټوله ښکاري ، بعضې په کې دومره تَنګ پَتلون اچوي چې د بدن د اَندامونو حُجم په کې واضحه معلوميږي ، او بيا فضول په بازارونو ، کلبونو او د سېل په ځايونو کې په نَخرو سره ګرځي .

داسې بې دِينه ښځې خپل اِيمانونه هم خرابوي او د نورو مسلمانانو اِيمانونه هم خرابوي.

## د نري لباس اغوستلو طِبي نقصانات

اوس ډاکټرانو هم دا منلې چې په ګرمۍ کې د نمر تېزې شعاع ګانې چې هغې ته په انګريزۍ کې اَلټرا وائيلټ ريز ( Ultra violet Rays ) وايي دا د پوستکي او بدن د پاره ډيرې نقصاني دي .

اوس چې د زَنانه په بدن باندې نرۍ کپړې وي نو د نمر دا شعاع بدن ته داخليږي او

(۱) وَأُدْخِلَتِ امْرَأَةٌ عَرُوْسٌ عَلٰى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وَعَلَيْهَا خِمَارٌ قُبْطِيٌّ مُعَصْفَرٌ. فَلَمَّا رَأَتْهَا قَالَتْ لَمْ تُؤْمِنْ بِسُوْرَةِ النُّوْرِ اِمْرَأَةٌ تَلْبَسُ هٰذَا . تفسير القرطبي ج ۱۴ ص ۲۴۴ سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۹ .

نقصان کوي . خو که په بدن باندې داسې کپړې وي چې بدن ورنه نه ښکاري نو بیا دا شعاع ګانې بهر پاتې کیږي ، بدن ته نه داخلیږي . (۱)

بهر حال ، د دریم شرط خلاصه دا راأووته چې زَنانه به داسې نرۍ بُرقع او نرۍ کپړې نه استعمالوي چې د هغې نه لاندې یې ټول بدن ښکاري .

## څلورم شرط : دا بُرقع او کپړې به داسې تنګې نه وي چې د اَندامونو حُجم ورنه معلومیږي

زَنانه چې د بهَر وتلو په وخت کومه بُرقع یا کپړې اچوي نو ددې د پاره دا ضروري ده چې دا به دومره تَنګې نه وي چې د بدن د اَندامونو حُجم ورنه معلومیږي ، بلکې آزاده بُرقع او آزادې کپړې به اغوندي .

حضرت عُمر رضي الله عنه به زَنانه د داسې تَنګو کپړو اغوستلو نه منع کولې چې هغه د بدن سره متّصل وي . چا ورته وویل : چې دا خو نرۍ ندي ، په دې کې خو لاندې بدن نه ښکاري . ده ورته اوفرمایل : إِلَّا يَشِفَّ فَإِنَّهُ يَصِفُ . اګر چې په دې کې لاندې بدن نه ښکاري خو د تنګ والي په وجه د اندامونو حُجم ورنه معلومیږي . (۲)

امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ به هم د زَنانه د پاره داسې تَنګې کپړې نه خوښولې چې د هغې په اغوستلو سره به د زَنانه د اَندامونو غټ والي ښکاریدو . (۳)

---

(۱) سنت نبوی اور جدید سائنس ج ۲ ص ۵۰ .

(۲) كَانَ عُمَرُ رضي الله عنه يَنْهَى النِّسَاءَ عَنْ لُبْسِ الْقَبَاطِيِّ . فَقَالُوا : إِنَّهُ لَا يَشِفُّ . فَقَالَ : « إِلَّا يَشِفَّ فَإِنَّهُ يَصِفُ » مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۴۷۹۲ .

قَالَ عُمَرُ رضي الله عنه : ... وَلَا تُلْبِسُوا نِسَاءَكُمُ الْقَبَاطِيَّ . فَإِنَّهُ إِنْ لَا يَشِفَّ يَصِفُ مصنف عبدالرزاق رقم ۹۱۵۳ مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۴۷۹۳

(۳) قَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ بَلَغَنِي أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نَهَى النِّسَاءَ أَنْ يَلْبَسْنَ الْقَبَاطِيَّ قَالَ وَإِنْ كَانَتْ لَا تَشِفُّ فَإِنَّهَا تَصِفُ . قَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللَّهُ : مَعْنَى تَصِفُ أَيْ تَلْصَقُ بِالْجِلْدِ . وَسُئِلَ مَالِكٌ عَنِ الْوَصَائِفِ يَلْبَسْنَ الْأَقْبِيَةَ فَقَالَ مَا يُعْجِبُنِي ذٰلِكَ . وَإِذَا شَدَّتْهَا عَلَيْهَا ظَهَرَ عَجُزُهَا . وَمَعْنَى ذٰلِكَ أَنَّهُ لِضِيقِهِ يَصِفُ أَعْضَاءَهَا عَجُزَهَا وَغَيْرَهَا مِمَّا شُرِعَ سِتْرُهُ . وَاللهُ أَعْلَمُ وَأَحْكَمُ . المنتقى شرح الموطا للباجي ج ۷ ص ۲۲۴

حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا هم نه خوښول چې زما د مرګ نه پس دې په کپړو کې زما د بدن جسم خلقو ته معلوم شي . نو حکم يې کړې وُ چې زما د وفات نه پس زما په کټ باندې د ډولۍ شان جوړه کړئ ، او د هغې د پاسه کپړه واچوئ چې زما د وجود حُجم ښکاره نشي ، بيا همداسې اُوشو چې ددې د وفات نه پس ددې په لاش باندې دا ډولۍ شان جوړه کړې شوه . (۱)

محترمو مسلمانانو ! تاسو دیته سوچ اوکړئ چې حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا بَدګنړل چې زما د مرګ نه پس دې زما د بدن حُجم ځاته ښکاره شي نو اوس به د ژوندې زَنانه د پاره داسې تَنګې کپړې څنګه جائز شي چې د هغې نه ددې د اَندامونو حُجم معلومېږي . (۲)

---

(۱) په احاديثو کې د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا واقعه داسې ذکر ده : عَنْ أُمِّ جَعْفَرٍ . أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ : " يَا أَسْمَاءُ ! إِنِّيْ قَدِ اسْتَقْبَحْتُ مَا يُصْنَعُ بِالنِّسَاءِ . إِنَّهُ يُطْرَحُ عَلَى الْمَرْأَةِ الثَّوْبُ فَيَصِفُهَا " . قَالَتْ أَسْمَاءُ : يَا بِنْتَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أُرِيْكِ شَيْئًا رَأَيْتُهُ بِأَرْضِ الْحَبَشَةِ ؟ فَدَعَتْ بِجَرَائِدَ رَطْبَةٍ فَحَنَتْهَا . ثُمَّ طَرَحَتْ عَلَيْهَا ثَوْبًا . فَقَالَتْ فَاطِمَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : " مَا أَحْسَنَ هٰذَا وَأَجْمَلَهُ يُعْرَفُ بِهِ الرَّجُلُ مِنَ الْمَرْأَةِ فَإِذَا أَنَا مِتُّ فَاغْسِلِيْنِيْ أَنْتِ وَعَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَلَا تُدْخِلِيْ عَلَيَّ أَحَدًا " . فَلَمَّا تُوُفِّيَتْ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا جَاءَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تَدْخُلُ . فَقَالَتْ أَسْمَاءُ : لَا تَدْخُلِيْ . فَشَكَتْ أَبَا بَكْرٍ . فَقَالَتْ : إِنَّ هٰذِهِ الْخَثْعَمِيَّةَ تَحُوْلُ بَيْنِيْ وَبَيْنَ ابْنَةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . وَقَدْ جَعَلَتْ لَهَا مِثْلَ هَوْدَجِ الْعَرُوْسِ . فَجَاءَ أَبُوْ بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَوَقَفَ عَلَى الْبَابِ . فَقَالَ : يَا أَسْمَاءُ ! مَا حَمَلَكِ أَنْ مَنَعْتِ أَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلْنَ عَلَى ابْنَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعَلْتِ لَهَا مِثْلَ هَوْدَجِ الْعَرُوْسِ ؟ فَقَالَتْ : أَمَرَتْنِيْ أَنْ لَا تُدْخِلِيْ عَلَيَّ أَحَدًا وَأَرَيْتُهَا هٰذَا الَّذِيْ صَنَعْتُ وَهِيَ حَيَّةٌ فَأَمَرَتْنِيْ أَنْ أَصْنَعَ ذٰلِكَ لَهَا . فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : فَاصْنَعِيْ مَا أَمَرَتْكِ . ثُمَّ انْصَرَفَ وَغَسَلَهَا عَلِيٌّ . وَأَسْمَاءُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا . السنن الكبرى للبيهقي كِتَابُ الْجَنَائِزِ جُمَّاعُ أَبْوَابِ وَقْتِ الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَائِزِ بَابُ مَا وَرَدَ فِي النَّعْشِ لِلنِّسَاءِ رقم الحديث ٦٩٣٠ ، حلية الاولياء ج٢ ص ٤٣ ، كنز العمال رقم الحديث ٣٧٧٥٩ موتها رضي الله عنها .

(۲) قال العلامة الألباني رحمه الله : فانظر إلى فاطمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بضعة النبي صلى الله عليه وسلم كيف استقبحت أن يصف الثوب المرأة وهي ميتة . فلا شك أن وصفه إياها وهي حية أقبح وأقبح . فليتأمل في هذا مسلمات هذا العصر اللاتي يلبسن من هذه الثياب الضيقة . ثم ليستغفرن الله تعالى ، وليتبن إليه ، وليذكرن قوله صلى الله عليه وسلم : " اَلْحَيَاءُ وَالْإِيْمَانُ قُرِنَا جَمِيْعًا . فَإِذَا رُفِعَ أَحَدُهُمَا رُفِعَ الْآخَرُ " . حجاب المرأة المسلمة للألباني ص ٦٣ ، عودة الحجاب ج ٣ ص ١٦٠ .

بهر حال ، د زَنانه د پاره په داسې تَنګه بُرقع يا تَنګو کپړو کې د پرَدو سړو مخې ته راتلل منع دي چې په هغې کې ددې د بدن کيفيت ظاهرېږي . (۱)

## د تنګ لباس اغوستلو طِبّي نقصانات

ډاکټران هم دا وايي چې تَنګې کپړې د وجود د پاره ډيرې نقصاني دي ؛ ځکه چې کله انسان تَنګې کپړې واغوندي نوپه دې سره د بدن باريکه مسلز ( Muscles ) کمزوري کيږي ، د هغې حرکت ختميږي ، او مړه کيږي ، چې په دې سره په بدن کې ذِهني دَباؤ ، د اَعصابو او پَټو بيماري پيدا کيږي . (۲)

## پنځم شرط : زَنانه به د سړو په شان لباس نه اچوي

د ښځې د پاره د سړو په شان لباس اچول حرام دی ، او سړو ته هم د ښځو په شان لباس اچول حرام دی ، کوم نارينه يا زَنانه چې دا کار کوي نو په هغوی باندې نبي عليه السلام لعنت ويلې دی .

۱. د ابوداؤد شريف حديث دی ، حضرت ابوهريرة ﷺ فرمائي : لَعَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَ يَلْبَسُ لِبْسَةَ الْمَرْاَةِ ، وَالْمَرْاَةَ تَلْبَسُ لِبْسَةَ الرَّجُلِ . (۳) .

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم لعنت ليږلې دی په هغه سړي باندې چې د ښځو په شان لباس اچوي ، او په هغه ښځه باندې لعنت ليږلې دی چې د سړو په شان لباس اچوي .

۲ . د بخاري شريف حديث دی ، حضرت عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي :

لَعَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُتَشَبِّهِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ ، وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ

---

(۱) فتاوی محموديه ج ۲۸ ص ۸۲ پرده کا ثبوت اور اس کا وجوب .

(۲) سنت نبوی اور جديد سائنس ج۲ ص ۲۳٦ .

(۳) سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي لِبَاسِ النِّسَاءِ رقم الحديث ۴۰۹۸ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۸۳۰۹ ، مشكاة المصابيح كتاب اللباس بَابُ التَّرَجُّل الفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۴۴٦۹(٥١) ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۹۲۰۹ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ٥٧٥۱ .

وفي رواية : لَعَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَةَ مِنَ النِّسَاءِ . سنن ابي داؤد رقم الحديث ۴۰۹۹ .

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم په هغه ښځه باندې لعنت ليږلې دی چې د سړو سره مشابهت کوي .

النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ. (۱)

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم په هغه سړو باندې لعنت ويلې چې د ښځو سره مُشابهت کوي، او په هغه ښځو يې هم لعنت ويلې چې د سړو سره مشابهت کوي.

**د حديث تشريح:** حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې امام طبري رَحِمَهُ اللهُ ددې معنٰى دا ذکر کړې چې: د سړو د پاره هغه لباس اچول، يا هغه زِينت کول ناجائز دى کوم چې د ښځو سره خاص دى. همدغه شان د ښځې د پاره هم هغه لباس اچول ناجائز دى کوم چې د سړو سره خاص وي.

لهذا کوم سړې چې هغه لباس اچوي چې هغه د ښځو سره خاص وي، يا قصدًا د ښځو په شان حرکات، سکنات او خبرې کوي لکه دا نن صبا چې يې هيجړاګان کوي نو په داسې کس باندې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم لعنت ليږلې دى.

البته که د کوم سړي خبرې يا حرکات پيدائشي د ښځو په شان وو او ده دا قصدًا نه کول نو دا بيا ګناهګار ندى؛ ځکه په دې کې اوس دده څه اختيار نشته. (۲)

(۱) صحيح البخاري كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ: الْمُتَشَبِّهُونَ بِالنِّسَاءِ، وَالْمُتَشَبِّهَاتُ بِالرِّجَالِ رقم الحديث ۵۸۸۵، سنن ابن ماجة بابٌ في المخنّثين رقم الحديث ۱۹۰۴، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۶۴۹۳، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۲۸۰۱، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۱۶۴، مشكوة المصابيح كتاب اللبَاس بَابُ التَّرَجُّل الفَصْل الاول رقم الحديث ۴۴۲۹(۱۱).

(۲) (لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُتَشَبِّهِينَ) قَالَ الطَّبَرِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: اَلْمَعْنٰى لَا يَجُوزُ لِلرِّجَالِ التَّشَبُّهُ بِالنِّسَاءِ فِي اللِّبَاسِ وَالزِّينَةِ الَّتِي تَخْتَصُّ بِالنِّسَاءِ وَلَا الْعَكْسُ. قُلْتُ وَكَذَا فِي الْكَلَامِ وَالْمَشْيِ. فَأَمَّا هَيْئَةُ اللِّبَاسِ فَتَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ عَادَةِ كُلِّ بَلَدٍ فَرُبَّ قَوْمٍ لَا يَفْتَرِقُ زِيُّ نِسَائِهِمْ مِنْ رِجَالِهِمْ فِي اللُّبْسِ لٰكِنْ يَمْتَازُ النِّسَاءُ بِالْإِحْتِجَابِ وَالْإِسْتِتَارِ. وَأَمَّا ذَمُّ التَّشَبُّهِ بِالْكَلَامِ وَالْمَشْيِ فَمُخْتَصٌّ بِمَنْ تَعَمَّدَ ذٰلِكَ. وَأَمَّا مَنْ كَانَ ذٰلِكَ مِنْ أَصْلِ خِلْقَتِهِ فَإِنَّمَا يُؤْمَرُ بِتَكَلُّفِ تَرْكِهِ وَالْإِدْمَانِ عَلٰى ذٰلِكَ بِالتَّدْرِيجِ. فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ وَتَمَادٰى دَخَلَهُ الذَّمُّ وَلَا سِيَّمَا إِنْ بَدَا مِنْهُ مَا يَدُلُّ عَلَى الرِّضَا بِهِ وَأَخْذُ هٰذَا وَاضِحٌ مِنْ لَفْظِ الْمُتَشَبِّهِينَ. وَأَمَّا إِطْلَاقُ مَنْ أَطْلَقَ كَالنَّوَوِيِّ رحمه الله وَأَنَّ الْمُخَنَّثَ الْخِلْقِيَّ لَا يَتَّجِهُ عَلَيْهِ اللَّوْمُ فَمَحْمُولٌ عَلٰى مَا إِذَا لَمْ يَقْدِرْ عَلٰى تَرْكِ التَّثَنِّي وَالتَّكَسُّرِ فِي الْمَشْيِ وَالْكَلَامِ بَعْدَ تَعَاطِيهِ الْمُعَالَجَةَ لِتَرْكِ ذٰلِكَ وَإِلَّا مَتٰى كَانَ تَرْكُ ذٰلِكَ مُمْكِنًا وَلَوْ بِالتَّدْرِيجِ فَتَرَكَهُ بِغَيْرِ عُذْرٍ لَحِقَهُ اللَّوْمُ. فتح الباري لابن حجر ج ۱۰ ص ۳۳۲.

لهذا کوم سړي چې داسې لباس اغوندي چې هغه د ښځو سره خاص وي ، يا کومې ښځې داسې لباس اغوندي چې هغه د سړو سره خاص وي نو په دوی باندې رسولُ الله صلی الله عليه وسلم لعنت ليږلې دی .

۳ . بلکه په داسې خلقو باندې الله تعالی هم لعنت ليږلې دی .

رسولُ الله ﷺ فرمايي: لَعَنَ اللهُ الرَّجُلَ يَلْبَسُ لِبْسَةَ الْمَرْأَةِ ، وَالْمَرْأَةَ تَلْبَسُ لِبْسَةَ الرَّجُلِ . (۱)

الله تعالی په هغه سړي باندې لعنت ليږلی چې هغه د ښځو په شان لباس اغوندي ، او په هغه ښځه باندې يې هم لعنت ليږلی چې هغه د سړو په شان لباس اغوندي .

٤ . داسې خلق د نبي عليه السلام کامِل اُمّتيان ندي . رسولُ الله ﷺ فرمايي :

لَيْسَ مِنَّا مَنْ تَشَبَّهَ بِالرِّجَالِ مِنَ النِّسَاءِ ، وَلَا مَنْ تَشَبَّهَ بِالنِّسَاءِ مِنَ الرِّجَالِ . (۲)

هغه ښځه زمونږ کامِله اُمّتی نده کومه چې د سړو سره مشابهت کوي ، او هغه سړی زمونږ کامِل اُمّتي ندی کوم چې د ښځو سره مشابهت کوي .

## شپږم شرط : زَنانه به د کافرانو ښځو په شان بې حياء لباس نه اچوي

سړي او ښځې دواړه به د کافرانو د خاص لباس په شان لباس نه اَچوي .ځکه نبي عليه السلام يو صحابي ته د يو لباس په باره کې فرمائلي وو :

---

←←←← قَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : اَلْمُخَنَّثُ ضَرْبَانِ، أَحَدُهُمَا: مَنْ خُلِقَ كَذٰلِكَ وَلَمْ يَتَكَلَّفِ التَّخَلُّقَ بِأَخْلَاقِ النِّسَاءِ وَ زِيِّهِنَّ وَكَلَامِهِنَّ وَحَرَكَاتِهِنَّ، وَهٰذَا لَا ذَمَّ عَلَيْهِ وَلَا إِثْمَ وَلَا عَيْبَ وَلَا عُقُوبَةَ لِأَنَّهُ مَعْذُورٌ . وَالثَّانِيُ مَنْ يَتَكَلَّفُ أَخْلَاقَ النِّسَاءِ وَحَرَكَاتِهِنَّ وَسَكَنَاتِهِنَّ وَكَلَامِهِنَّ وَزِيِّهِنَّ. فَهٰذَا هُوَ الْمَذْمُومُ الَّذِيْ جَاءَ فِي الْحَدِيْثِ لَعْنُهُ .
مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۲۸۱۹ في تشريح حديث ۴۴۲۹ .

(۱) الجامع الصغير وزيادته رقم الحديث ۹۲۲۶ ، كنز العمال كتاب المعيشة والعادات الباب الثالث في اللباس الفصل الثاني في محظورات اللباس منع تزي الرجال بالنساء وبالعكس رقم الحديث ۴۱۲۳۵ ، مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۲۸۳۶ في تشريح ۴۴۶۹ .

(۲) مجمع الزوائد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي الْمُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ رقم الحديث ۱۳۱۹۶ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۶۸۷۵ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۳۱۴۱ ، حلية الاولياء ج ۳ ص ۳۲۱ ، كنز العمال رقم الحديث ۴۱۲۳۷ .

إِنَّ هٰذِهِ مِنْ ثِيَابِ الْكُفَّارِ فَلَا تَلْبَسْهَا . (۱) بیشکه دا د کافرانو لباس دی دا مه اغونده.

بل دا چې څوک د کافرانو سره د هغوی په مخصوص شیانو کې مشبهت کوي نو د قیامت په ورځ به د دوی حشر هم د هغوی سره وي.

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي : مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ . (۲)

چا چې د يو قوم سره ( د هغوی په مخصوصو اعمالو کې ) مُشابهت اوکړو نو دا به د هماغه خلقو په ډله کې شماريږي ( ځکه ده د هغوی په شکل وصورت جوړولو سره د هغوی ډله زياته کړه ).

علامه طيبي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : د مُشابهت نه مراد عام دی که هغه په شکل و صورت جوړولو کې وي ، که په اخلاقو کې وي ، او که د دوی په خاصو مذهبي طريقو کې وي. (۳)

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رضي الله عنهما ، قَالَ: رَأَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيَّ ثَوْبَيْنِ مُعَصْفَرَيْنِ. فَقَالَ: « إِنَّ هٰذِهِ مِنْ ثِيَابِ الْكُفَّارِ فَلَا تَلْبَسْهَا » . صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّينَةِ بَابُ النَّهْيِ عَنْ لُبْسِ الرَّجُلِ الثَّوْبَ الْمُعَصْفَرَ رقم الحديث ۲۷ (۲۰۷۷) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۶۵۱۳ ، المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۳۹۸ ، مشكاة المصابيح رقم الحديث ۴۳۲۷(۲۴).

وفي رواية : عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو ، قَالَ: رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيَّ ثَوْبَيْنِ مُعَصْفَرَيْنِ. فَقَالَ: « أَأُمُّكَ أَمَرَتْكَ بِهٰذَا ؟ » قُلْتُ: أَغْسِلُهُمَا . قَالَ: « بَلْ أَحْرِقْهُمَا » . صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّينَةِ بَابُ النَّهْيِ عَنْ لُبْسِ الرَّجُلِ الثَّوْبَ الْمُعَصْفَرَ رقم الحديث ۲۸ (۲۰۷۷).

( مُعَصْفَرَيْنِ ) : أي مصبوغين بعصفر والعصفر صبغ أصفر اللون .... ( بَلْ أَحْرِقْهُمَا ) الأمر بإحراقهما عقوبة وتغليظ لزجره وزجر غيره عن مثل هذا الفعل . شرح محمد فؤاد عبد الباقي على صحيح مسلم .

(۲) سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي لُبْسِ الشُّهْرَةِ رقم الحديث ۴۰۳۱ . مشكوة المصابيح كِتَابُ اللِّبَاسِ الْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۴۳۴۷ (۴۴) . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۵۱۱۴ ، شعب الايمان رقم الحديث ۱۱۵۴ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۱۹۴۰۱ .

(۳) ملا علي قاري رحمه الله ددې حديث په تشريح کې ليکلي : ( مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ ) : أَيْ مَنْ شَبَّهَ نَفْسَهُ بِالْكُفَّارِ مَثَلًا فِي اللِّبَاسِ وَغَيْرِهِ ، أَوْ بِالْفُسَّاقِ أَوِ الْفُجَّارِ أَوْ بِأَهْلِ التَّصَوُّفِ وَالصُّلَحَاءِ الْأَبْرَارِ . ( فَهُوَ مِنْهُمْ ) : أَيْ فِي الْإِثْمِ وَالْخَيْرِ . قَالَ الطِّيبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : هٰذَا عَامٌّ فِي الْخَلْقِ وَالْخُلُقِ وَالشِّعَارِ . مرقاة المفاتيح ۲۷۸۲/۷ كِتَابُ اللِّبَاسِ الْفَصْلُ الثَّانِي في تشريح حديث ۴۳۴۷(۴۴).

## اووم شرط : خپل زِينت به نه ښکاره کوي

زَنانه چې کله د څه ضرورت په وجه د کور نه بهر اُوځي نو سُرخي پُوډَر به نه مږي ، او پردو خلقو ته به خپل زِينت نه ښکاره کوي .

ځکه په زينت سره بهر وتل نورو خلقو ته د زِنا دعوت ورکول دي . (۱)

الله تعالى فرمايي : ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾ . (۲)

ترجمه : او دوی دې خپل زِينت نه ښکاره کوي مگر کوم چې ددينه پخپله ( کار او حرکت کولو سره ) ښکاره شي .

افسوس صد افسوس ، نن صبا ښځې چې د خپلو خاوندانو سره په خپلو کورونو کې وي نو په زړو کپړو کې خيرَنې گرځي ، او بَدبُوئي ورنه ځي ، خو چې کله بهر ته اُوځي نو ځان صفا کړي ، ښائسته کپړې واغوندي ، سترگې تورې کړي ، شونډې سرې کړي ، سُرخي پُوډَر استعمال کړي ، په ځان خوشبو اُولړوي ، لوپټه د سَر په ځای په مرۍ کې واچوي ، سينې او مټونه ښکاره کړي ، او کلاوُ مخ په بازار کې روانه وي . حالانکه په قرآن کريم او احاديثو کې ددينه سخته منع راغلې ده .

بلکه ښځه به په کور کې د خپل خاوند د پاره زِينت کوي ، او چې کله بهر اُوځي نو په ساده لباس او پَرده کې به ځي ، خپل زِينت به چاته نه ښکاره کوي .

## اتم شرط : ښځه به د خپل نظر او شرمگاه حفاظت کوي

زَنانه به د بهر وتلو په وخت د خپل نظر او شرمگاه حفاظت کوي . الله تعالى فرمايي :

﴿ وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ ﴾ . (۳)

ترجمه : اې پيغمبره ! ته مؤمنانو ښځو ته اُووايه چې دوی دې خپلې سترگې ( او نظرونه ) ښکته ساتي ، او د خپلو شرَمگاهو حفاظت دې کوي .

**بدنظري د سترگو زِنا ده :** بَدنظري ته په احاديثو کې د سترگو زِنا ويل شوی .

---

(۱) فتاوی محموديه ج ۲۷ ص ۴۶۷ باہر کے احکام.

(۲) النور آية ۳۱ .

(۳) النور آية ۳۱ .

د بخاري شريف حديث دی، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ. د سترګو زِنا غلط نظر دی . (۱)

بَدنظری ته د سترګو زِنا ځکه ویل شوی چې دا کله سبب او ګرځي د زِنا د پاره ، نو مبالغةً ورته د سترګو زِنا ویل شوی . (۲)

**بدنظري د شيطان زهريله غشي دی** : بد نظري د شيطان زهريله غشي دی ددې په وجه مسلمانان په ډيرو ناجائزو کارونو کې مبتلاء کيږي .

حديثِ قدسي دی ، الله تعالى فرمايي : إِنَّ النَّظْرَةَ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيْسَ مَسْمُوْمٌ. مَنْ تَرَكَهَا مَخَافَتِيْ أَبْدَلْتُهُ إِيْمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِيْ قَلْبِهِ . (۳)

بيشکه بَدنظري د ابليس په غشو کې زهريله غشي دی ، څوک چې زما د ډَرې دا پريږدي نو زه به ورته ددې په عِوض کې داسې اِيمان ورکړم چې دا به په خپل زړه کې د هغې خوږوالي محسوسوي .

---

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا. أَدْرَكَ ذٰلِكَ لَا مَحَالَةَ . فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ، وَزِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ . وَالنَّفْسُ تَمَنّٰى وَتَشْتَهِيْ . وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذٰلِكَ كُلَّهُ وَيُكَذِّبُهُ . صحيح البخاري كِتَابُ الإِسْتِئْذَانِ بَابُ زِنَا الْجَوَارِحِ دُوْنَ الْفَرْجِ رقم الحديث ۶۲۴۳ ، صحيح مسلم كتابُ الْقَدَرِ بَابُ قُدِّرَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظُّهُ مِنَ الزِّنَا وَغَيْرِهِ رقم الحديث ۲۰(۲۶۵۷) .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ . وَاللِّسَانُ يَزْنِيْ . وَالْيَدَانِ تَزْنِيَانِ . وَالرِّجْلَانِ تَزْنِيَانِ . وَيُحَقِّقُ ذٰلِكَ الْفَرْجُ أَوْ يُكَذِّبُهُ . صحيح ابن حبان مخرجا كِتَابُ الْحُدُوْدِ بَابُ الزِّنٰى وَحَدِّهِ ذِكْرُ إِطْلَاقِ اسْمِ الزِّنٰى عَلَى الْأَعْضَاءِ إِذَا جَرٰى مِنْهَا بَعْضُ شُعَبِ الزِّنٰى رقم ۴۴۱۹ ، المعجم الكبير رقم ۸۶۶۱ ، مسند احمد مخرجا رقم ۸۵۳۹

(۲) ( فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ ) لِأَنَّ النَّظَرَ قَدْ يَجُرُّ إِلَى الزِّنَا فَتَسْمِيَةُ مُقَدِّمَةِ الزِّنَا بِالزِّنَا مُبَالَغَةٌ . أَوْ إِطْلَاقٌ لِلْمُسَبَّبِ عَلَى السَّبَبِ . مرقاة المفاتيح ج ۱ ص ۱۵۸ رقم الحديث ۸۶ .

(۳) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۳۶۲ ، الترغيب والترهيب لقوام السنة رقم الحديث ۳۸ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۲۹۳۶ باب غض البصر ، كنز العمال رقم الحديث ۱۳۰۶۷ ، تفسير ابن كثير ج ۶ ص ۴۰ سورة النور في تشريح آية ۳۰ ، اعراب القرآن وبيانه ج ۶ ص ۵۹۷ ، الزواجر ج ۲ ص ۴ .

**په بدنظرۍ سره د شیطان طمع پیدا کېږي** حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمايي :

مَا كَانَ مِنْ نَظْرَةٍ فَلِلشَّيْطَانِ فِيهَا مَطْمَعٌ .

کوم نظر چې غلط استعمال شي ( یعنی پردو ښځو ته اوکتل شي ) نو د شیطان په دې کې طمع وي .(۱)

**بدنظري د ګناهونو جرړه ده** علماؤ لیکلي چې د نظرحفاظت د شرمګاه نه ډېر ضروري دی ؛ ځکه لکه څرنګې چې د اور شروع د سپرغۍ ( بڅرکي ) نه کېږي نو همدغه شان د زنا ابتداء هم د بدنظرۍ نه کېږي .

علامه ابن قیم رَحِمَهُ اللهُ لیکلي : فَفِتْنَةُ النَّظَرِ أَصْلُ كُلِّ فِتْنَةٍ . (۲)

د بدنظرۍ فتنه د ټولو فتنو جرړه ده .

نن صبا بعضې ښځې ددې هیڅ پرواه نه ساتي ، په بازارونو کې پردو سړو ته نیغ نیغ ګوري ، همدارنګې د کرکټ ، هاکي ، او نورو لوبو په میدانونو کې ښځې او سړي یو ځای ناست وي او یو بل ته د شهوت په نظر ګوري ، حالانکه دا د شریعت د صریحو احکاماتو خلاف ورزي ده .

همدارنګې زنانه به په بازار کې په داسې تنګو کوڅو کې نه ګرځي چې هلته د ډیر رش په وجه د خپلو شرمګاهو حفاظت نشي کولی ؛ ځکه ډیر داسې بې کاره خلق شته چې کله په بازار کې رش جوړ شي یا د شپې په وخت بجلي لاړه شي نو دوی غلط حرکتونه کوي .

## نهم شرط : ښځه به د بهر وتلو په وخت خوشبو نه استعمالوي

ښځه چې کله د څه ضرورت په وخت بهر اوځي نو خوشبو ( عطر ) به نه استعمالوي ، ځکه په احادیثو کې ددینه سخته منع راغلی . رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

---

(۱) المعجم الکبیر للطبراني رقم الحدیث ۸۷۴۹ ، مجمع الزوائد كِتَابُ الْعِلْمِ بَابٌ فِي الْبِرِّ وَالْإِثْمِ رقم الحدیث ۸۱۹ وقال الهیثمي : رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ كُلُّهُ بِأَسَانِيدَ رِجَالُهَا ثِقَاتٌ. صحیح الترغیب والترهیب رقم الحدیث ۱۹۰۷(۸) کتاب النکاح و مایتعلق به ، شعب الایمان رقم الحدیث ۵۰۵۱ ، الزهد لابي داؤد رقم الحدیث ۱۲۵ ، کنزالعمال رقم الحدیث ۷۳۲۰ .

(۲) روضة المحبین ونزهة المشتاقین لابن القیم ص ۹۶ الباب السادس: في احکام النظر وغائلته وما يجني على صاحبه.

أَيُّمَا امْرَأَةٍ اِسْتَعْطَرَتْ فَمَرَّتْ عَلَى قَوْمٍ لِيَجِدُوا رِيحَهَا فَهِيَ زَانِيَةٌ . وَكُلُّ عَيْنٍ زَانِيَةٌ . (۱)

کومه ښځه چې په ځان باندې خوشبو (عطر) اولږوي ، بيا د سړو په مجلس باندې تيرېږي ددې د پاره چې هغوی ددې د عطرو بوی محسوس کړي نو داسې ښځه زناکاره ده ، او کومه سترګه چې داسې ښځې ته (د شهوت په نظر) ګوري نو هغه هم زناکاره ده .

همدا مضمون په نورو احاديثو کې هم بيان شوی . (۲)

**د حديث تشريح** : داسې ښځې ته ځکه زناکاره ويل شوی چې دا په دې عطرو سره د پردو سړو شهوت راپاروي او هغوی ځان طرف ته مائله کوي ، نو هغه خلق د سترګو په زنا کې ددې په وجه مبتلاء شو ، نو دا هم د سترګو په زنا کې مبتلاء شوه . (۳)

---

(۱) صحيح ابن خزيمة بَابُ التَّغْلِيظِ فِي تَعَطُّرِ الْمَرْأَةِ عِنْدَ الْخُرُوجِ لِيُوجَدَ رِيحُهَا وَتَسْمِيَةِ فَاعِلِهَا زَانِيَةً رقم الحديث ۱۶۸۱ قال الألباني: إسناده حسن. المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۳۴۹۷ وقال الحاكم: هذا حديث صَحِيحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . ووافقه الذهبي. مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۹۷۱۱ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۹۳۶۱ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۴۲۴ ، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۶۰۸ .

(۲) عَنْ أَبِي مُوسَى رضي الله عنه ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : كُلُّ عَيْنٍ زَانِيَةٌ . وَالْمَرْأَةُ إِذَا اسْتَعْطَرَتْ فَمَرَّتْ بِالْمَجْلِسِ فَهِيَ كَذَا وَكَذَا يَعْنِي زَانِيَةً . سنن الترمذي أَبْوَابُ الأَدَبِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ خُرُوجِ الْمَرْأَةِ مُتَعَطِّرَةً رقم ۲۷۸۶ قال الترمذي: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ . مشكوة المصابيح بَابُ الْجَمَاعَةِ وفضلها اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم ۱۰۶۵(۱۴)

(۳) قال الملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ : (يَعْنِي زَانِيَةً) لِأَنَّهَا قَدْ هَيَّجَتْ شَهْوَةَ الرِّجَالِ بِعِطْرِهَا وَحَمَلَتْهُمْ عَلَى النَّظَرِ إِلَيْهَا فَقَدْ زَنَى بِعَيْنِهِ، وَيَحْصُلُ لَهَا إِثْمٌ بِأَنْ حَمَلَتْهُ عَلَى النَّظَرِ إِلَيْهَا وَشَوَّشَتْ قَلْبَهُ. فَإِذَا هِيَ سَبَبُ زِنَاهُ بِالْعَيْنِ، فَتَكُونُ هِيَ أَيْضًا زَانِيَةً أَوْ كَأَنَّهَا هِيَ زَانِيَةٌ . قَالَ ابْنُ الْمَلَكِ : وَفِيهِ تَشْدِيدٌ وَمُبَالَغَةٌ فِي مَنْعِ النِّسْوَةِ عَنْ خُرُوجِهِنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ إِذَا تَعَطَّرْنَ . وَإِلَّا فَبَعْضُ الْأَعْيُنِ قَدْ عَصَمَهَا اللهُ تَعَالَى عَنِ الزِّنَا بِالنَّظَرِ إِلَيْهِنَّ. (كُلُّ عَيْنٍ) أَيْ: نَظَرَتْ إِلَى أَجْنَبِيَّةٍ عَنْ شَهْوَةٍ (زَانِيَةٌ): لِأَنَّ زِنَاهَا النَّظَرُ . أَوْ لِأَنَّهُ مِنْ مُقَدِّمَاتِ الزِّنَا. مرقاة المفاتيح ج ۳ ص ۸۳۸ في تشريح ۱۰۶۵ .

قال المناوي رَحِمَهُ اللهُ : (فَهِيَ زَانِيَةٌ) أي كالزانية في حصول الإثم و إن تفاوت لأن فاعل السبب كفاعل المسبب . قال الطيبي رَحِمَهُ اللهُ : شبه خروجها من بيتها متطيبة مهيجة لشهوات الرجال التي هي بمنزلة رائد الزنا بالزنا مبالغة وتهديدا وتشديدا عليها (وَكُلُّ عَيْنٍ زَانِيَةٌ) أي كل عين نظرت إلى محرم من امرأة أو رجل فقد حصل لها حظها من الزنا إذ هو حظها منه . فيض القدير شرح الجامع الصغير للمناوي ج ۳ ص ۱۴۷ .

علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ د ښځو د پاره " د کور نه بهر وتلو په وخت د خوشبو استعمالول" په ګناهِ کبيره کښې شمار کړی ، تر دې چې که خاوند ښځې ته ددې اجازت اوکړي خو بيا هم ديته د بهر وتلو په وخت خوشبو استعمالول ګناهِ کبيره ده . (۱)

علامه ابن حزم رَحِمَهُ اللهُ ليکلي : که ښځه د کور نه بهر وتلو په وخت خوشبو استعمال کړي يا ښائسته کپړې واغوندي نو خاوند به دا د تللو نه منع کوي . (۲)

بلکه که د يوې ښځې په کپړو يا بدن باندې خوشبوئي وي او دا د څه ضرورت په وجه بهر ته د تللو اراده لري نو دا به وينځي ، بيا به ځي .

نبي عليه السلام او صحابه کرامو به هغه ښځې جُمات ته د تللو نه منع کولې چې هغوی به خوشبو استعمال کړې وه ، بلکه هغوی ته به يې حکم کولو چې اول خوشبوئي اُووينځه او بيا جُمات ته ځه . (۳)

---

(۱) اَلْكَبِيْرَةُ التَّاسِعَةُ وَالسَّبْعُوْنَ بَعْدَ الْمِائَتَيْنِ خُرُوْجُ الْمَرْأَةِ مِنْ بَيْتِهَا مُتَعَطِّرَةً مُتَزَيِّنَةً وَلَوْ بِإِذْنِ الزَّوْجِ .
الزواجر عن اقتراف الكبائر ج ۲ ص ۷۱ .

(۲) وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَخْرُجْنَ مُتَطَيِّبَاتٍ. وَلَا فِيْ ثِيَابٍ حِسَانٍ، فَإِنْ فَعَلَتْ فَلْيَمْنَعْهَا . المحلى بالآثار لابن حزم ج ۲ ص ۱۷۰ مَسْأَلَةٌ مَنْعُ الْمَرْأَةِ وَالْأَمَةِ مِنْ حُضُوْرِ الصَّلَاةِ فِي الْمَسْجِدِ .

... فَإِذَا خَرَجْنَ مُتَزَيِّنَاتٍ أَوْ مُتَطَيِّبَاتٍ فَهُنَّ عَاصِيَاتٌ لِلّٰهِ تَعَالَى. خَارِجَاتٌ بِخِلَافِ مَا أُمِرْنَ . فَلَا يَحِلُّ إِرْسَالُهُنَّ حِيْنَئِذٍ أَصْلًا. المحلى بالآثار لابن حزم ج ۳ ص ۱۱۳

(۳) عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِذَا خَرَجَتِ الْمَرْأَةُ إِلَى الْمَسْجِدِ. فَلْتَغْتَسِلْ مِنَ الطِّيْبِ كَمَا تَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ . السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۹۳۶۲ .

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: مَرَّتْ بِأَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه امْرَأَةٌ وَرِيْحُهَا تَعْصِفُ. فَقَالَ لَهَا: إِلَى أَيْنَ تُرِيْدِيْنَ يَا أَمَةَ الْجَبَّارِ؟ قَالَتْ: إِلَى الْمَسْجِدِ . قَالَ: تَطَيَّبْتِ ؟ قَالَتْ : نَعَمْ . قَالَ: فَارْجِعِيْ فَاغْتَسِلِيْ. فَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ « لَا يَقْبَلُ اللهُ مِنَ امْرَأَةٍ صَلَاةً خَرَجَتْ إِلَى الْمَسْجِدِ وَرِيْحُهَا تَعْصِفُ حَتّٰى تَرْجِعَ فَتَغْتَسِلَ»

. صحيح ابن خزيمة بَابُ إِيْجَابِ الْغُسْلِ عَلَى الْمُتَطَيِّبَةِ لِلْخُرُوْجِ إِلَى الْمَسْجِدِ ... رقم الحديث ۱۶۸۲ سنن ابي داؤد كِتَابُ التَّرَجُّلِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَرْأَةِ تَتَطَيَّبُ لِلْخُرُوْجِ رقم الحديث ۴۱۷۴ . سنن ابن ماجة رقم الحديث ۴۰۰۲ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۷۳۵۶

نو چې کله په خَيْرُ القرون کې د زَنانهٔ د پاره بهر ته د وتلو په وخت په خوشبو لړولو باندې دومره سخت وعيد ؤ نو بيا نن صبا په دې شَرُّ القرُون کې به څنګه ددې اجازت وي؟

**ښځه په کور کې د خپل خاوند د پاره خوشبو استعمالولې شي**: ښځه په کور کې د خپل خاوند د پاره خوشبو (عطر) استعمالولې شي، بلکه په کور کې د خپل خاوند د پاره زينت کول او خوشبو استعمالول ډير بهتر دي ځکه په دې سره په خپل مينځ کې محبت پيدا کيږي. او چې کله ښځه په کور کې خيرَنه ګرځي او بَدبوئي ورنه ځي نو په دې سره ورنه د خاوند نفرت پيدا کيږي، او کورني نظام ګډوَډيږي.(۱)

## لسم شرط: بهَر ته د وتلو په وخت شرَنګيدونکي زيورات نه استعمالول

بهتر داده چې زَنانه بهر ته د وتلو په وخت زيورات وا نه چوي، او که اچوي يې نو بيا به داسې زيورات اچوي چې د تللو په وخت شرَنګار نه کوي؛ ځکه الله تعالى ددينه منع کړې:

﴿ وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِنْ زِينَتِهِنَّ ﴾.(۲)

ترجمه: او زَنانه دې (د تللو په وخت) زمکه په خپلو خپو باندې (ددې د پاره) په زُوره نه وهي چې په دې سره ددې د هغه پټو زيوراتو آواز معلوم شي.

## د زيوراتو استعمالولو حکم

د کومو زيوراتو نه چې آواز پيدا کيږي د هغې دوه قسمونه دي:

اول: چې په تللو کې ورنه آواز پيدا کيږي، يعنى ګونګري (شرَنګيدلي زيورات) يې اچولي وي نو داسې زيورات د زَنانه د پاره ممنوع دي ځکه په احاديثو کې ددينه ممانعت

(۱) قال المناوي رَحِمَهُ اللَّهُ: أما التطيب والتزين لِلزوج فمطلوبٌ محبوبٌ. قال بعضُ الكبراء: تزيين المرأة وتطيبها لزوجها من أقوى أسباب المحبة والألفة بينهما، وعدم الكراهة والنفرة؛ لأنَ العينَ رائدُ القلب فإذا استحسنت منظرًا أوصَلَتهُ إلى القلب فحصلت المحبة. وإذا نظرتْ منظرًا بشعًا أو ما لا يعجبها من زي أو لباس تلقيه إلى القلب فتحصل الكراهة والنفرة، ولهذا كان من وصايا نساء العرب لبعضهن إياك أن تقع عين زوجك على شيء لا يستملحه. أو يشم منك ما يستقبحه. فيض القدير شرح الجامع الصغير ج ۳ ص ۱۴۷.

(۲) النور آية ۳۱

راغلي دی.(١)

او دويم قِسم هغه زيورات دي چې په تللو کې پخپله ورنه آواز نه پيدا کيږي خو د يو بل سره د جنګولو او خپه په زُوره زمکه وهلو سره ورنه آواز پيدا کيږي نو دداسې زيوراتو استعمال جائز دی، خو په زُوره خپه په زمکه وهل او پرَدو سړو ته ددې آواز آورول منع دی.

## يوولسم شرط: بهتر داده چې زَنانه بهر ته په ساده لباس کې أووځي

زَنانه د پاره بهتر داده چې کله د ضرورت په وجه بهر أوځي نو په ساده لباس کې دې أووځي، د شُهرت واله لباس دې نه اچوي، ځکه په احاديثو کې ددينه سخته منع راغلی.

رسولُ الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شُهْرَةٍ فِي الدُّنْيَا أَلْبَسَهُ اللهُ ثَوْبَ مَذَلَّةٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. (٢)

څوک چې په دُنيا کې د شُهرت واله لباس واغوندي نو الله تعالی به ده ته د قيامت په ورځ د ذِلت لباس وَر واغوندي.

او دداسې کس نه الله تعالی اِعراض کوي.(٣)

(١) رُوِيَ أَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَطَعَ أَجْرَاسًا فِي رِجْلِ ابْنَةِ الزُّبَيْرِ. قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: « إِنَّ مَعَ كُلِّ جَرَسٍ شَيْطَانًا ». شرح السّنة للبغوي ج ١١ ص ٢٦ بَابُ كراهِيةِ الجرسِ فِي السفرِ رقم الحديث ٢٦٧٨. سنن ابی داؤد كِتَابُ الخَاتَمِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الجَلَاجِلِ رقم الحديث ٤٢٣٠.

حضرت عُمر ﷺ هغه جرَس (ګرينجي) أوشلول کوم چې د حضرت زبير ﷺ د لور په خپو کې وُ، بيا يې اوفرمايل: ما د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه آوريدلي دي چې د هر جرَس سره شيطان وي.

وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيْهِ جَرَسٌ. سنن ابي داؤد سنن ابي داؤد كِتَابُ الخَاتَمِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الجَلَاجِلِ رقم ٤٢٣١. مسند احمد مخرجا رقم ٢٦٠٥٢، السنن الكبرى للنسائي رقم ٩٤٨٣.

(٢) مسند احمد مخرجا رقم الحديث ٥٦٦٤، و رقم الحديث ٦٢٤٥، سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي لُبْسِ الشُّهْرَةِ رقم الحديث ٤٠٢٩، سنن ابن ماجة رقم الحديث ٣٦٠٦، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ٩٤٨٧، شعب الايمان رقم الحديث ٥٨١٧، شرح السّنة للبغوي رقم الحديث ٣١١٦،

(٣) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شُهْرَةٍ أَعْرَضَ اللهُ عَنْهُ حَتَّى يَضَعَهُ مَتَى وَضَعَهُ. سنن ابن ماجة كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ مَنْ لَبِسَ شُهْرَةً مِنَ الثِّيَابِ رقم الحديث ٣٦٠٨، شعب الايمان رقم الحديث ٥٨٢٠. حلية الأولياء ج ٤ ص ١٩٠، التوبيخ والتنبيه لابي الشيخ الاصبهاني رقم الحديث ١٢٩.

## دولسم شرط : زَنانه به د لارې په يو طرف ځي

زَنانه چې د څه ضرورت د پاره بهر اُوځي نو د لارې په يو طرف (يعنې څنډې ته) به ځي ، د تللو په وخت به د سړو سره ځان نه جنګوي . (۱)

۱ . رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي : لَيْسَ لِلنِّسَاءِ وَسَطُ الطَّرِيْقِ . (۲)

د ښځو د پاره د لارې په مينځ باندې تلل نشته .

يعنې ښځې دې په تللو کې د سړو سره ځان نه جنګوي ، ځکه د لارې په مينځ باندې اکثر سړي ځي نو که ښځې وړياندې هم لارې شي نو بيا دواړه سره جنګيږي ، او د سړو او ښځو دا ګډون د فساد سبب ګرځي ، لهذا په ښځه باندې دا واجب دي چې د لارې په يو طرف به ځي . (۳)

۲ . د ابوداؤد شريف او مشکوة شريف حديث دی ، حضرت ابواُسَيد انصاري رضي الله عنه فرمايي چې يوه ورځ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جُمات نه بهر رااُووت ، خلقو ته يې څه نصيحت کولو ، ما هغه نصيحت واوريد ، په دې وخت کې سړي د ښځو سره په لاره کې يو ځای شول (يعنې يو ځای روان وو) ، رسولُ الله صلی الله عليه وسلم زَنانه وُ ته اوفرمايل :

اِسْتَأْخِرْنَ، فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تَحْقُقْنَ الطَّرِيْقَ عَلَيْكُنَّ بِحَافَّاتِ الطَّرِيْقِ .

(اې ښځو !) تاسو د سړو نه روستو (جدا) ځئ ؛ ځکه ستاسو د پاره دا مناسب نه دي چې د لارې په مينځ کې ځئ ، بلکې په تاسو لازم دي چې د لارې په غاړه (څنډې طرف ته) ځئ .

راوي د حديث فرمايي چې د دينه پس به ښځې په لاره کې د دِيوال سره يو ځای (څنډې ته)

---

(۱) فتاوی محموديه ج ۲۸ ص ۱۴۱ اجنبی عورتوں سے پردہ .

(۲) صحيح ابن حبان كِتَابُ الحَظْرِ وَالإِبَاحَةِ ذِكْرُ الزَّجْرِ عَنْ أَنْ تَمْشِيَ المَرْأَةُ فِي حَاجَتِهَا فِي وَسَطِ الطَّرِيقِ رقم الحديث ۵۶۰۱ ، شعب الايمان رقم الحديث ۸۴۳۸ ، كنز العمال رقم الحديث ۴۵۰۶۳ .

(۳) قَالَ الشَّيْخُ (ابن حبان رَحِمَهُ اللهُ) : « قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : » لَيْسَ لِلنِّسَاءِ وَسَطُ الطَّرِيْقِ « لَفْظَةُ إِخْبَارٍ مُرَادُهَا الزَّجْرُ عَنْ شَيْءٍ مُضْمَرٍ فِيْهِ . وَهُوَ مُمَاشَةُ النِّسَاءِ الرِّجَالَ فِي الْمَشْيِ . إِذْ وَسَطُ الطَّرِيْقِ الْغَالِبُ عَلَى الرِّجَالِ سُلُوْكُهُ . وَالْوَاجِبُ عَلَى النِّسَاءِ أَنْ يَتَخَلَّلْنَ الْجَوَانِبَ حَذَرَ مَا يُتَوَقَّعُ مِنْ مُمَاشَتِهِمْ إِيَّاهُنَّ » . صحيح ابن حبان ج ۱۲ ص ۴۱۵ في شرح حديث ۵۶۰۱ .

تللی ، تر دې چې ښځې به د ديوال سره دومره نزدې تللی چې کپړې به يې د دِيوال سره اُونختلی . (۱)

## ديارلسم شرط : زَنانه به په نخرو او تکبر سره نه ځي

ښځه به په نَخرو او تکبّر سره نه ځي ، بلکه په عاجزی سره به ځي ، ځکه په قرآن کريم کې تکبّر سره د تللو نه منع راغلی .

**۱** . الله تعالی فرمايي :

﴿ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّكَ لَن تَخْرِقَ الْأَرْضَ وَلَن تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُولًا ﴾ . (۲)

ترجمه : او په زمکه باندې په غرور ( تکبّر ) مه ګرځه ، بيشکه ته هيڅ کله زمکه نشې شلولی ، او هيڅ کله په اُوږدوالي کې غرونو ته نشې رسيدی .

يعنی په تکبّر سره مه ګرځه ځکه که ته هر څومره د تکبّر په وجه په زمکه باندې خپه په زُوره ږدی خو بيا هم زمکه نشې شلولی . او که په تللو کې د ډير تکبّر په وجه پورته کيږې خو بيا هم د غرونو اُوچت والي ته نشی رسيدی .

**۲** . حضرت لقمان چې کله خپل ځوي ته نصيحت کولو نو دا يې هم ورته فرمايلي وو :

﴿ وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ﴾ . (۳)

---

(۱) عَنْ أَبِي أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ ﷺ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . يَقُولُ : وَهُوَ خَارِجٌ مِنَ الْمَسْجِدِ . فَاخْتَلَطَ الرِّجَالُ مَعَ النِّسَاءِ فِي الطَّرِيقِ . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلنِّسَاءِ : « اِسْتَأْخِرْنَ . فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تَحْقُقْنَ الطَّرِيقَ عَلَيْكُنَّ بِحَافَاتِ الطَّرِيقِ » فَكَانَتِ الْمَرْأَةُ تَلْتَصِقُ بِالْجِدَارِ حَتَّى إِنَّ ثَوْبَهَا لَيَتَعَلَّقُ بِالْجِدَارِ مِنْ لُصُوقِهَا بِهِ . سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي مَشْيِ النِّسَاءِ مَعَ الرِّجَالِ فِي الطَّرِيقِ رقم الحديث ۵۲۷۲ قال الالباني : حسن ، مشكوة المصابيح كتاب الآداب بَابُ الْجُلُوسِ وَالنَّوْمِ وَالْمَشْيِ الْفَصْلُ الأول رقم الحديث ۴۷۲۷(۲۱) ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۵۸۰ ، شرح السنّة للبغوي ج ۱۲ ص ۳۲۲ .

(۲) الاسراء (بني اسرائيل) آية ۳۷ .

(۳) لقمان آية ۱۸

ترجمه: او د خلقو نه خپل مخ مه اړوه، او په زمکه باندې په غرور (تکبر) سره مه ځه، بیشکه الله تعالی هر مغرور فخر کوونکی نه خوښوي.

څوک چې په دُنیا کې په تکبّر سره ځي نو د قیامت په ورځ چې دا د الله ﷻ سره مخامخ کیږي نو الله تعالی به وربانډې غصه وي، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي:

مَنْ تَعَظَّمَ فِيْ نَفْسِهِ أَوِ اخْتَالَ فِيْ مِشْيَتِهِ لَقِيَ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ. (۱)

څوک چې په خپل زړه کې خپل ځان لوي ګڼړي، او یا په تللو کې تکبّر کوي نو دا به د الله تعالی سره په داسې حالت کې مخامخ کیږي چې هغه به په ده باندې غصه وي (دده نه به ناراضه وي).

په یوه موقع باندې رسولُ الله صلی الله علیه وسلم اوفرمایل:

... مَنْ تَوَاضَعَ رَفَعَهُ اللهُ، وَمَنْ تَكَبَّرَ وَضَعَهُ اللهُ .... .

څوک چې عاجزي اوکړي نو الله تعالی به دده مرتبه اُوچته کړي، او څوک چې تکبّر اوکړي نو الله تعالی به دده مرتبه ښکته کړي. (یعنی ذلیل به یې کړي). (۲)

## څوارلسم شرط: زَنانه به بهر ته دتللو په وخت د خاوند نه اجازت اخلي

زَنانه چې کله د څه ضرورت په وجه بهر ځي نو د خاوند نه به اجازت اخلي، بغیر د اجازت نه بهر نه اُوځي. رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

---

(۱) الادب المفرد للبخاري بَابُ الكِبْرِ رقم الحديث ۵۴۹، مسند احمد رقم الحديث ۵۹۹۵، مجمع الزوائد ومنبع الفوائد رقم الحديث ۳۵۶ باب ماجاء في الكبر، وقال الهيثمي: رواه احمد ورجاله رجالُ الصحيح، كنزالعمال رقم الحديث ۷۷۴۶، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۹۱۸(۲۹) الترغيب في التواضع والترهيب من الكبر، الزواجر ج۱ ص۱۱۳ الكبيرة الرابعة الكبر والعجب والخيلاء، و ص ۱۱۵، احياء علوم الدين ج۳ ص ۳۳۹.

(۲) التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ج ۱ ص ۱۰۱ رقم الحديث ۷۷ باب التواضع، المعجم الاوسط رقم الحديث ۴۸۹۴، احياء علوم الدين ج۳ ص ۳۲۷، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۴۹۶۹، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۸۲۹۴، الزواجر ج۱ ص ۱۲۷، اصلاح المال ج۱ ص ۹۹ رقم ۳۳۰.

وفي رواية: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللهُ. وَمَنْ تَكَبَّرَ وَضَعَهُ اللهُ. الزواجر عن اقتراف الكبائر ج۱ ص ۱۲۵ اَلْكَبِيْرَةُ الرَّابِعَةُ الْكِبْرُ وَالْعُجْبُ وَالْخُيَلَاءُ، كنزالعمال رقم الحديث ۵۷۳۴، الترغيب والترهيب للمنذري ج ۱ ص ۱۵ رقم الحديث ۱۱۵.

لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ أَنْ تَأْذَنَ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا إِلَّا بِإِذْنِهِ . وَلَا تَخْرُجَ وَهُوَ كَارِهٌ... (۱)

ښځې ته دا حلال ندي چې د خاوند کور ته دده د اجازت نه بغير بل چاته د راتلو اجازت اوکړي، او دا هم ورته حلال ندي چې د خاوند د خوښې نه بغير د کور نه بهر اُووځي.

## پنځلسم شرط : زَنانه به اوږد سفر به بغير د مَحرَم نه نه کوي

زَنانه د پاره بغير د مَحرَم نه اوږد سفر کول حرام دی، تر دې چې په کومه زَنانه باندې حج فرض وي نو هغه به هم بغير د خاوند يا بغير مَحرَم نه حج ته نه ځي.

نبي عليه السلام ښځه ددينه منع کړې چې بغير د مَحرَم نه د شرعي سفر په مقدار ( اَته اَويا ۷۸ کلوميټره ، يا د درې ورځې پيدل مزل په مقدار ) لرې سفر اوکړي. (يعنی ښځې ته بغير د مَحرَم نه د ۷۸ کلوميټر په اَندازه باندې لرې سفر کول ناجائز دی، بلکه خامخا به ورسره پلار، ورور، خاوند، ځوي او يا بل مَحرَم وي )، په احاديثو کې صراحةً ددې تذکره شته. (۲)

## د ښځې د پاره بغير د مَحرَم نه نزدې مدرسې ته تلل جائز دي

د ښځې د پاره بغير د مَحرَم نه د شرعي سفر په مقدار( اَته اَويا ۷۸ کلوميټره )لرې سفر کول ناجائز دی، ليکن پياده لس يا پنځلس مِنټه تلل شرعي سفر ندی، لهذا که يوه

---

(۱) المعجم الكبير للطبراني ج ۲۰ ص ٦۲ رقم الحديث ۱۱۴، ورقم الحديث ۲۱۰.

وفي رواية : عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: « لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تَأْذَنَ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا وَهُوَ كَارِهٌ ، وَلَا تَخْرُجَ وَهُوَ كَارِهٌ... المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۲۷۷۰ وقال الحاكم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الْإِسْنَادِ، وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. السنن الكبرى للبيهقي كِتَابُ الْقَسْمِ وَالنُّشُوزِ بَابُ مَا جَاءَ فِي بَيَانِ حَقِّهِ عَلَيْهَا رقم الحديث ۱۴۷۱۵.

(۲) قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُسَافِرَ سَفَرًا فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا ، إِلَّا وَمَعَهَا أَبُوهَا أَوْ أَخُوهَا أَوْ زَوْجُهَا أَوِ ابْنُهَا أَوْ ذُو مَحْرَمٍ مِنْهَا . سنن ابي داؤد كِتَاب الْمَنَاسِكِ بَابٌ فِي الْمَرْأَةِ تَحُجُّ بِغَيْرِ مَحْرَمٍ رقم الحديث ۱۷۲٦.

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ وَلَا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ ... مشكاة المصابيح ۲۵۱۳ (۹) كتاب المناسك الفصل الأول.

ښځه د دَرس و تدریس د پاره پنځلس مِنټه پیاده مسافت په مقدار ځانله یا د نورو جینکو سره مدرسې ته ځي نو دا جائز ده ، که دا پیاده ځي او که په ګاډي کې . خو شرط دادی چې د خپل سَرپرست نه به اجازت اخلي ، او د شرعي پَردې به پوره پابندي کوي .

په بدائع الصنائع کې ذکر دي :

لِأَنَّ الْمَحْرَمَ يُشْتَرَطُ لِلسَّفَرِ. وَمَا دُوْنَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ لَيْسَ بِسَفَرٍ فَلَا يُشْتَرَطُ فِيْهِ الْمَحْرَمُ كَمَا لَا يُشْتَرَطُ لِلْخُرُوْجِ مِنْ مَحَلَّةٍ إِلَىٰ مَحَلَّةٍ . (۱)

د ښځې د پاره مَحرَم ( پلار ، ورور ، ځوي ، وغیره ) د سفر د پاره شرط دي ، او د درې ورځو نه کم مقدار پیاده سفر کول شرعي سفر ندی نو په دې کې د مَحرَم وجود شرط ندی ، لکه څرنګې چې د یوې مَحلې نه بلې مَحلې ته تللو کې د مَحرَم وجود شرط ندی .

# د کالج جینکو د پاره بغیر د مَحرَم نه د پرَدي اُستاذانو سره چکر له تلل ناجائز دي

په بعضې کالجونو کې دا ترتیب وي چې په ځُټیانو کې اُستاذان سړي د کالج جینکې د ځان سره بل ښار ته د لس یا پنځلس ورځو د پاره په چَکر باندې بوځي ، دې جینکو ته اګر چې د خپل کور د طرفه اجازت وي خو خپل مَحرَم ( ورور وغیره ) ورسره نه وي ، صرف د کالج اُستاذان سړي ورسره وي ، نو ددې حکم دادی چې : دا تلل ناجائز دي ، ځکه د چکر د پاره د پرَدو سړو سره ګرځیدل د ښځو د فِطرت خلاف ده ، په اسلامي شریعت کې ددینه سخته منع راغلې . کومه ښځه چې په الله او رسول باندې ایمان لري هغه به هیڅ کله د پرَدو سړو سره په چَکر لاړه نشي . (۲)

---

(۱) بدائع الصنائع في ترتیب الشرائع ج ۲ ص ۱۲۴ كِتَابُ الْحَجِّ فَصْلٌ شَرَائِطُ فَرْضِيَّةِ الْحَجِّ .

(۲) ﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلَىٰ ﴾ . الاحزاب آیة ۳۳ .

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُسَافِرَ سَفَرًا فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا . إِلَّا وَمَعَهَا أَبُوْهَا أَوْ أَخُوْهَا أَوْ زَوْجُهَا أَوِ ابْنُهَا أَوْ ذُوْ مَحْرَمٍ مِنْهَا . سنن ابي داؤد كِتَابُ الْمَنَاسِكِ بَابٌ فِي الْمَرْأَةِ تَحُجُّ بِغَيْرِ مَحْرَمٍ رقم الحديث ۱۷۲۶ . ← ← ← ← ← ← ← ←

همدارنګې ښځه به د غیر مَحرَمه دړائیور سره هم ځان له لړې د نوکرۍ د پاره نه ځي، ځکه کله ددینه ډیرې فِتنې پیدا کیږي. (۱)

## شپاړسم شرط : د پرَدو سړو سره به په نرمه لهجه کې خبرې نه کوي

زَنانه ته که د څه ضرورت په وجه د پرَدو سړو سره د خبرو کولو ضرورت راشي نو په نَرمه لهجه کې به ورسره خبرې نه کوي؛ ځکه الله تعالی زَنانه د پرَدو سړو سره په نَرمه لهجه کې د خبرو کولو نه منع کړې. الله ﷻ اَزواج مُطهّرات ته فرمایي :

﴿ يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسۡتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ اِنِ اتَّقَيۡتُنَّ فَلَا تَخۡضَعۡنَ بِالۡقَوۡلِ فَيَطۡمَعَ الَّذِيۡ فِيۡ قَلۡبِهٖ مَرَضٌ وَّقُلۡنَ قَوۡلًا مَّعۡرُوۡفًا ﴾. (۲)

ترجمه: اې د پیغمبر بیبیانو! تاسو د نورو عامو ښځو په شان نه یَې که چیرته تاسو پرهیزګاره اُوسیدل غواړۍ (او د الله ﷻ نه یَره لرۍ) نو (د ضرورت په وخت د پرَدو سړو سره) په خبرو کولو کې نَرمي مه کوئ (ځکه که تاسو په نَرمه لهجه کې خبرې اوکړۍ نو) هسې نه چې د چا په زړه کې مرض وي د هغه طمع پیدا شي، او په مناسبه طریقه خبرې کوئ.

**عبرت** : د نبي علیه السلام بیبیانې پاکدامنې وې، او د مؤمنانو مورانې وې خو بیا هم الله تعالی هغوی ته حکم اوکړو چې د پرَدو سړو سره په نَرمه او پَسته لهجه کې خبرې مه کوئ، چې د منافق سړي طمع پیدا نشي، نو اوس خو د عامو زَنانهٔ د پاره په طریقِ اولی

---

←←← قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ وَلَا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ ... مشكاة المصابيح ۲۵۱۳ (۹) كتاب المَنَاسِك الفَصْل الأول.

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ. سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى المُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ وقال الترمذي: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. قال الالباني: صحيح. آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۱۰۷ و ص ۱۱۵ پر دہ.

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ وَلَا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ ... مشكاة المصابيح ۲۵۱۳ (۹) كتاب المَنَاسِك الفَصْل الأول. آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۱۰۸ پر دہ.

(۲) الاحزاب آية ۳۲.

دا خبره ضروري ده چې د پَرَدو سرو د وړاندې به په داسې انداز باندې خبرې نه کوي چې د هغې نه د سړي خرابه طمع پیدا شي .

## سړي به خپلې ښځې د بې پَردګۍ او بې حیايۍ نه منع کوي ، ګني په عذاب کې به ټول شریک وي

د سړو دا ذِمه واري ده چې خپلې ښځې به د بې پَردګۍ او بې حیايۍ نه منع کوي ، ځکه که دوی د قدرت باوجود دا منع نکړي نو بیا چې د الله تعالی د طرفه کوم عذاب راځي دوی به هم ورسره په کې شریک وي .

۱ . رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوُا الْمُنْكَرَ فَلَمْ يُغَيِّرُوهُ أَوْشَكَ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللهُ بِعِقَابِهِ . (۱)

بیشکه چې کله خلق یو ناجائز کار اوګوري او دوی ( د قدرت باوجود ) دا بَند نکړي نو قریبه ده چې الله تعالی دوی ټول په خپل عذاب کې مبتلاء کړي .

۲ . همدا مضمون په یو بل حدیث کې هم ذکر شوی ، رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي ، ثُمَّ يَقْدِرُونَ عَلَى أَنْ يُغَيِّرُوا ، ثُمَّ لَا يُغَيِّرُوا ، إِلَّا يُوشِكُ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللهُ مِنْهُ بِعِقَابٍ .

په کوم قوم کې چې ګناهونه کیږي ، بیا دوی ددې په بَندولو باندې قادِر وي خو بَند یې

(۱) عَنْ قَيْسٍ . قَالَ : قَامَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ، ثُمَّ قَالَ : يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ هٰذِهِ الْآيَةَ { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ } . وَإِنَّا سَمِعْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ : « إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوُا الْمُنْكَرَ فَلَمْ يُغَيِّرُوهُ أَوْشَكَ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللهُ بِعِقَابِهِ » . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱ . السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۱۱۰۹۲ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۳۰۴ ، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۴۱۵۳ ، مشكوة المصابيح باب الأمر بالمعروف الفصل الاول رقم الحديث ۵۱۴۲(٦) ، سنن ابن ماجة باب الامر بالمعروف والنهي عن المنكر رقم الحديث ۴۰۰۵ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۲۵۱۱ .

نکړي نو قريبه ده چې الله تعالى په دوى ټولو باندې خپل عذاب راولي.(۱)

۳ . د ناجائزو کارونو کولو سره انسان پخپله هم د الله ﷻ د لعنت مستحق ګرځي ، او څوک چې دا اوګوري او د قدرت باوجود يې منع نکړي نو په دوى باندې هم د الله ﷻ لعنت راوريږي. الله تعالى فرمايي :

﴿ لُعِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ۭ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ۝ كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ فَعَلُوْهُ ۭ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴾ . (۲)

ترجمه : په بني اسرائيلو کې چې څوک کافران وو په هغوى باندې د حضرت داوٗد عليه السلام او حضرت عيسىٰ بن مريم عليه السلام په ژبه باندې لعنت کړې شوې وُ ، دا لعنت ورباندې ځکه کړې شوې وُ چې دوى نافرمانه وو او د حَد نه يې تجاوز کولو ، دوى د هغه ناجائزو کارونو نه نه منع کيدل کوم چې دوى کول ، يقيناً چې دوى دا کوم عمل کولو دا ډير بَد وُ .

**فائده** : ددې آيت نه معلومه شوه چې د نافرمانۍ په وجه انسان د الله ﷻ د لعنت مستحق ګرځي.

٤ . په يو حديث کې راځي چې نبي عليه السلام مذکوره آيت تلاوت کړو او بيا يې اوفرمايل : تاسو خامخا اَمر بِالمَعرُوف او نَهي عَنِ المُنکر کوئ او د ګناهګار لاس د ګناه نه اُونيسئ ګني الله تعالى به په تاسو باندې داسې لعنت رااُوليږي لکه څرنګې يې چې په

---

(۱) سنن ابي داؤد كِتَاب الْمَلَاحِمِ بَابُ الْأَمْرِ وَالنَّهْيِ رقم الحديث ۴۳۳۸ قال الالباني: صحيح .

وفي رواية : عَنْ جَرِيْرٍ ، قَالَ : سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: « مَا مِنْ رَجُلٍ يَكُوْنُ فِيْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيْهِمْ بِالْمَعَاصِيْ ، يَقْدِرُوْنَ عَلٰى أَنْ يُغَيِّرُوْا عَلَيْهِ ، فَلَا يُغَيِّرُوْا ، إِلَّا أَصَابَهُمُ اللهُ بِعَذَابٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَمُوْتُوْا » . سنن ابي داؤد كِتَاب الْمَلَاحِمِ بَابُ الْأَمْرِ وَالنَّهْيِ رقم الحديث ۴۳۳۹ قال الالباني: حسن . التفسير من سنن سعيد بن منصور ج ۴ ص ۱۶۵۰ رقم الحديث ۸۴۱ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۳۰۲ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۲۳۸۲ .

(۲) المائدة آية ۷۸ ، ۷۹ .

بني اسرائيلو باندې راليږلې وُ . (۱)

**۵** . د مسلم شريف حديث دی ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

«مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ ، وَ ذٰلِكَ أَضْعَفُ الْإِيْمَانِ . (۲)

څوک چې په تاسو کې يو ناجائز کار اوګوري نو په خپل لاس دې يې منع کړي ، که په لاس باندې يې د منع کولو طاقت نه وُ نو په ژبه دې يې منع کړي ، که په ژبه باندې يې د بندولو طاقت نه وُ نو په زړه کې دې هغه کار بَد اوګڼري ، او دا ( په زړه کې يې بَد ګڼړل ) د ايمان ډيره کمزورې درجه ده .

( ملا علي قاري رحمه الله په مرقاة کې د دې حديث ډير ښه تشريح کړې ده . (۳) )

---

(۱) عَنْ أَبِي مُوسٰى رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : إِنَّهُ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيْلَ إِذَا عَمِلَ فِيْهِمُ الْعَامِلُ الْخَطِيْئَةَ فَنَهَاهُ النَّاهِيْ تَعْذِيْرًا . فَإِذَا كَانَ مِنَ الْغَدِ جَالَسَهُ وَ وَاكَلَهُ وَشَارَبَهُ كَأَنَّهُ لَمْ يَرَهُ عَلٰى خَطِيْئَةٍ بِالْأَمْسِ ، فَلَمَّا رَأَى اللهُ تَعَالٰى ذٰلِكَ مِنْهُمْ ضَرَبَ قُلُوْبَ بَعْضِهِمْ عَلٰى بَعْضٍ عَلٰى لِسَانِ دَاوُدَ عليه السلام وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ عليه السلام ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ . وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهِ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ وَلَتَأْخُذُنَّ عَلٰى أَيْدِي الْمُسِيْءِ وَلَتَأْطُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ أَطْرًا أَوْ لَيَضْرِبَنَّ اللهُ بِقُلُوْبِ بَعْضِكُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَيَلْعَنُكُمْ كَمَا لَعَنَهُمْ . مجمع الزوائد ومنبع الفوائد كِتَابُ الْفِتَنِ بَابُ وُجُوبِ إِنْكَارِ الْمُنْكَرِ رقم الحديث ۱۲۱۵۳ وقال الهيثمي : رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ ، وَرِجَالُهُ رِجَالُ الصَّحِيْحِ . المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۲٦۸ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۱۳۹ ، تفسير البغوي ج ۲ ص ۷۳ سورة المائدة في تشريح آية ۷۸ ، مشكاة المصابيح رقم الحديث ۵۱۴۸ .

(۲) صحيح مسلم كِتَابُ الْإِيمَانِ بَابُ بَيَانِ كَوْنِ النَّهْيِ عَنِ الْمُنْكَرِ مِنَ الْإِيمَانِ ، وَأَنَّ الْإِيمَانَ يَزِيدُ وَيَنْقُصُ ، وَأَنَّ الْأَمْرَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَاجِبَانِ رقم الحديث ۷۸ ( ۴۹ ) ، سنن ابي داؤد تَفْرِيعِ أَبْوَابِ الْجُمُعَةِ بَابُ الْخُطْبَةِ يَوْمَ الْعِيدِ رقم الحديث ۱۱۴۰ ، و رقم الحديث ۴۳۴۰ كِتَابُ الْمَلَاحِمِ بَابُ الْأَمْرِ وَالنَّهْيِ ، سنن النسائي رقم الحديث ۵۰۰۸ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۳۰٦ ، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۱۲۷۵ ، مشكاة المصابيح باب الامر بالمعروف الفصل الاول رقم الحديث ۵۱۳۷ (۱) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۱۰۷۲ .

(۳) .... ( فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ ) أَيْ : بِأَنْ يَمْنَعَهُ بِالْفِعْلِ : بِأَنْ يَكْسِرَ الْآلَاتِ ، وَيُرِيْقَ الْخَمْرَ ، وَيَرُدَّ الْمَغْصُوْبَ إِلٰى مَالِكِهِ . ( فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ ) أَيِ : التَّغْيِيْرَ بِالْيَدِ وَ إِزَالَتَهُ بِالْفِعْلِ لِكَوْنِ فَاعِلِهِ أَقْوٰى مِنْهُ ( فَبِلِسَانِهِ ) أَيْ : فَلْيُغَيِّرْهُ بِالْقَوْلِ وَتِلَاوَةِ مَا أَنْزَلَ اللهُ مِنَ الْوَعِيْدِ عَلَيْهِ ، وَذِكْرِ الْوَعْظِ وَالتَّخْوِيْفِ وَالنَّصِيْحَةِ ←←←←←←←←←←←←←

## هغه خلق چې زَنانه د پاره د هغوی نه پَرده ضروري ده

د ښځې چې د چا سره نکاح کیږي د هغوی نه ددې د پاره پَرده ضروري ده .

**۱** . لهذا د ښځې د پاره د ماما د ځامنو ، د تره د ځامنو ، او ترور د ځامنو نه پَرده ضروري ده ( که دا ترور يې د مورخور وي او که د پلارخور وي خو ددې د ځامنو نه پَرده ضروري ده) . (۱)

**۲** . همدارنګې زَنانه به د لېوَر (يعنی د خاوند ورور) ، د خاوند وراره ، د خاوند تره ، د خاوند د تره ځامنو ، د خاوند ماما ، او د خاوند دماما ځامنو نه هم پَرده کوي .

**نوټ**: سړې به د تره ښځې او ماما ښځې نه هم پَرده کوي . (۲)

---

←←←← (فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ) أَيِ: التَّغْيِيْرَ بِاللِّسَانِ أَيْضًا (فَبِقَلْبِهِ) : بِأَنْ لَا يَرْضَى بِهِ وَيُنْكِرَ فِيْ بَاطِنِهِ عَلَى مُتَعَاطِيْهِ، فَيَكُوْنُ تَغْيِيْرًا مَعْنَوِيًّا إِذْ لَيْسَ فِيْ وُسْعِهِ إِلَّا هٰذَا الْقَدْرِ مِنَ التَّغْيِيْرِ . وَقِيْلَ : اَلتَّقْدِيْرُ " فَلْيُنْكِرْهُ بِقَلْبِهِ " لِأَنَّ التَّغْيِيْرَ لَا يُتَصَوَّرُ بِالْقَلْبِ، فَيَكُوْنُ التَّرْكِيْبُ مِنْ بَابٍ: عَلَفْتُهَا تِبْنًا وَمَاءً بَارِدًا. وَمِنْهُ قَوْلُهُ تَعَالَى: {وَالَّذِيْنَ تَبَوَّءُوا الدَّارَ وَالْإِيْمَانَ} [ الحشر آية ۹ ]، (وَ ذٰلِكَ) أَيِ: الْإِنْكَارُ بِالْقَلْبِ وَهُوَ الْكَرَاهِيَةُ (أَضْعَفُ الْإِيْمَانِ) أَيْ: شُعَبِهِ أَوْ خِصَالِ أَهْلِهِ . وَالْمَعْنَى أَنَّهُ أَقَلُّهَا ثَمَرَةً . فَمَنْ غَيَّرَ الْمَرَاتِبَ مَعَ الْقُدْرَةِ كَانَ عَاصِيًا . وَمَنْ تَرَكَهَا بِلَا قُدْرَةٍ أَوْ يَرَى الْمَفْسَدَةَ أَكْثَرَ وَيَكُوْنُ مُنْكِرًا بِقَلْبِهِ فَهُوَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ . وَقِيْلَ: مَعْنَاهُ " وَ ذٰلِكَ أَضْعَفُ زَمَنِ الْإِيْمَانِ " إِذْ لَوْ كَانَ إِيْمَانُ أَهْلِ زَمَانِهِ قَوِيًّا لَقَدَرَ عَلَى الْإِنْكَارِ الْقَوْلِيِّ أَوِ الْفِعْلِيِّ، وَلَمَا احْتَاجَ إِلَى الْإِقْتِصَارِ عَلَى الْإِنْكَارِ الْقَلْبِيِّ، أَوْ ذٰلِكَ الشَّخْصُ الْمُنْكِرُ بِالْقَلْبِ فَقَطْ أَضْعَفُ أَهْلِ الْإِيْمَانِ فَإِنَّهُ لَوْ كَانَ قَوِيًّا صُلْبًا فِي الدِّيْنِ لَمَا اكْتَفَى بِهِ، وَيُؤَيِّدُهُ الْحَدِيْثُ الْمَشْهُوْرُ: « أَفْضَلُ الْجِهَادِ كَلِمَةُ حَقٍّ عِنْدَ سُلْطَانٍ جَائِرٍ » . وَقَدْ قَالَ تَعَالَى: {وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَائِمٍ} [المائدة آية ۵۴] هٰذَا وَقَدْ قَالَ بَعْضُ عُلَمَائِنَا : اَلْأَمْرُ الْأَوَّلُ لِلْأُمَرَاءِ . وَالثَّانِيْ لِلْعُلَمَاءِ . وَالثَّالِثُ لِعَامَّةِ الْمُؤْمِنِيْنَ . وَقِيْلَ : اَلْمَعْنَى إِنْكَارُ الْمَعْصِيَةِ بِالْقَلْبِ أَضْعَفُ مَرَاتِبِ الْإِيْمَانِ ، لِأَنَّهُ إِذَا رَأَى مُنْكَرًا مَعْلُوْمًا مِنَ الدِّيْنِ بِالضَّرُوْرَةِ فَلَمْ يُنْكِرْهُ وَلَمْ يَكْرَهْهُ وَرَضِيَ بِهِ وَاسْتَحْسَنَهُ كَانَ كَافِرًا، وَلَعَلَّ الْإِطْلَاقَ الدَّالَّ عَلَى الْعُمُوْمِ لِإِفَادَةِ التَّهْدِيْدِ وَالْوَعِيْدِ الشَّدِيْدِ . مرقاة المفاتيح ج ۸ ص ۳۲۰۸ في تشريح حديث ۵۱۳۷ .

(۱) فتاوی حقانیہ ج ۱۰ ص ۹۱ الحجاب . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۹۰، و ص ۸۸ ، و ص ۷۰ . امداد الفتاوی ج ۴ ص ۱۷۷

(۲) فتاوی محموديه ج ۲۸ ص ۱۰۳ جن سے پردہ ضروری ہے . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۵۲ و ص ۷۰ پردہ . امداد الفتاوی ج ۴ ص ۱۷۷ طبع دار العلوم کراچی .

او د خپلې خېنې (د ښځې خور) نه به هم پَرده کوي. (۱)

همدارنګې زَنانه به د بُو ۰ اګانو سرو ، هيجړاګانو ، مَقطوعُ الذّکر ، او نامَرده (خَصي) نه هم پَرده کوي. (۲)

۳ . د زَنانه د پاره د بې دِينې ښځې نه هم پَرده ضروري ده ؛ ځکه چې کله بې دِينه او ګَنده اخلاقو واله ښځه کور ته راننوځي نو په دې سره حياء ناکې ښځې او ماشومان متأثره کيږي ، لهذا د فِتنې او فساد نه د بچ کيدلو په خاطر د بې دِينه ښځې نه پَرده ضروري ده. (۳)

۴ . که زَنانه ته بل څوک يو هلک ورکړي او دا يې راغبَ کړي ، څوي ورته اُووايي (يعنى مُتَبَنّى يې جوړ کړي) ، او ددې هلک سره ددې زَنانه د مَحرَمِيَت څه رِشته نه وي او دې زَنانه دې ماشوم ته سِينه هم نه وي ورکړي نو چې کله دا هلک راغبَ شي دا زَنانه به ورنه پَرده کوي ، ځکه صرف په خُله ويلو سره پرَدې هلک د چا څوي نه جوړيږي .

په قرآن کريم کې ذکر دي :

﴿ وَمَا جَعَلَ اَدْعِيَآءَكُمْ اَبْنَآءَكُمْ ذٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِاَفْوَاهِكُمْ ﴾ . (۴)

ترجمه : او الله تعالى ستاسو د خُلې ويلي ځامن (يعنى مُتَبَنّاګان) ستاسو حقيقي ځامن ندي ګرځولي ، دا خو هسې ستاسو د خُلې (بې اَصله) خبره ده .

(يعنى که تاسو چاته په خُله باندې څوي اُووايَی نو صرف په دې سره هغه ستاسو حقيقي څوي نه جوړيږي) .

۵ . کوم نَوکران چې په کورونو کې خدمت کوي نو که دا غير مَحرَم وو نو د دوی نه هم

---

(۱) فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۹۹ و ص ۱۳۳ جن سے پردہ ضروری ہے . آپ کے مسائل اوران کا حل ج ۸ ص ۵٦ پردہ

(۲) معارف القرآن سورة النور فى تشريح آية ۳۱ .

(۳) قال العلامه ابن عابدين رَحِمَهُ اللّٰهُ : وَلَا يَنْبَغِي لِلْمَرْأَةِ الصَّالِحَةِ أَنْ تَنظُرَ إِلَيْهَا الْمَرْأَةُ الْفَاجِرَةُ لِأَنَّهَا تَصِفُهَا عِنْدَ الرِّجَالِ . فَلَا تَضَعُ جِلْبَابَهَا وَلَا خِمَارَهَا كَمَا فِي السِّرَاجِ . رد المحتار على الدر المختار ج ٦ ص ۳۷۱ كِتَابُ الحَظْرِ وَالإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالمَسِّ . فتاوى حقانيه ج ۲ ص ۴٦۸ .

(۴) الاحزاب آية ۴ . فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۹۳ الحجاب .

پَرده ضروري ده .(۱)

د کور دَننه کار د پاره پرَدي سړي نوکر مقررول صحیح ندی ، ځکه يو خو د نامَحرَم نه پَرده ضروري ده ، بل دا چې کله پرَدي نوکر دَننه په کور کې کار کوي نو کله کله دده د کور د مالِکې سره خَلوت ( تَنهائي ) هم راځي ، او د ښځې د پرَدي سړي سره ځانله کيناستل حرام دي .(۲)

لهذا دکور دنَنه کار د پاره پرَدي سړي نَوکر مقررول صحيح ندی بلکه ددې په ځای باندې ښځه مقررول په کار دي .

او که سړې مقرر کړي نو بيا د کور د مالِکې د پاره دده نه پَرده ضروري ده ، دده د وړاندې به مخ وغيره نه ښکاره کوي .(۳)

همدارنګې که په يو کورکې پرَدی نَوکره خدمت کوي نو دا به هم د کور د مالِک نه پَرده کوي .(۴)

٦ . که پرَدی نوکره په کور کې داسې کار کوي چې په هغې کې د لاسونو ښکاره کول لازمي وي ، لکه اُوړه اَغږي يا بل داسې کار کوي چې په هغې کې يې لاسونه راَبنډ وهلي

---

(۱) شرعي پَرده لمولانا محمد عاشق الهي بُلند شهري ص ۲۵ . آپ کے مسائل اوران کا حل ج ۸ ص ۱۰۱ پرده

(۲) اَلْخَلْوَةُ بِالْأَجْنَبِيَّةِ حَرَامٌ . الدرالمختار كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ ج ٦ ص ۳٦۸ ، الاشباه والنظائر كتاب الحظر والاباحة الفن الثالي ص ۱۵۹ . فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۹۵ .

(۳) كما يحرم نظر الرّجل الى المرأة يحرم نظرها اليه ، ولو بلاشهوة ولاخوف فِتنة . نعم إن كان بينهما محرمية نسب او رضاع او مصاهرة . احكام القرآن للتهانوي ج ۳ ص ٤۳٦ تفصيل الخطاب في تفسير آيات الحجاب .

قال محمد علي الصابوني رَحِمَهُ اللَّهُ : والإسلامُ قد حرّم على المرأة أنْ تكشف شيئًا مِن عورتها أمام الأجانب خشية الفتنة ، فهل يعقل أنْ يأمرها الإسلام أن تستر شعرها وقدميها وأن يسمح لها أنْ تكشف وجهها ويديها ؟ وأيهما تكون فيه الفتنة أكبر الوجه أم القدم؟ يا هؤلاء كونوا عقلاء ولا تلبسوا على الخلخال وتتحرك قلوب الرجال أو يبدو شيء من زينتها . فهل يسمح لها أن تشكف عن الوجه الذي هو أصل الجمال ومنبع الفتنة ومكمن الخطر؟ . روائع البيان تفسير آيات الأحكام لمولانا محمد علي الصابوني ج ۲ ص ۱۷۳ آيات الحجاب والنظر . فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۹۵ .

(۴) شرعي پَرده لمولانا محمد عاشق الهي بُلند شهري ص ۲۵ .

وي نو په دې وخت کې به د کور مالک دیته نه ګوري ، بلکه خپل نظر به ښکته ساتي.(۱)

د خپل ځان د آرام د پاره د الله ﷻ او رسول ﷺ د حکم مخالفت صحیح ندی.(۲)

۷ . بعضې خلق د سړو د دَفتر د پاره ښځه سِکرټره مقرر کړي ، بیا ورسره د دَفتر مالک ټوله ورځ ګپ شَپ لګوي ، نو دا ناجائز دی ، ځکه په دې کې د نورو مفاسدو سره سره د سړي او ښځې خَلوَت ( ځانله کیدل ) هم راځي ، چې دا حرام دی.

**نوټ** : په کومو کارخانو کې چې صرف ښځې کار کوي ، او دوی د شرعي پَردې لحاظ ساتي نو هلته د ضرورت په وجه ښځو له کار کول جائز دی. (۳)

۸ . مُطَلّقه ښځه به د عدت تیرولو نه پس د زُوړ خاوند نه پَرده کوي. (۴)

## چې د فِتنې یَره وي نو د مَحارِمُو نه هم پَرده ضروري ده

د کومو خلقو سره چې د زَنانه نکاح نه کیږي ( یعنی د زَنانه مَحارِم وي لکه : پلار ، ورور ، تره ، ماما وغیره ) نو ددې د پاره د هغوی نه پَرده نشته.(۵)

خو که په دې مَحارمو ځوک داسې وُ چې د هغه نه د فِتنې یَره وه ، مثلا هغه شرابي ، یا بَدکار وُ ، او دا خطره وه چې که دا ښځه ورسره ځانله شي نو نقصان به ورته اُورسوي نو بیا ددې مَحرَم نه هم پَرده په کار ده. دده سره به نه ځانله کیږي ، او یوا ځې به دده سره په سفر باندې نه ځي.(٦)

---

(۱) امداد الفتاوی ج ۴ ص ۲۰۰ .

(۲) وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيْهَا وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ . النساء آية ۱۴ . فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۹۵ .

(۳) فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۸٦ .

(۴) فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۱۰۹ جن سے پردہ ضروری ہے .

(۵) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۵۲ پردہ .

(٦) وَيَجُوزُ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ بِهَا وَيَخْلُوَ بِهَا يَعْنِي بِمَحَارِمِهِ إِذَا أَمِنَ عَلَى نَفْسِهِ. فَإِنْ عَلِمَ أَنَّهُ يَشْتَهِيهَا أَوْ تَشْتَهِيهِ إِنْ سَافَرَ بِهَا أَوْ خَلَا بِهَا أَوْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ ذٰلِكَ أَوْ شَكَّ فَلَا يُبَاحُ لَهُ ذٰلِكَ . الفتاوی الهندية ج ۵ ص ۳۲۸ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ الْبَابُ الثَّامِنُ فِيمَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَيْهِ وَمَا لَا يَحِلُّ لَهُ . بحر الرائق ج ۸ ص ۱۹۴ كتاب الكراهية فصل في النظر واللمس ، زيلعي شرح كنز ج ٦ ص ۱۹ كتاب الكراهية فصل في النظر والمس . فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۹۹ جن سے پردہ ضروری ہے

## سړي به د پردو ښځو مجلس ته نه ځي

لکه څرنګې چې د ښځو د پاره د پرَدو سړو نه پَرده لازم ده ، همدغه شان په سړو باندې هم دا لازم دي چې د پرَدو ښځو مجلس ته به نه ورځي ، ددې نه به ډير ځان ساتي . (۱)

## په بالغه جينۍ باندې پَرده کول د والدينو ذمه واري ده

کله چې جينۍ بالغه شي نو پخپله هم په دې باندې فرض دي چې دا به پَرده کوي ، او د والدينو ذمه واري هم ده چې ددې د پَردې لحاظ به ساتي . (۲)

## که والدين لور ته د بې پَردګۍ حکم کوي نو د دوی خبره معتبر نده

که والدين خپلې لور ته د بې پَردګۍ حکم کوي ، يا ورته دا وايي چې " ته د فلانکي کس نه پَرده مه کوه " حالانکه ددې د پاره د هغه نه پَرده ضروري وي نو اګر چې د والدينو بې اَدبي پکار نده خو په دې کې د والدينو خبره منل ضروري نده ، اګر چې د دوی خفه کيږي ، بلکه دا جينۍ به اوس هم پَرده کوي .

همدارنګې که يوې ښځې ته خواښې او خُسر د بې پَردګۍ حکم کوي نو د دوی خبره

---

(۱) ان النســاء مأمورات بغض البصر عن الرجال الأجانب كما أن الرجال مأمورون بغض البصر عن النساء الأجنبيات الى قوله كما يحرم نظر الرجل الى المرأة يحرم نظرها اليه و لو بلاشهوة و لاخوف فتنة . احكام القرآن للشيخ ظفر احمد التهانوي ج ۳ ص ۴۳٦ تفصيل الخطاب في تفسير الحجاب تفصيل ما انتظمت الآية السادسة من الاحكام ، روائع البيان تفسير آيات الاحكام ج ۲ ص ۱۴۵ المحاضرة السادسة آيات الحجاب والنظر ، فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۱۳۱ اجنبی عورتوں سے تنہائی .

(۲) ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ ...﴾ . النور آية ۳۱ .

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . قَالَ: « أَلَا كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، فَالْإِمَامُ الَّذِي عَلَى النَّاسِ رَاعٍ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلَى أَهْلِ بَيْتِهِ، وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ عَلَى أَهْلِ بَيْتِ زَوْجِهَا، وَوَلَدِهِ وَهِيَ مَسْئُولَةٌ عَنْهُمْ، وَعَبْدُ الرَّجُلِ رَاعٍ عَلَى مَالِ سَيِّدِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْهُ، أَلَا فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ » . صحيح البخاري كِتَابُ الأَحْكَامِ بَابُ قَوْلِ اللهِ تَعَالَى وَ {أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الأَمْرِ مِنْكُمْ} رقم ۷۱۳۸ . و رقم ۲۴۰۹ . آپ کے مسائل اوران کا حل ج ۸ ص ٦۷ پرده .

منل هم لازمي نده . ځکه د خلقو رَضا کولو د پاره د الله تعالی نافرماني جائز نده . (۱)

دا قاعده د ځان سره یاده ساتئ چې په کوم کار کولو سره د الله ﷻ نافرماني کیږي په هغې کې د هیچا اطاعت جائز ندی .

تر دې چې یو کس ته خپل والدین ، یا خپل پیر ، یا خپل اُستاذ ، یا یو حاکم د داسې کار کولو حکم اوکړي چې په هغې سره د الله ﷻ نافرماني راځي نو په دوی کې د هیچا خبره منل جائز نده ، او څوک چې بل ته د الله تعالی د نافرمانۍ حکم کوي او هغه پرې عمل اوکړي نو دواړه د جهنم متسحق ګرځي . (۲)

## ښځه به د خاوند په حُکم پَرده نه پریږدي

که یوې ښځې ته خاوند د بې پَردګۍ حکم کوي نو په دې کې د خاوند خبره منل نشته ، ځکه پَرده د الله تعالی حُکم دی ، په دې کې د بل هیچا اطاعت جائز ندی . (۳)

## هغه خلق چې زَنانه د پاره د هغوی نه پَرده نشته

د ښځې د پاره چې د کومو نارینهٔ نه پَرده نشته د هغې تفصیلي بیان په سورة النّور کې ذکر شوی، الله ﷻ فرمایي : ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ أَوْ نِسَائِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَىٰ عَوْرَاتِ النِّسَاءِ ﴾ . (۴)

ترجمه : ( اې پیغمبره ! ته مؤمنانو ښځو ته اُووایه ) .... او دوی دې خپل ښائست نه ښکاره کوي مګر خپلو خاوندانو ته ، پلارانو ته ، د خاوند پلارانو ( سخَرانو ) ته ، خپلو

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوْقٍ فِيْ مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ . رَوَاهُ فِي شَرْحِ السنة ، مشكاة المصابيح كتاب الإمارة والقضاء الفصل الثاني رقم الحديث ۳۶۹۶ (۳۶) . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۹۳ و ص ۴۷ پرده .

(۲) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۲۰۷ مرد اور عورت سے متعلق مسائل .

(۳) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوْقٍ فِيْ مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ . رَوَاهُ فِي شَرْحِ السنة ، مشكاة المصابيح كتاب الإمارة والقضاء الفصل الثاني رقم الحديث ۳۶۹۶ (۳۶) . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۹۵ پرده .

(۴) النور آیة ۳۱ .

ځامنو ته ، د خاوند ځامنو ته ( کوم چې د بلې ښځې نه وي ) ، خپلو ورونړو ته ، خپلو وریرونو ته ، خپلو خورزینو ته ، خپلو ( مسلمانانو ) زنانه ؤ ته ، خپلو وینځو ته ، یا په خادمانو کې هغه سړو ته چې ښځو ته حاجت ( نفساني خواهشات ) نه لري ( یعنی سادګان وي ) ، یا هغه ماشومانو ته چې تر اوسه د ښځو په پټو خبرو باندې خبر نه وي ( نو دوی ته زینت ښکاره کول جائز دی ) .

**د آیت تشریح** : په دې آیت کې الله تعالی د دولسو ( ۱۲ ) کسانو تذکره کړی چې د دوی نه د ښځې د پاره پَرده نشته ، نو که د دوی د وړاندې د زنانه مخ ، لاسونه ، او قدمونه ښکاره وي نو دا خیر دی .

په دې آیت کې اَته ( ۸ ) قِسمه خپلوان نارینه دي ، او څلور ( ۴ ) قِسمه نور دي . پوره تفصیل یې دادی :

۱ **خاوند** : د خاوند نه د خپلې بي بي د هیڅ اَندام پَرده نشته ، بلکه خاوند د خپلې بي بي هر اَندام ته کتلې شي . اګر چې بِلاضرورت د هغې مخصوص اَندام ته کتل ښه کار ندی . (۱)

حضرت عائشة رضي الله عنها فرمایي : (مَارَأَيْتُ مِنْهُ وَلَا رَأَى مِنِّيْ) تَعْنِي الْفَرْجَ . (۲)

---

(۱) وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ إِلَى جَمِيْعِ بَدَنِ زَوْجَتِهِ حتى فرجها ، والأولى تركه . سكب الانهر مع مجمع الانهر ج ۴ ص ۲۰۱ كتاب الكراهية فصل في النظر ونحوه ، زيلعي شرح كنز ج ٦ ص ۱۸ كتاب الكراهية فصل في النظر والمس .

( وَيَنْظُرُ ) الرَّجُلُ ( إِلى جَمِيْعِ بَدَنِ زَوْجَتِهِ وَأَمَتِهِ الَّتِيْ يَحِلُّ لَهُ ) أَيْ لِلرَّجُلِ ( وَطْؤُهَا ) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ « غُضَّ بَصَرَكَ إِلَّا عَنْ زَوْجَتِكَ وَأَمَتِكَ » . قِيْلَ : اَلْأَوْلَى أَنْ لَا يَنْظُرَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا إِلى عَوْرَةِ صَاحِبِهِ ، لِأَنَّهُ يُوْرِثُ النِّسْيَانَ ، وَكَذَا لَا يَنْظُرُ الرَّجُلُ عَوْرَةَ نَفْسِهِ ، لِأَنَّ الصِّدِّيْقَ رَضِيَ اللهُ تَعَالى عَنْهُ لَا يَنْظُرُ إِلى عَوْرَتِهِ وَلَا يَمَسُّهَا بِيَمِيْنِهِ قَطُّ . وَقَالَ الْبَعْضُ : إِنَّ الْأَوْلى أَنْ يَنْظُرَ إِلى فَرْجِ امْرَأَتِهِ وَقْتَ الْوِقَاعِ لِيَكُوْنَ أَبْلَغَ فِيْ تَحْصِيْلِ مَعْنَى اللَّذَّةِ . مجمع الانهر في شرح ملتقى الابحر ج۲ ص ۵۴۹ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ فَصْلٌ فِيْ بَيَانِ أَحْكَامِ النَّظَرِ وَنَحْوِهِ

(۲) مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۸ كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ في تشريح حديث ۳۱۲۳ . و ج ۷ ص ۲۸۳۱ في تشريح حديث ۴۴۶۰ . جمع الوسائل ج ۲ ص ۵۳۳ باب ماجاء في حياء رسول الله صلى الله عليه وسلم ، فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۱۱۲ .

نه ما د رسولُ الله ﷺ مخصوص اَندام لیدلی ، او نه دوی زما مخصوص اَندام لیدلی.

## د کوژدَن په وخت چې نکاح اوتړلې شي نو بیا پَرده ضروري نده

د کوژدَن (کویدَن) په وخت چې د ښځې نکاح اُوتړلې شي نو بیا دا دواړه ښځه او خاوند شو ، اګر چې تر اُوسه د خاوند کورته واده شوي نه وي خو بیا هم د دوی په خپل مینځ کې پَرده ضروري نده ، ځکه د ښځې او خاوند په مینځ کې هیڅ پَرده نه وي. (۱)

۲ . **پلار** : د زَنانه د پاره د خپل پلار نه پَرده نشته . په دې کې نیکه ، او غُور نیکه ټول داخل دي چې د دوی نه هم پَرده نشته.

۳ . **د خاوند پلار** : د زَنانه د پاره د خاوند پلار یعنی سخَر نه پَرده نشته . په دې کې د سخَرپلار ، د سخَرنیکه او غُور نیکه ټول داخل دي چې د دوی نه هم پَرده نشته.

۴ . **خپل ځامن**: د زَنانه د پاره د خپلو ځامنو نه پَرده نشته . په دې کې نَمَسي ، کړوَسي ، او کودي ټول داخل دي چې د دوی نه هم پَرده نشته.

۵ . **د خاوند هغه ځامن چې د بلې ښځې نه وي** : د زَنانه د پاره د دوی نه هم پَرده نشته.

٦ . **ورونړه** : د زَنانه د پاره د خپلو ورنړو نه هم پَرده نشته ، که دا سَکه ورونه وي (یعنی د مور او پلار دواړو نه وي) ، او که صرف د پلار نه وي ، یا صرف د مور نه وي ، ددې ټولو نه پَرده نشته.

۷ . **وریرونه** : د زَنانه د پاره د خپلو وریرونو (یعنی د ورور د ځامنو) نه هم پَرده نشته، که دا د سَکه ورونو ځامن وي ، یا صرف د پلارَني یا صرف مُورني ورونو ځامن وي ددې ټولو نه پَرده نشته.

---

(۱) وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ زَوْجَتِهِ إِلَى جَمِيعِ بَدَنِهَا ، و يحل له مسها والإستمتاع بها فى الفرج و مادونه ... الفقه الحنفي وادلّته ص ۳۸۹ فقه المعاملات القسم الاول كتاب الحظر والاباحة النظر الى المرأة ، عالمگيري ج ۵ ص ۳۲۷ كتاب الكراهية الباب الثامن ، بحر الرائق ج ۸ ص ۱۹۳ كتاب الكراهية فصل فى النظر واللمس . فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۹۲

۸ . **خُورَین** : د زَنانه د پاره د خپلو خُورَینو (یعنی د خور د ځامنو) نه هم پَرده نشته ، که دا د سَکه خُور ځامن وي ، یا صرف د پلارني یا صرف د مورَني خور ځامن وي ، ددې ټولو نه پَرده نشته .

دا اَته (۸) قِسمه خلق د زَنانه خپلوان دي ، د دوی نه د زَنانه پَرده نشته .

۹ . **مسلماناني ښځې** : د زَنانه د پاره د نورو مسلمانانو ښځو نه هم پَرده نشته .

اگر چې بعضې علماء د زَنانه د پاره د کافرانو ښځو نه پَرده واجب گنړي ، او د کافرانو ښځې د نارینهؤ په حکم کې گنړي (۱) لکه په تفسیر ابن کثیر کې ددې تذکره شته . (۲)

خو امام رازي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي چې د مسلماني ښځې د پاره د کافرې ښځې نه پَرده لازمي نده ، او کومو علماؤ چې د پَردې حکم ورنه کړی نو هغه اِستحبابي دی . (۳)

علامه آلوسي رَحِمَهُ اللّٰهُ په تفسیر رُوح المعاني کې همدا قول غوره کړی ، هغه فرمایي :

---

(۱) قَالَ الحصکفي رَحِمَهُ اللّٰهُ : ( وَالذِّمِّيَّةُ كَالرَّجُلِ الْأَجْنَبِيِّ فِي الْأَصَحِّ فَلَا تَنْظُرُ إِلَى بَدَنِ الْمُسْلِمَةِ ) .الدر المختار
قال ابن عابدين رَحِمَهُ اللّٰهُ : { أَوْ نِسَائِهِنَّ } أَيِ الْحَرَائِرِ الْمُسْلِمَاتِ . لِأَنَّهُ لَيْسَ لِلْمُؤْمِنَةِ أَنْ تَتَجَرَّدَ بَيْنَ يَدَيْ مُشْرِكَةٍ أَوْ كِتَابِيَّةٍ . رد المحتار على الدر المختار ج ۶ ص ۳۷۱ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۶۵ پرده .

(۲) وَقَوْلُهُ : { أَوْ نِسَائِهِنَّ } يَعْنِي : تُظْهِرُ زِينَتَهَا أَيْضًا لِلنِّسَاءِ الْمُسْلِمَاتِ دُونَ نِسَاءِ أَهْلِ الذِّمَّةِ ؛ لِئَلَّا تَصِفْهُنَّ لِرِجَالِهِنَّ ..... وَقَالَ مُجَاهِدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي قَوْلِهِ : { أَوْ نِسَائِهِنَّ } قَالَ : نِسَاؤُهُنَّ الْمُسْلِمَاتُ . لَيْسَ الْمُشْرِكَاتُ مِنْ نِسَائِهِنَّ ، وَلَيْسَ لِلْمَرْأَةِ الْمُسْلِمَةِ أَنْ تَنْكَشِفَ بَيْنَ يَدَيِ الْمُشْرِكَةِ .... عَنْ مُجَاهِدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ قَالَ : لَا تَضَعُ الْمُسْلِمَةُ خِمَارَهَا عِنْدَ مُشْرِكَةٍ ، لِأَنَّ اللّٰهَ تَعَالَى يَقُولُ : { أَوْ نِسَائِهِنَّ } فَلَيْسَتْ مِنْ نِسَائِهِنَّ . تفسير ابن كثير ج ۶ ص ۴۸ سورة النور آية ۳۱ .

(۳) قَوْلُهُ تَعَالَى : ﴿ أَوْ نِسَائِهِنَّ ﴾ وَفِيهِ قَوْلَانِ : أَحَدُهُمَا : الْمُرَادُ وَالنِّسَاءُ اللَّاتِي هُنَّ عَلَى دِينِهِنَّ . وَهٰذَا قَوْلُ أَكْثَرِ السَّلَفِ . قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا : لَيْسَ لِلْمُسْلِمَةِ أَنْ تَتَجَرَّدَ بَيْنَ نِسَاءِ أَهْلِ الذِّمَّةِ وَلَا تُبْدِيَ لِلْكَافِرَةِ إِلَّا مَا تُبْدِي لِلْأَجَانِبِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ أَمَةً لَهَا لِقَوْلِهِ تَعَالَى : أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ . وَكَتَبَ عُمَرُ رضي الله عنه إِلَى أَبِي عُبَيْدَةَ رضي الله عنه أَنْ يَمْنَعَ نِسَاءَ أَهْلِ الْكِتَابِ مِنْ دُخُولِ الْحَمَّامِ مَعَ الْمُؤْمِنَاتِ .
وَثَانِيهِمَا : الْمُرَادُ بِنِسَائِهِنَّ جَمِيعُ النِّسَاءِ ، وَهٰذَا هُوَ الْمَذْهَبُ . وَقَوْلُ السَّلَفِ مَحْمُولٌ عَلَى الْاِسْتِحْبَابِ وَالْأَوْلَى .
التفسير الكبير ج ۲۳ ص ۳۶۵ سورة النور آية ۳۱ .

وَهٰذَا الْقَوْلُ أَرْفَقُ بِالنَّاسِ الْيَوْمِ فَإِنَّهُ لَا يَكَادُ يُمْكِنُ اِحْتِجَابُ الْمُسْلِمَاتِ عَنِ الذِّمِّيَّاتِ .

د نن دَور خلقو سره همدا قول موافق دی ، ځکه د مسلمانانو ښځو د پاره د کافرانو ښځو نه پَرده کول ممکن نده . (۱)

۱۰ **خپله وينځه** : زَنانه د پاره د خپلې وينځې نه پَرده نشته . البته زَنانه به د خپل نارينه غلام نه پَرده کوي ، ځکه غلام دديې په حق کې د پَردي سړي په حکم کې دی .

۱۱ . **سادګان او بُولګان** : د زَنانه د پاره د هغه سادګانو او بُولګانو ( شُودګانو ) سرو نه هم پَرده نشته چې هغوی عقل نه لري ، ښځو ته يې شوق نه راپورته کيږي ، د ښځو ښائست او ښُکلا سره دِلچسپي نه لري ، صرف د خوراک په خاطر کورونو ته داخليږي .

۱۲ . **نابالغ ماشوم چې په شهوت نه پوهيږي** : زَنانه د پاره د هغه نابالغ ماشوم نه هم پَرده نشته چې هغه په شهوت نه پوهيږي ، او د زَنانهؤ د خاص حالاتو نه بالکل ناخبره وي. البته که ماشوم په دې خبرو باندې پوهيدو نو بيا دده نه هم پَرده لازم ده . (۲)

دا مذکوره دولس کسان د قرآن کريم په سورة النّور کې ذکر دي چې د دوی نه پَرده نشته .

۱۳ . **خپل تره او خپل ماما** : زَنانه د پاره د خپل تره او خپل ماما نه هم پَرده نشته ، اګر چې په مذکوره آيت کې ددې تذکره نشته خو دا هم د وروڼو په حکم کې دي .

ځکه د زَنانه د پاره ( د پلار او مور د طرفه ) نيکه داسې دي لکه خپل پلار ، نو اوس د دوی بچي د زَنانه د پاره داسې شو لکه خپل وروڼه ، او د وروڼو نه پَرده نشته ، نو لهذا زَنانه ته د خپل تره او خپل ماما نه هم پَرده نشته . (۳)

---

(۱) روح المعاني ج ۹ ص ۳۳۸ سورة النور آية ۳۱ .

(۲) معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله سورة النور في تشريح آية ۳۱ .

(۳) ولم يذكر سبحانه الأعمام والأخوال مع أنّهم كما قال الحسن وابن جبير كسائر المحارم في جواز إبداء الزّينة لهم قيل : لأنّهم في معنى الإخوان من حيث كون الجدّ سواء كان أب الأب أو أب الأم في معنى الأب فيكون ابنه في معنى الأخ. وقيل: لم يذكرهم سبحانه لِما أنّ الأحوط أن يستترن عنهم حذرا من أن يصفوهن لأبنائهم فيؤدي ذلك إلى نظر الأبناء إليهن. تفسير روح المعاني ج ۹ ص ۳۳۷ سورة النور آية ۳۱ .

**۱٤. رضاعت** : همدارنګې په رضاعت سره چې کومې رِشتې حرامې دي د هغوی نه هم پَرده نشته. (مثلاً زَنانه د پاره د رضاعي ورور، رضاعي وراره، رضاعي تره، رضاعي ماما وغيره نه پَرده نشته).

حضرت عائشې رضي الله عنها به فرمايل :

حَرِّمُوْا مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا تُحَرِّمُوْنَ مِنَ النَّسَبِ . (۱)

تاسو چې د نسب په وجه کومې رِشتې حرامې ګنړئ، هغه د رضاعت په وجه هم حرامې اوګنړئ.

(يعنی لکه څرنګې چې زَنانه ؤ ته د خپل حقيقي ورور او حقيقي تره سره نکاح ناجائزده نو همدغه شان د رضاعي ورور او رضاعي تره سره هم نکاح ناجائزده . نو د دوی نه پَرده هم نشته).

نبي عليه السلام حضرت عائشې رضي الله عنها ته فرمائلي وو چې ستا د پاره د رضاعي تره نه پَرده نشته، که هغه ستا کور ته راځي نو دا خېر دی. (۲)

خلاصه دا چې زَنانه د پاره کوم کس مَحرَم وي يعنی چې د چا سره يې نکاح نه کيږي نو د هغه نه پَرده نشته، او د چا سره يې چې نکاح کيږي د هغه پرده شته.

---

(۱) صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ قَوْلِهِ: {إِنْ تُبْدُوا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوهُ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ...} رقم الحديث ۴۷۹٦، ورقم الحديث ٦١٥٦ كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «تَرِبَتْ يَمِينُكِ، وَعَقْرَى حَلْقَى».

(۲) عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها، قَالَتْ: جَاءَ عَمِّي مِنَ الرَّضَاعَةِ يَسْتَأْذِنُ عَلَيَّ، فَأَبَيْتُ أَنْ آذَنَ لَهُ حَتَّى أَسْتَأْمِرَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَلَمَّا جَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ: إِنَّ عَمِّي مِنَ الرَّضَاعَةِ اسْتَأْذَنَ عَلَيَّ فَأَبَيْتُ أَنْ آذَنَ لَهُ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «فَلْيَلِجْ عَلَيْكِ عَمُّكِ». قُلْتُ: إِنَّمَا أَرْضَعَتْنِي الْمَرْأَةُ، وَلَمْ يُرْضِعْنِي الرَّجُلُ، قَالَ: «إِنَّهُ عَمُّكِ، فَلْيَلِجْ عَلَيْكِ». صحيح مسلم كِتَابُ الرِّضَاعِ بَابُ تَحْرِيمِ الرَّضَاعَةِ مِنْ مَاءِ الْفَحْلِ رقم ۷(۱۴۴۵). صحيح البخاري رقم الحديث ۴۷۹٦، ورقم الحديث ٦١٥٦.

# زَنانه د پاره د پرَدو سرو د وړاندې د مخ پټولو تفصيلي بحث

د فِتنې په دې دَور کې زَنانه د پاره د پرَدو سرو د وړاندې خپل مخ پټول په کار دي.
الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾.(۱)

ترجمه: (اې پیغمبره! ته مؤمنانو ښځو ته اُووایه)... او دوی دې خپل زِينت نه ښکاره کوي مگر کوم چې ددينه پخپله ښکاره شي.

الله تعالى په مذکوره آيت کې زَنانه د زِينت ښکاره کولو نه منع کړي مگر کوم زينت چې د کار او حرکت کولو په وخت عادةً پخپله ښکاره شي او د هغې پټول مشکل وي نو هغه ورنه مستثنى دی.

## د "إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا" په تفسير کې اختلاف:

ددې "إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا" په تفسير کې د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ او حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما اختلاف دی، د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ په نزد ددينه د زَنانه غټ څادر(بُرقع) او کپړې مراد دي، اوس د آيت مطلب دا شو چې:

" زَنانه دې خپل زِينت نه ښکاره کوي مگر که بهر ته د وتلو په وخت ددې غټ څادر (بُرقع) يا کپړې ښکاره شي نو دا خبر دی، ځکه ددې په پټولو کې حرَج دی".(۲)

---

(۱) النور آية ۳۱.

(۲) عن عبد الله (بن مسعود ﷺ) قال: (وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا) قال: الثياب. تفسير الطبري (جامع البيان في تأويل القرآن) ج ۱۹ ص ۱۵۶ سورة النور آية ۳۱.

{ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا } أَيْ: لَا يُظْهِرْنَ شَيْئًا مِنَ الزِّينَةِ لِلْأَجَانِبِ إِلَّا مَا لَا يُمْكِنُ إِخْفَاؤُهُ. وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ ﷺ: كَالرِّدَاءِ وَالثِّيَابِ. يَعْنِي: عَلَى مَا كَانَ يَتَعَانَاهُ نِسَاءُ الْعَرَبِ مِنَ الْمِقْنعة الَّتِي تُجَلِّل ثِيَابَهَا. وَمَا يَبْدُو مِنْ أَسَافِلِ الثِّيَابِ فَلَا حَرَجَ عَلَيْهَا فِيهِ، لِأَنَّ هَذَا لَا يُمْكِنُ إِخْفَاؤُهُ. وَنَظِيرُهُ فِي زِيِّ النِّسَاءِ مَا يَظْهَرُ مِنْ إِزَارِهَا، وَمَا لَا يُمْكِنُ إِخْفَاؤُهُ. وَقَالَ بِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ ﷺ: الْحَسَنُ، وَابْنُ سِيرِينَ، وَأَبُو الْجَوْزَاءِ، وَإِبْرَاهِيمُ النَّخَعِيُّ وَغَيْرُهُمْ. تفسير ابن كثير ج۶ ص ۴۵ سورة النور آية ۳۱.

نو د ابن مسعود ﷺ په نزد د زَنانه د پاره بهر ته وتلو په وخت مخ او لاسونه ښکاره کول ناجائز دي.

او حضرت عبد الله بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فرمايي چې د " اِلَّا مَاظَهَرَ مِنْهَا " نه مخ او د لاسونو وَرغوي مراد دي. اوس دده په نزد د آيت مطلب دا شو چې:
زَنانه به خپل زينت نه ښکاره کوي مګر مخ او لاسونه ښکاره کولې شي ځکه ددې پټول مشکل دي.
( خو شرط دادی چې د زَنانه مخ او لاسونو ښکاره کولو سره د فِتنې يَره نه وي).

## د امام بيضاوي رَحِمَهُ اللَّهُ تحقيق

امام بيضاويؒ فرمايي چې په " اِلَّا مَاظَهَرَ مِنْهَا " سره چې د مخ او لاسونو کومه اِستثناء شوی " چې دا په عورت کې داخل ندي " نو ظاهره داده چې دا د مانځه په باره کې عورت ندي ( يعنی که په مانځه کې د زَنانه مخ او لاسونه ښکاره شي نو مونځ يې نه ماتيږي)، د پرَدو سړو په حق کې د اَصيلې ښځې ټول بدن عورت دی ، د خپل خاوند او خپلو مَحارمو نه علاوه بل هيچا ته اِجازت نشته چې بِلا ضرورت د ښځې مخ ته اوګوري. (۱)

## د قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ اللَّهُ تحقيق

قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ اللَّهُ په تفسير مظهري کې ذکر کړي چې که په مذکوره آيت کې د زِينت نه مراد مطلقِ زينت شي او د ابن مسعود ﷺ په قول عمل اوشي نو بيا به په دَلَالَةُ النَّصّ سره د ښځې د پاره د پرَدو سړو د وړاندې مخ او لاسونه ښکاره کول حرام شي.

(۱) ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ ﴾ كالحليّ والثياب والأصباغ فضلًا عن مواضعها لمن لا يحل أن تبدى له. ﴿ إِلَّا مَا ظَهَرَ ﴾ مِنْهَا عند مزاولة الأشياء كالثياب والخاتم فإن في سترها حرجًا. وقيل المراد بالزينة مواضعها على حذف المضاف أو ما يعم المحاسن الخلقية والتزيينية. والمستثنى هو الوجه والكفان لأنها ليست بعورة. والأظهر أنّ هٰذا في الصّلاة لا في النظر ، فإنّ كلّ بدن الحرة عورة لا يحل لغير الزوج والمحرم النظر إلى شيء منها إلّا لضرورة كالمعالجة وتَحَمُّلِ الشهادة . تفسير البيضاوي ج۴ ص۱۰۴ سورة النور آية ۳۱.

او که د زینت نه مراد د زِینت ځایونه مراد شي نو بیا به د روستو استثناء مطلب دا شي چې زَنانه ته د ضرورت په ځایونو کې مخ لاسونه ښکاره کول جائز دي .

بیا قاضي صاحب ذکر کړي چې زَنانه د پاره د پرَدو سرو د وړاندې مخ ښکاره کول حرام دي ، او په دې باندې د قرآن کریم دا آیت هم دلالت کوي ، الله ﷻ فرمايي :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّ ﴾.(۱)

ترجمه: اې پیغمبره ! ته خپلو بیبیانو ، خپلو لورانو او مؤمنانو زَنانهؤ ته اُووایه چې (د کور نه د څه ضرور کار پسې د وتلو په وخت) خپل لوي څادرونه په ځان باندې راښکته کړي.

بیا قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ اللهُ نور دلائل هم په دې باندې ذکر کړي چې د ښځې د پاره د پرَدو سرو د وړاندې خپل مخ ښکاره کول ناجائز دی.(۲)

---

(۱) الاحزاب آية ۵۹ .

(۲) فالمرادُ بالزِينة في الاية اِنْ كانَ نفس الزِينة كما فسّرناه تبعا لما قال البيضاوي بالحلى والثياب والاصباغ. ويكون حينئذٍ تحريم إبداء مواضع الزِينة بدلالة النّص بالطريق الاولى فلا خفاء على هذا في تأويل الاستثناء. حيث يقال معنى" إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا" الا ثيابها الظاهرة . قال البغوي : قال ابن مسعود ﷺ : هى الثياب بدليل قوله تعالى : " خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ" وأراد به الثياب.
وانْ كان المراد بها مواضع الزينة فمعنى الاستثناء الا ما ظهر منها عند الضرورات ضرورة الخروج لقضاء الحوائج او ضرورة الاستشهاد او نحو ذلك يعنى من غير قصد الى ابدائها . فاستثناء الوجه والكفين من عورة الحرّة ليس الّا لاجل الصّلاة .
ويدلّ على عدم جواز إبداء المرأة وجهها قوله تعالى : ﴿يا أيها النبي قل لأزواجك وبناتك ونساء المؤمنين﴾. قال ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وابو عبيدة ﷺ أمرت نساء المؤمنين ان يغطين رءوسهنّ ووجوههنّ بالجلابيب الا عينًا واحدًا يعلم انّهنّ حرائر. وما ذكرنا من حديث " جاءت امراة من خثعم عام حجة الوداع سائلة مسئلة قضاء الحج عن أبيها " محمولٌ على جواز خروجها لضرورة السؤال عن المسألة . وما ذكر من " انّ الفضل ﷺ كان ينظر إليها وتنظر اليه فجعل النبيّ صلى الله عليه وسلم يصرف وجه الفضل ﷺ الى الشقّ الاخر " صريحٌ في المنع عن النّظر الى وجه المرأة الاجنبيّة لعدم الأمن عليهما من الشيطان. التفسير المظهري ج ۶ ص ۴۹۵ سورة النور آية ۳۱ .

## د علامه شنقيطي رَحِمَهُ اللَّهُ تحقيق

علامه شنقيطي رَحِمَهُ اللَّهُ په خپل تفسير " أضواءُ البيان في إيضاح القرآن بالقرآن " کې د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او حضرت عبدالله بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا د اقوالو ذکر کولو نه پس ليکلي چې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قول ډير بهتر دی (چې زَنانه به خپل مخ غير مَحرَمو سړو ته نه ښکاره کوي) ؛ ځکه په دې کې احتياط دی ، د فِتنې نه لرې کيدل دي ، او د سړو او ښځو د زړونو د پاکوالي ذريعه ده.

بل دا چې د ښځې مخ خو د ښائست مرکز دی ، او ديته کتل خو په فِتنه کې د واقع کيدلو غټ سبب دی ، ( لهذا د زَنانه د پاره د پَردو سړو د وړاندې خپل مخ پټول لازمي دی ). (۱)

## د ابن عباسؓ د تفسير موافق هم د آيت نه زَنانهؤ ته قصدًا د مخ ښکاره کولو جواز نه معلوميږي

که چيرته د حضرت عبدالله بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا د تفسير موافق د " إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا " نه مخ او لاسونه مراد شي نو بيا هم ددې آيت نه د زَنانهؤ د پاره د پَردو سړو د وړاندې د خپل مخ ښکاره کولو جواز نه معلوميږي. ځکه الله تعالى داسې او فرمايل :

" إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا " مګر چې کوم ورنه پخپله ښکاره شي.

داسې يې ندي فرمايلي : " إِلَّا مَا أَظْهَرْنَ مِنْهَا " چې کني ښځې دې قصدًا ښکاره کوي.

يعنی دلته آيت کې " مَا ظَهَرَ " فعلِ لازمي صيغه استعمال شوی ، مطلب يې دادی :

" چې کوم زينت پخپله ښکاره شي نو هغه خبر دی ".

---

(۱) أَظْهَرُ الْقَوْلَيْنِ الْمَذْكُورَيْنِ عِنْدِيْ قَوْلُ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : أَنَّ الزِّيْنَةَ الظَّاهِرَةَ هِيَ مَا لَا يَسْتَلْزِمُ النَّظَرُ إِلَيْهَا رُؤْيَةَ شَيْءٍ مِنْ بَدَنِ الْمَرْأَةِ الْأَجْنَبِيَّةِ، وَإِنَّمَا قُلْنَا إِنَّ هٰذَا الْقَوْلَ هُوَ الْأَظْهَرُ ، لِأَنَّهُ هُوَ أَحْوَطُ الْأَقْوَالِ، وَأَبْعَدُهَا عَنْ أَسْبَابِ الْفِتْنَةِ، وَأَطْهَرُهَا لِقُلُوْبِ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ، وَلَا يَخْفَى أَنَّ وَجْهَ الْمَرْأَةِ هُوَ أَصْلُ جَمَالِهَا وَرُؤْيَتَهُ مِنْ أَعْظَمِ أَسْبَابِ الْإِفْتِتَانِ بِهَا ، كَمَا هُوَ مَعْلُوْمٌ وَالْجَارِيْ عَلَى قَوَاعِدِ الشَّرْعِ الْكَرِيْمِ هُوَ تَمَامُ الْمُحَافَظَةِ وَالْإِبْتِعَادُ مِنَ الْوُقُوْعِ فِيْمَا لَا يَنْبَغِيْ . اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج ۵ ص ۵۱۷ سورة النور آية ۳۱.

د " مَآ اَظْهَرْنَ " فعلِ متعدي صيغه نده استعمال شوى " چې ګنې زنانه دې خپل زينت قصدًا ښکاره کړي " .

لهذا د حضرت عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د تفسير موافق هم ددې آيت نه دا نه ثابتيږي " چې ګنې زَنانه دې قصدًا مخ او لاسونه ښکاره کوي " . (۱)

## په آيت کې د اول زِينت نه مراد " ظاهري زِينت " دی

د سورة النّور په يو ديرشم آيت کې الله تعالى دوه ځلې د زِينت ښکاره کولو نه منع کړې (يعنى دوه ځل يې وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ فرمائلي . (۲) ) او په هر ځل يې ورنه ځانله ځانله استثناء کړې ، نو ددينه هم معلوميږي چې دواړه زِينتونه جدا جدا دي .

د اول نه ظاهري زِينت ( يعنى بُرقع او څادر ) مراد دي نو اوس به يې مطلب دا شي :

﴿ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾ او زَنانه دې خپل زِينت نه ښکاره کوي مګر که بهر ته د وتلو په وخت ددې غټ څادر (بُرقع ) يا کپړې ښکاره شي نو دا خېر دی ، ځکه ددې پټول مشکل دي .

او د دويم زينت نه باطني زينت (يعنى رانجه ، بَنګړي ، ګتمه وغيره ) مراد دي چې دا زَنانه صرف هغه خلقو ته ښکاره کولې شي د کومو تذکره په آيت کې شوی : چې هغه خاوند ، پلار ، ورونړه وغيره دي .

که چيرته دواړه ځايه د زِينت نه مراد يو وى نو بيا به دوه ځايه د ﴿ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ ﴾ ذکر کولو څه فائده ښکاره نشي . (۳)

---

(۱) شرعي پرده لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۳۶ .

إنّ الله تعالى نهى عن إبداء الزينة مطلقًا إلّا ما ظهر منها ، وهي الّتي لابدّ أنْ تظهر كظاهر الثياب ولذلك قال: { إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا } لم يقل إلا ما أظهرن منها . رسالة الحجاب لمولانا محمد بن صالح العثيمين ص ۱۱ .

(۲) الله تعالى فرمايي ، وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ ، وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ .... النور آية ۳۱ .

(۳) إنّ الله تعالى نهى عن إبداء الزّينة مطلقًا إلّا ما ظهر منها ، وهي الّتي لابدّ أنْ تظهر كظاهر ←←←

دا ياد ساتئ چې د مذکوره آيت نه هيڅ کله دا نه ثابتيږي چې ګني نارينه د پاره د پردې زَنانه مخ ته کتل جائز دي ، بلکه نارينه ؤ ته اوس هم دا حکم دی چې خپل نظرونه به ښکته ساتي ، خو که د څه شرعي ضرورت په وجه د زَنانه مخ او لاسونه ښکاره شي نو پرَدي سړي به ورته بِلاضرورته نه ګوري .

## د فقهاؤ اختلاف :

چونکه د ﴿ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾ په تفسير کې د ابن مسعود رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنهما اختلاف دی نو په همدې بِناء باندې د اُمت فقهاؤ هم په دې کې اختلاف کړی چې :

" آيا د زَنانه مخ او لاسونه د پَردې نه مستثنٰی دي او که نه ؟ "

امام مالک ، امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهم الله د ابن مسعود رضي الله عنه قول ته ترجيح ورکړی ، د دوی په نزد زَنانه د پاره د بهر وتلو په وخت د مخ او لاسونو ښکاره کول او د دوی مخونو ته کتل مطلقًا ناجائز دي که د فِتنې يَره وي او که نه . (١)

او د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په نزد که د فِتنې يَره نه وه نو بيا د مخ او لاسونو ښکاره کولو اجازت شته . خو چونکه عادةً د مخ او لاسونو په ښکاره کولو کې د فِتنې يَره شته ، ځکه مخ خو د حُسن مَظهَر دی ، لهذا متأخرينو حنفي فقهاؤ هم زَنانه د پاره د پرَدو سړو د

---

←←← الثياب ولذلك قال: { إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا } لم يقل" إِلَّا مَا أَظْهَرْنَ مِنْهَ. ثمّ نهى مرة أخرى عن إبداء الزينة إلا لمن استثناهم. فدلّ هٰذا على أنّ الزينة الثانية غير الزينة الأولى فالزينة الأولى هي الزينة الظاهرة التي تظهر لكل أحد ولا يمكن إخفاؤها. والزينة الثانية هي الزينة البطنة التي يتزيّن بها. ولو كانت هذه الزينة جائزة لكل أحد لم يكن للتعميم في الأولى والاستثناء في الثانية فائدة معلومة. رسالة الحجاب ص ١١

عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: اَلزِّيْنَةُ زِيْنَتَانِ: زِيْنَةٌ ظَاهِرَةٌ. وَزِيْنَةٌ بَاطِنَةٌ لَا يَرَاهَا إِلَّا الزَّوْجُ. فَأَمَّا الزِّيْنَةُ الظَّاهِرَةُ: فَالثِّيَابُ. وَأَمَّا الزِّيْنَةُ البَاطِنَةُ: فَالْكُحْلُ. وَالسِّوَارُ وَالخَاتَمُ. وَلَفْظُ ابْنِ جَرِيْرٍ: فَالظَّاهِرَةُ مِنْهَا الثِّيَابُ. وَمَا يَخْفٰى: فَالخَلْخَالَانِ وَالقُرْطَانِ وَالسِّوَارَانِ. أخرجه ابنُ أبي شيبةَ. وابنُ جرير. وابنُ المنذر. اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج ٥ ص ٥١٣ سورة النور آية ٣١ .

(١) د درې وارو مذاهبو د کتابونو عبارتونه په کشف الباري کې ذکر دي . کشف الباري لشيخ الحديث مولانا سليم الله خان رحمه الله كتاب الاستيذان ص ٤٩ حاشية ٥١ .

وراندې د مخ او لاسونو ښکاره کولو اجازت مطلقًا ندې ورکړې.

**اتفاقي خبره**: په دې خبره د ټولو فقهاؤ اتفاق دی چې کله د زنانه د پاره د مخ په ښکاره کولو سره د فتنې يره وي نو بيا يې ښکاره کول ناجائز دي، او ديته کتل هم ناجائز دي.

دا ښکاره خبره ده چې د زنانه ؤ د ښائست اصلي مرکز مخ دی، او نن صبا د فتنې او فساد زمانه ده، د شهوت غلبه ده، لهذا د سخت ضرورت نه بغير زنانه د پاره د پردو سرو د وراندې مخ او لاسونه ښکاره کول منع دي، او پردو سرو د پاره هم ديته بغير د ضرورتِ شرعيه نه کتل منع دي. (۱)

بلکه په هندې باندې د څلورو وارو مذاهبو او نورو علماؤ اجماع ده: " چې کله د فتنې يره وي نو د ځواني ښځې د پاره د مخ پټول واجب دي، او همدا مخ پټول د زنانه د پاره شريعتِ ربّاني دی". (۲)

تر دې چې په څلورو وارو مذهبو کې که د چا په نزد مخ او لاسونه په عورت کې داخل دي او که د چا په نزد داخل ندي خو د دې ټولو په دې باندې اتفاق دی چې:

د ښځې د پاره د پردو سرو نه ټول بدن او خاصکر مخ پټول واجب دي؛ ځکه په دې زمانه

---

(۱) معارف القرآن سورة النور في تشريح آية ۳۱. وسورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳. وهكذا في كشف الباري كتاب الاستيذان ص ۵۰

قال الحصكفي رَحِمَهُ اللهُ: (فَإِنْ خَافَ الشَّهْوَةَ) أَوْ شَكَّ (مَنَعَ نَظَرَهُ إِلَى وَجْهِهَا) فَحِلُّ النَّظَرِ مُقَيَّدٌ بِعَدَمِ الشَّهْوَةِ وَإِلَّا فَحَرَامٌ. وَهٰذَا فِي زَمَانِهِمْ. وَأَمَّا فِي زَمَانِنَا فَمَنَعَ مِنَ الشَّابَّةِ. الدر المختار كِتَابُ الحَظْرِ وَالإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالمَسِّ ج ۶ ص ۳۷۰. وهكذا في احكام القرآن للجصاص ج ۳ ص ۵۴۶ سورة الاحزاب.

(۲) وأجمع العلماءُ من جميع المذاهب الأربعة وغيرها: أنّ تغطية وجه المرأة الحرة الشابة عند خوف الفتنة بها واجب. خاصة عند من يطنقونه أبصارهم اليها. ولا تحترز منهم إلا بتغطية وجهها. حكي الإجماع على هذا جماعة: كابن رسلان والجويني. وغيرهم. قال بن رسلان ويدل على تقييده بالحاجة يعني النظر اتفاق المسلمين على منع النساء أن يخرجن سافرات الوجوه. لا سيما عند كثرة الفساق

وأجمع العلماء من جميع المذاهب الأربعة وغيرها أنّ تغطية المرأة الحرة الشابة لوجهها شريعة ربانية لذاته. وإنما خلافهم في التاركة له في غير فتنة هل هي تاركة لفرض تأثم به. او مستحب وفضيلة. الحجاب في الشرع والفطرة ج ۱ ص ۷۹ نهاية المطلب ج ۱۲ ص ۳۱. عون المعبود ج ۱۱ ص ۱۶۲

کې فساد زيات دی او د خلقو دِينونه کمزوري دي .(۱)

## د فقهاء کرامو په نزد هم د ښځې د پاره بِلاضرورت د پرَدو سرو د وړاندې مخ ښکاره کول ناجائز دي

بعضې خلق په دې باندې دَهوکه شوي چې هغوی چيرته د فِقهې په کتابونو د مانځه په مسائلو کې دا مسئله کتلې چې : " د ښځې د مخ ، لاسونو او خپو نه علاوه نور ټول بدن عورت دی ، نو که په مانځه کې د ښځې مخ ، يا لاسونه تر مروَندونو پورې ، يا خپې تر ځنګلو پورې ښکاره شي نو مونځ يې کيږي ، باقي ټول بدن پټول فرض دي " . (۲)

---

(۱) نستطيع أنْ نخلصَ مما تقدم بأنّ علماء المذاهب الأربعة يكادون يتفقون على وجوب تغطية المرأة جميع بدنها عن الأجانب، سواء منهم من يرى أنّ الوجه والكفين عورة. ومن يرى أنّهما غير عورة لكنه يوجب تغطيتهما في هذا الزمان لفساد أكثر الناس، و رقة دينهم. وعدم تورعهم عن النظر المحرم إلى وجه المرأة الذي هو مجمع المحاسن، ومعيار الجمال، ومصباح البدن . عودة الحجاب ج ۳ ص ۴۷۴ ، إلى كل فتاة تؤمن بالله ص ۴۴.

المذاهب الأربعة المتبوعة: مِنهم مَن قال بوجوب ستر وجه المرأة عن الرّجال الأجانب. ومنهم من قال باستحباب ستر وجهها عن الرجال الأجانب عند أمن الفتنة. أما عند خشية الفتنة فيجب عند جميع العلماء. والتفصيل على النحو الآتي: وجوب ستر المرأة جميع بدنها، بما في ذلك وجهها وكفيها عن الرجال الأجانب عنها. وقد رأى بعض أهل العلم أن الوجه والكفين عورة لا يجوز إظهارهما لغير النساء المسلمات والمحارم. استنادًا إلى الحديث الصحيح: « اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ » . و رأى البعض الآخر أنّهما غير عورة. لكنّهم قالوا بوجوب سترهما لخوف الفتنة نظرًا لفساد الزمن. فانعقدت خناصر المذاهب الأربعة على وجوب سترهما. وحرمة كشفهما ، لذا نقل الإمام النووي. والتقي الحصني، والخطيب الشربيني. وغيرهم عن الإمام الجويني إمام الحرمين اتفاقَ المسلمين على منع النساء من الخروج سافرات الوجوه . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۳۷۸.

(۲) په دُرمختار کې دا مسئله داسې ذکر ده : (وَالْعَوْرَةُ لِلْحُرَّةِ) وَلَوْ خُنْثَى (جَمِيْعُ بَدَنِهَا) حَتَّى شَعْرِهَا النَّازِلُ فِي الْأَصَحِّ (خَلَا الْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ) فَظَهْرُ الْكَفِّ عَوْرَةٌ عَلَى الْمَذْهَبِ (وَالْقَدَمَيْنِ) عَلَى الْمُعْتَمَدِ، وَصَوْتُهَا عَلَى الرَّاجِحِ وَ ذِرَاعَيْهَا عَلَى الْمَرْجُوْحِ. الدرالمختار ج۱ ص ۴۰۶ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ.

په بحر الرائق کې ذکردي : وَبَدَنُ الْحُرَّةِ عَوْرَةٌ إِلَّا وَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا وَقَدَمَيْهَا لِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا} قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَجْهُهَا وَكَفَّيْهَا وَإِنْ كَانَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ فَسَّرَهُ بِالثِّيَابِ. البحرالرائق ج ۱ ص ۲۸۴.

دا مسئله فقهاؤ د مانځه په باره کې لیکلې ده ، خو دا بعضې خلق وریاندې دُهوکه شوي، دوی ورته معلومه کړې چې ګنې ښځه د پَردو سرو د وراندې خپل مخ ښکاره کولې شي. حالانکه د قرآن په صریحو آیتونو او بې شماره صحیح احادیثو کې د ښځې د پاره د پرَدو سرو د وراندې د مخ پټولو حکم شوی.

همدا رنګې فقهاء کرامو همدلته د مانځه د شرائطو بیانولو سره سره د حِجاب مسئله هم ذکر کړې چې :

" مخ او لاسونه اګر چې عورت ندي خو د پرَدو سرو د وراندې یې ښکاره کول ناجائز دي "

دا ددې د پاره چې خلق په هغه پاس مسئله باندې دُهوکه نشي.

په **دُرمختار** کې د مذکوره مسئلې پسې متصل ذکر دي :

(وَتُمْنَعُ) الْمَرْأَةُ الشَّابَّةُ (مِنْ كَشْفِ الْوَجْهِ بَيْنَ رِجَالٍ) لَا لِأَنَّهُ عَوْرَةٌ بَلْ (لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ). (۱)

ځوانه ښځه به د پرَدو سرو د وراندې د مخ ښکاره کولو نه منع کولې شي ، دا منع کول ددې د وجې ندي چې ګنې دا ( د مانځه واله ) عورت دی ، بلکه په مخ ښکاره کولو کې د فِتنې یَره ده.

د دُرمختار واله د ډیر احتیاط په وجه همدا مسئله روستو په کِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ کې هم ذکر کړې. (۲)

په **بَحرالرّائق** کې هم د مانځه شرائطو بیانولو په بحث کې دا مسئله ذکر ده :

قَالَ مَشَايِخُنَا : تُمْنَعُ الْمَرْأَةُ الشَّابَّةُ مِنْ كَشْفِ وَجْهِهَا بَيْنَ الرِّجَالِ فِي زَمَانِنَا لِلْفِتْنَةِ. (۳)

زمونږ مشائخو ویلي چې په دې زمانه کې به ځوانه ښځه د پرَدو سرو د وراندې د مخ ښکاره کولو نه منع کولې شي ؛ ځکه د ښځې د مخ په ښکاره کولو کې فِتنه ده.

**قاضي خان** د مانځه شرائط ذکر کولو سره فرمائلي دي :

وَالْمُعْتَبَرُ فِي إِفْسَادِ الصَّلَاةِ الْكِشَافُ مَا فَوْقَ الْأُذُنَيْنِ لَا مَا تَحْتَهُمَا هُوَ الصَّحِيحُ . وَفِي حُرْمَةِ

(۱) الدرالمختار ج۱ ص۴۰٦ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ.

(۲) الدرالمختار كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ ج٦ ص ٣٦٧.

(۳) البحرالرائق ج ۱ ص۲۸۴ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ.

النَّظَرِ سَوَّى مَا بَيْنَهُمَا هُوَ الصَّحِيْحُ . (۱)

يعنى كه په مانځه كې د زَنانه د غوږونو نه پورته حصه ( سَر او ويښتان ) ښكاره شي نو مونځ يې فاسديږي او همدا صحيح قول دى ، خو د پرَدو سړو په حق كې د زَنانه د غوږونو نه پورته حصه ( سَر او ويښتان ) او ښكته حصه ( مخ وغيره ) دواړه برابر دي ، دواړو ته كتل حرام دي ، او همدا صحيح قول دى .

**خاوند ته د وهلو اجازت** بلكه كه يوه زَنانه د پرَدو سړو د وړاندې بِلا ضرورت خپل مخ ښكاره كوي نو خاوند ته دا اجازت شته چې ديته سزا وركړي.

دُرمختَار واله د تَعزير په باب كې هغه ځايونه ذكر كړي چې په هغې كې خاوند ته دا اجازت شته چې ښځې ته سزا وركړي ، په هغې كې دا هم دي :

أَوْ كَشَفَتْ وَجْهَهَا لِغَيْرِ مَحْرَمٍ . أَوْ كَلَّمَتْهُ . أَوْ شَتَمَتْهُ . (۲)

يا ښځه خپل مخ پرَدي سړي ته ښكاره كړي ، يا د پرَدي سړي سره خبرې اوكړي . يا هغه ته كنځل اوكړي .

**چې د ښځې مخ ښكاره وي نو بيا خو د پردې مقصد ختم شو** : د ښځې ټول حُسن او كشَش خو په مخ كې جمع شوې وي ، كه چيرته ديته د بهر وتلو په وخت د مخ ښكاره كولو جازت وركړې شي نو بيا خو د پَردې چې كوم مقصد دى " يعنى عِفّت او پاكدامي " هغه په خطر كې شو .

---

(۱) درر الحكام شرح غرر الأحكام ج ۱ ص ۵۹ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ

(۲) هغه ځايونه چې په هغې كې خاوند ته دا اجازت شته چې ښځې ته سزا وركړي هغه دادي : (وَيُعَزِّرُ الْمَوْلَى عَبْدَهُ وَالزَّوْجُ زَوْجَتَهُ ) وَلَوْ صَغِيْرَةً لِمَا سَيَجِيْءُ ( عَلَى تَرْكِهَا الزِّيْنَةَ ) الشَّرْعِيَّةَ مَعَ قُدْرَتِهَا عَلَيْهَا ( وَ ) تَرْكِهَا ( غُسْلَ الْجَنَابَةِ . وَ ) عَلَى ( الْخُرُوجِ مِنَ الْمَنْزِلِ ) لَوْ بِغَيْرِ حَقٍّ ( وَتَرْكِ الْإِجَابَةِ إِلَى الْفِرَاشِ ) لَوْ طَاهِرَةً مِنْ نَحْوِ حَيْضٍ وَيَلْحَقُ بِذٰلِكَ مَا لَوْ ضَرَبَتْ وَلَدَهَا الصَّغِيْرَ عِنْدَ بُكَائِهِ . أَوْ ضَرَبَتْ جَارِيَتَهُ غَيْرَةً وَلَا تَتَّعِظُ بِوَعْظِهِ . أَوْ شَتَمَتْهُ وَلَوْ بِنَحْوِ يَا حِمَارُ أَوِ ادَّعَتْ عَلَيْهِ أَوْ مَزَّقَتْ ثِيَابَهُ أَوْ كَلَّمَتْهُ لِيَسْمَعَهَا أَجْنَبِيٌّ . أَوْ كَشَفَتْ وَجْهَهَا لِغَيْرِ مَحْرَمٍ . أَوْ كَلَّمَتْهُ أَوْ شَتَمَتْهُ أَوْ أَعْطَتْ مَا لَمْ تَجْرِ الْعَادَةُ بِهِ بِلَا إِذْنِهِ وَالضَّابِطُ كُلُّ مَعْصِيَةٍ لَا حَدَّ فِيْهَا فَلِلزَّوْجِ وَالْمَوْلَى التَّعْزِيْرُ . وَلَيْسَ مِنْهُ مَا لَوْ طَلَبَتْ نَفَقَتَهَا أَوْ كِسْوَتَهَا وَأَلَحَّتْ ، لِأَنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا الدرالمختار ج ۴ ص ۷۷ بَابُ التَّعْزِيرِ وهكذا في فتاوى محمودیه ج ۲۱ ص ۱۱۲ [illegible]

بل داچې که دوی ته صرف د مخ ښکاره کولو اجازت ورکړې شي نو بیا به دا ګارنټي څوک اخلي چې دا به نور آندامونه نه ښکاره کوي؟

نن صبا خو په اکثره اسلامي ملکونو کې بعضو ښځو د خپل وجوذ یو څو آندامونه پټ کړي وي نور یې اکثره بدن ښکاره وي.

بعضو په کې صرف نرې جانګې اچولې وي، او نور د بدن اکثره حصه ویښتان، سینې، او پونډۍ یې ښکاره وي. که حالات همداسې روان وي نو پته نه لږي چې آئنده به دا ښځې څه څه نخرې او کړي؟

اسلام خو زَنانه د قیمتي ملغلرې په شان محفوظ ساتلې، ددې د حیاء او عزت حفاظت یې کړی، لیکن افسوس چې نن صبا د بعضې مسلمانانو ښځې د یورپي ملکونو د ښځو په شان په بازارونو کې بې پَردې ګرځي، او زړه یې چې څه غواړي هغه کوي. لیکن د دوی سَرپرستان ورته هیڅ نه وایي، بلکې دیته کمال او ثقافت وایي. او په دې باندې فخر کوي. (اَلْعِیَاذُ بِاللہ). (۱)

## د جدید اُردو فتاوو اَقوال

اوس درته د یو څو جدید اُردو فتاوُو عبارتونه رانقل کوم:

په **کفایت المفتي** کې ذکر دي: د پَردې او حِجاب د حکم دارو مدار په دې باندې دی چې هلته د فِتنې یَره وي، او دا ظاهره خبره ده چې مخ ته په کتلو کې فِتنه ډېره پیدا کیږي نو ځکه فقهاء کرامو د آزادې مسلمانې ښځې د پاره د پَردَو سرو د وړاندې مخ ښکاره کول ناجائز ګرځولی.

د نصوصو (قرآن کریم او احادیثو) نه هم د مخ د پَردې تائید کیږي، او په همدې کې احتیاط او حفاظت هم دی، لهذا زَنانه د پاره بهر ته د وتلو په وخت بُرقع اچول د شریعت او حِکمت موافق ده. (۲)

په **فتاوی حقانیه** کې ذکر دي: د ښځې د پاره بهر ته د وتلو په وخت د سَر نه تر خپو

---

(۱) شرعي پرده لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۱۷

(۲) کفایت المفتي ج ۵ ص ۳۹۲ کتاب الحجاب کشف الباري کتاب الاستئذان ص ۵۰

پورې ټول بدن او مخ پټول ضروري دی. (۱)

په **امداد الفتاوی** کې ذکر دي : د آیتونو ، احادیثو ، او فِقهي روایاتو نه صفا معلومیږي چې د ښځې د پاره ( بهر ته د وتلو په وخت ) د ټول بدن پټول لازمي دي ، البته چې چیرته سخت ضرورت وي یا په زَنانه کې د ډیر بُوډی ئوب په وجه د فِتنې او اِشتهاء احتمال بالکل نه وي نو بیا هلته د مخ او لاسونو ښکاره کول جائز دي. (۲)

په **اَحسنُ الفتاوی** کې ذکر دي : د پَردې په ثبوت کې یو څو اُمور مختصر بیانولې شي:

۱. د ښځې د پاره بغیر ضرورته ( فضول ) په بُرقع کې وتل هم حرام دي.

۲. د اَهم ضرورت د پاره په پَرده کې بهر وتل جائز دي خو شرط دا دی چې بُرقع به ډیره ذَولي ( مُزَیّنه ) نه وي ، خوشبو به نه استعمالوي ، خبرې او د تللو آنداز به یې داسې نه وي چې نور خلق ځانته مُتوجّه کوي ، او د فِتنې احتمال نه وي.

۳ . بې پَردې بهر وتل ، او د پرَدو سرو د وراندې بغیر د سخت ضرورت نه مخ ښکاره کول حرام دي. (۳)

په **فتاوی محمودیه** کې ذکر دي : د ښځو د پاره اصلاً په کور کې د اُوسیدلو حکم دی خو که د څه ضرورت د پاره مجبورًا اُوځي نو مخ او سَر به پټوي ، البته د لارې لیدلو د پاره د یوې سترګې ښکاره کولو ګنجائش شته. (۴)

په فتاوی محمودیه کې دا هم ذکر دي : اګر چې په یو ځای کې د فساد یَره نه وي خو بیا هم د ښځې د پاره د پرَدو سرو د وراندې خپل مخ پټول ضروري دي. البته د سخت ضرورت په بِناء یو څو ځایونه د دینه مُستثنٰی دي. (۵)

په **کشف الباري** کې ذکر دي چې د پرَدې زَنانه مخ ته په کتلو کې اکثره د فِتنې یَره شته

---

(۱) فتاوی حقانیه ج ۲ ص ۴۸۵ عورتوں کی حقوق

(۲) امداد الفتاوی ج ۴ ص ۱۸۱ .

(۳) احسن الفتاوی ج ۹ ص ۲۲۹ .

(۴) فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۷۹ .

(۵) فتاوی محمودیه ج ۵ ص ۱۹۹ ، کشف الباري کتاب الاستیذان ص ۵۰ .

نو ځکه متأخرينو فقهاؤ مطلقًا د عدمِ جواز فتوى ورکړې ده. (۱)

په **فتاوى عثمانيه** کې ذکر دي : په دې کې هيڅ شک نشته چې د ښځو د پاره د ضرورت او دفع حرَج په طور د پرَدو سرو د وړاندې د مخ او لاس ښکاره کولو اجازت شته خو ددې دا مُطلب هرګز ندی چې ګنې دوی ته مطلقًا اجازت دی، بلکه دا ورته هله دی چې کله د فِتنې يَره نه وي او په ځان باندې مطمئِن وي.

خو ددې خبرې نه هيڅ هوښيار کس انکار نه کوي چې ډير احکامات داسې دي چې د هغې تعلق د معاشرې او زمانې تبديلۍ سره وي، لکه دا خبره حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا واضحه کړی، هغه فرمائي :

لَوْ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ لَمَنَعَهُنَّ الْمَسْجِدَ كَمَا مُنِعَتْ نِسَاءُ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ. (۲)

(اګر چې د نبي ﷺ په زمانه کې زَنانهؤ ته په جُمات کې د مونځ کولو اجازت وُ خو). که چيرته رسولُ الله ﷺ د ښځو دا حالت کتلې وی (چې دوی جمات ته د راتلو په وخت خُوشبو استعمالوي، ښائسته کپړې اغوندي او خپل زِينت ښکاره کوي) نو دوی به يې ضرور د جُمات نه داسې منع کړې وی لکه د بني اسرائيلو ښځې چې دجُمات نه منع شوې وی.

لهٰذا زمونږ د موجوده معاشرې په باره کې دا خيال کول " چې په دې کې سرې د پرَدو ښځو مخونو ته د غير شرعي جَذباتو نه بغير ګوري " دا هسې خُوش خِيالي او خَام فِکري ده.

( بلکه ضرور به په غلط نظر او شهوت سره ورته ګوري، لهٰذا دا کتل ورته ناجائز دي، او ښځُو له مخونه پټول ضروري دي).

علامه حصکفي رَحِمَهُ اللهُ ، علامه کاساني رَحِمَهُ اللهُ او نورو حنفي فقهاؤ دا خبره صراحةً ذکر کړی چې : فَحِلُّ النَّظَرِ مُقَيَّدٌ بِعَدَمِ الشَّهْوَةِ وَإِلَّا فَحَرَامٌ.

---

(۱) کشف الباري كتاب الاستئذان ص ۵۰.

(۲) صحيح مسلم كِتَابُ الصَّلَاةِ باب منع نساء بني إسرائيل المسجد رقم الحديث ۱۴۴ (۴۴۵). صحيح البخاري كِتَابُ الأَذَانِ بَابُ خُرُوجِ النِّسَاءِ إِلَى المَسَاجِدِ بِاللَّيْلِ وَالغَلَسِ رقم الحديث ۸۶۹.

د پړدې زَنانه مخ ته د کتلو جواز مقيّد دی په دې سره چې په دې کې د شهوت يَره نه وي ، ځکه که د شهوت يَره وه نو بيا ورته کتل حرام دي . (۱)

(او په دې زمانه کې خو خامخا د فِتنې او شهوت يَره شته نو مطلقًا ورته کتل حرام دي).

حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا خو د خَيرُ القرون د زمانې خبره اوکړه چې که دا نبي عليه السلام ليدلې وی نو منع کړې به يې وی ، حالانکه هلته حياء ډيره وه ، د خلقو اِيمانونه مضبوط وو، اوس څه د پاسه څوارلس سوه کاله پس چې په خلقو کې حياء هم کمه ده . دِينې حالت يې هم کمزورې دی ، نو څنګه به زَنانهؤ ته د پړدو سرو د وراندې د ښکاره مخ ګرځيدلو اجازت وي ؟ . (۲)

فقهاء کرامو صراحةً ذکر کړي چې نن صبا ښځو ته د فِتنې او فساد زياتيدو په وجه جُمات ته تلل منع دي . (۳)

نو چې کله جُمات ته تلل ورته منع دي نو بيا ښکاره مخ په بازار کې ورته چکر وهل څنګه جائز شو ؟

په " آپ کے مسائل اور ان کا حل " کې ذکر دي : د زَنانه د پاره شرعًا د مخ پَرده لازمي ده ، او بيا خاصکر په کومه زمانه کې چې د خلقو نظرونه ناپاک وي نو د دې نظرونو نه د خپل مخ

(۱) پوره عبارت دا سې دی : (فَإِنْ خَافَ الشَّهوَةَ) أَوْ شَكَّ (امْتَنَعَ نَظَرُهُ إِلَى وَجْهِهَا) فَحِلُّ النَّظَرِ مُقَيَّدٌ بِعَدَمِ الشَّهوَةِ وَإِلَّا فَحَرَامٌ وَهٰذَا فِي زَمَانِهِمْ. وَأَمَّا فِي زَمَانِنَا فَمَنَعَ مِنَ الشَّابَّةِ . الدرالمختار كِتَابُ الحَظْرِ وَالإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ ج ٦ ص ٣٧٠ . بدائع الصنائع كتاب الاستحسان ج٦ ص ٤٩٣ ; قاموس الفقه مادة حجاب ١٨٠/٣ فتاوى عثمانيه ج ١٠ ص ٨١ الحجاب

(۲) الثاني. أنّ عائشةَ أمّ المؤمنين وعبدَ الله بن مسعود رضي الله عنهما وناهيك بهما علمًا وفقهًا وبصيرةً في دين الله ونصحًا لعباد الله أخبرا بأنّ رسولَ الله صلى الله عليه وسلّم لو رأى من النساء ما رأياه لَمَنَعَهُنَّ مِن المساجد. وهذا في زمان القرون المفضلة تغيرت الحال عما كان عليه النبي صلى الله عليه وسلم. إلى حد يقتضي منعهن من المساجد. فكيف بزماننا هذا بعد نحو ثلاثة عشر قرنًا وقد اتسع الأمر وقلّ الحياء وضعف الدّين في قلوب كثير من الناس؟ . رسالة الحجاب ج ١ ص ١٩

(۳) وَالْفَتْوَى الْيَوْمَ عَلَى كَرَاهَةِ حُضُورِهِنَّ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا لِظُهُورِ الْفَسَادِ . العناية شرح الهداية ج ١ ص ٣٦٦ . درر الحكام شرح غرر الأحكام ج ١ ص ٨٦ البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج ١ ص ٣٨٠ . تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق ج ١ ص ١٣٩ البناية شرح الهداية ج ٢ ص ٢٨٦

آبرو بچ کول لازمي ده . (۱)

شيخ صالح بن عُثَيمين رَحِمَهُ‌اللهُ فرمايي : اې مسلمانه ! په دې خبره ځان پوهه کړه چې د ښځې د پاره د پردو سړو نه پَرده کول او خپل مخ پټول واجب دي ، ددې په وجوب باندې کتابُ الله ، سنتِ رسول ، او قياس دلالت کوي . (۲)

# عورت پټول ، او حجاب دواړه جدا جدا مسئلې دي

عورت پټول ، او حجاب ( يعنې د پردو سړو نه مخ پټول ) دواړه جدا جدا مسئلې دي ، په يو بل کې يې خلط کول ندي په کار . ددې خبرې تشريح د رته د يو څو کتابونو نه نقل کوم :

په **فتاوى حقانيه** کې ذکر دي چې ډير خلق د بې پَردګۍ ثابتولو د پاره دُهوکه کوي او د قرآن کريم ددې آيت ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾ نه دا ثابتوي چې په ﴿ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾ سره د مخ او لاسونو استثناء شوى لهذا د پردو سړو د وړاندې د ښځې د پاره مخ او لاسونه ښکاره کول جائز دي .

حالانکه د ، ددې خلقو ناپوهي ده ، يا قصدًا د دَجل او تلبيس نه کار اخلي او نورو خلقو ته دُهوکه ورکوي .

ځکه که چيرته ښځې ته ( بلا ضرورت ) د پردو سړو د وړاندې د مخ او لاسونو ښکاره کولو اجازت وى نو بيا ددې آيتونو : ﴿ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَسْئَلُوهُنَّ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ ﴾ او ﴿ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ څه مطلب شو ؟

حالانکه په دې آيتونو کې او نورو ډيرو صحيح احاديثو کې زَنانه ته دا حکم شوى چې د پَردو سړو د وړاندې خپل مخ او لاسونه ښکاره نکړي .

او س د آيتونو په خپل مينځ کې هيڅ تعارض نشته ځکه دواړه قِسمه آيتونه د ځانله ځانله مقصد د پاره دي .

---

(۱) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۵۷ ط ۲۰۰۲ .

(۲) قَالَ الشَّيْخُ صَالِحُ بْنُ عُثَيْمِين رَحِمَهُ‌اللهُ اِعْلَمْ أَيُّهَا الْمُسْلِمُ أَنَّ احْتِجَابَ الْمَرْأَةِ عَنِ الرِّجَالِ الْأَجَانِبِ وَتَغْطِيَةَ وَجْهِهَا أَمْرٌ وَاجِبٌ . دَلَّ عَلَى وُجُوبِهِ كِتَابُ رَبِّكَ تَعَالَى وَسُنَّةُ نَبِيِّكَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الْإِعْتِبَارُ الصَّحِيحُ وَالْقِيَاسُ انْظُرْ مجموعة رسائل في الحجاب والسفور ص ۸۱ ، نضرة النعيم ج ۲ ص ۱۵۲۸ الحجاب

د ﴿ وَلَا يُبۡدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنۡهَا ﴾ تعلق د عورت پټولو سره دی.

او ددې نورو آيتونو تعلق د زَنانه د پَردې سره دی.

عورت پټول ، او زَنانه د پاره د پرَدو سرو د وړاندې مخ او لاسونه ښکاره کول دواړه جدا جدا مسئلې دي ، يو په بل کې خَلط کول دُهوکه ده.

عورت پټول په سړي او ښځه دواړو باندې فرض دي ، خو د سړي عورت د نوم نه تر زَنګون پورې دی ، او د ښځې عورت ټول بدن دی بغير د مخ ، لاسونو او قدمونو نه.

ښځه خپل مخ ، لاسونه او قدمونه د خپلو مَحارمو (يعنی د چا سره يې چې نکاح کيږي ، د دوی) د وړاندې ښکاره کولې شي.

همدا رنګې که دا اَندامونه په مانځه کې ښکاره وي نو هم مونځ کيږي.

که په مانځه کې د سړي د عورت څلورمه حصه ښکاره شوه ، يا د زَنانه د مخ ، لاسونو او قدمونو نه علاوه د نور عورت څلورمه حصه ښکاره شوه نو مونځ يې نه کيږي.

عورت پټول په سړي او ښځه دواړو باندې فرض دي ، که څوک مونځ نه کوي نو بيا هم بِلاضرورت د عورت ښکاره کول منع دي. دا د عورت حکم وُ.

او د حِجاب مسئله جدا ده ، يعنی ښځه به د پرَدو سړو د وړاندې بِلا ضرورت خپل مخ او لاسونه نه ښکاره کوي ، بلکه چې کله د کور نه د څه ضرورت د پاره اُوځي نو مخ ، لاسونه او ټول بدن به په بُرقع يا غټ پړوني باندې پټوي.

دا حِجاب صرف په ښځو باندې لازم دی ، په سړو باندې لازم ندی.

خلاصه دا چې د عورت او حِجاب مسئلې جدا جدا دي ، څوک چې د بې پَردګۍ جواز پيدا کوي نو هغوی خلقو ته دُهوکه ورکوي ، او په دې دواړو مسئلو کې خَلط کوي ، حالانکه د هرې مسئلې ځانله ځانله ځای دی.

نو په ﴿ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنۡهَا ﴾ سره چې کومه اِستثناء شوی دا د عورت متعلق ده ، د حِجاب (پَردې) متعلق نده. (۱)

---

(۱) فتاوی حقانیه ج ۲ ص ۲۸۵ .

**مولانا اشرف علي تهانوي** رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي ، فقهاء کرامو چې مخ ، لاسونه او قدمونه مُستثنٰی کړي نو ددې مطلب دادی چې که دا په مانځه کې ښکاره وي نو مونځ يې کيږي ، ددينه علاوه د ښځې ټول بدن عورت دی که هغه ښکاره شي نو مونځ يې نه کيږي . دا مسئله خو د عورت پټولو په باره کې شوه .

او د غير مَحرَمو سره د وړاندې د پَردې کولو مسئله جدا ده ، د هغې دارو مدار د فِتنې په يَره باندې دی . او دا ښکاره خبره ده چې د ښځې مخ د بدن بهتره حصه ده ، د پرَدو سره د وړاندې ددې په ښکاره کولو کې لويه فِتنه ده ، ددې د وجې فقهاؤ ښځې ته د پرَدو سره د وړاندې د مخ ښکاره کولو اِجازت ندې ورکړی .(۱)

په **فتاوی عثمانيه** کې ذکر دي : د عورت پټول ، او د ښځو د پاره پَرده کول دواړه جدا جدا مسئلې دي .

په عربي کې " عورة " د سړي او ښځې د بدن هغه حصې ته وايي چې د هغې پټول شرعًا ، طبعًا او عقلاً فرض وي . په اُردو او فارسي کې عورت ته " ستَر " وايي .

د آزادې ښځې ټول بدن عورت دی هيڅاته به يې نه ښکاره کوي بغير د مخ ، د لاسونو د وَرغوو ، او قدمونو نه ، چې دا د عورت نه مُستثنٰی دي .

دويمه مسئله د حِجاب (پَردې کولو) ده چې ښځه به د پرَدو سره نه پَرده کوي .

په دې خبره خو د ټولو اتفاق دی چې د زَنانه مَخ ، د لاس وَرغوي ، او قدمونه په عورت کې داخل ندي ، ليکن اختلاف په دې کی دی چې : آيا دا د پَردې نه مُستثنٰی دي او که نه ؟

خو بيا هم د ټولو علماؤ په دې باندې اتفاق دی چې که چيرته د مخ په ښکاره کولو سره د فِتنې يَره وه نو بيا ديته کتل جائز ندي ، او دا ظاهره خبره ده چې د ښځې د ښائست مرکز مخ دی ، داسې خو نشي کيدی چې د پرَدی ښځې مخ ته کتلو سره فِتنه پيدا نشي .

لهذا د ښځې د پاره قصدًا د پرَدو سره د وړاندې خپل مخ ښکاره کول ناجائز دی .

په دې باندې دليل دا آيت دی ، الله تعالى فرمايي : ﴿ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ﴾

ترجمه : دا زَنانه (چې کله د کور نه د څه ضرورت د پاره اُوځي نو دوی) دې خپل لوي

(۱) مجالس حکيم الامت ص ۱۲۶ ، اصلاح خواتين .

ځادرونه په ځان باندې رانښکته کړي.

ابوبکر جصاص رازي رَحِمَهُ اللهُ په " احکام القرآن " کې د دې آيت په باره کې فرمايي:

فِي هٰذِهِ الآيَةِ دَلَالَةٌ عَلَىٰ أَنَّ الْمَرْأَةَ الشَّابَّةَ مَأْمُورَةٌ بِسَتْرِ وَجْهِهَا عَنِ الْأَجْنَبِيِّينَ . (۱)

په دې آيت کې په دې خبره باندې دلالت دی چې ځوانه ښځه د پردو سړو نه د مخ په پټولو باندې ماموره ده. (يعنی په دې آيت کې ځوانې ښځې ته دا حکم شوی چې د پردو سړو نه خپل مخ پټ کړي) . (۲)

په **تفسير معارف القرآن** کې ذکر دي: عورت پټول او د زَنانهٔ د حِجاب مسئلې جدا جدا دي. د سړو او ښځو د بدن هغه اَندامونه چې د هغې پټول د نورو نه شرعًا، طبعًا او عقلاً فرض دي ديته په عربی کې " عَوْرَة " وايي، په اُردو او فارسي کې ورته سَتَر وايي.

د اِيمان نه پس د ټولو نه اول فرض د " عورت پټول " دي، د کله نه چې انسان پيدا شوی د هغې وخت نه را په ديخوا د ټولو پيغمبرانو په شريعتونو کې د دې پټول فرض وو.

په نارينه او زَنانه دواړو باندې په هر حالت کې د دې پټول فرض دي، تر دې چې که څوک ليدونکې نه وي خو بيا هم د دې پټول فرض دي.

مثلا يو کس سره کپړې شته خو دا بيا هم د شپې په تياره کې په بَربنده باندې مونځ کوي او عورت يې ښکاره وي نو په اتفاق سره د ده مونځ نه کيږي.

يا د مونځ په دَوران کې د چا عورت ښکاره شي نو اګر چې ده ته بل چا نه وي کتلي خو بيا هم د ده مونځ مات شو.

همدارنګې که څوک مونځ نه کوي خو بيا هم په ده باندې د عورت پټول فرض دي. تر دې چې که يو کس داسې په ځانله ځای کې موجود وي چې هلته بل هيڅوک نه وي نو بيا هم د شرعي او طبعي عُذر نه بغير عورت ښکاره کول ناجائز دی. دا د عورت پټولو حُکم شو.

دويمه مسئله د حِجاب (پَردې) ده چې زَنانه به د پردو سړو نه پَرده کوي، اګر چې د مخکې نه هم پيغمبرانو او نورو نېکانو خلقو د پردو سړو او پردو ښځو په خپل مينځ کې

(۱) احکام القرآن لاحمد بن علي ابو بکر الرازي الجصاص الحنفي ج ۳ ص ۴۸۶ طبع دار الکتب العلمية بيروت لبنان

(۲) فتاوی عثمانيه ج ۱ ص ۸۷

بې بَاکه گډون نه خوښول خو دا خاص قِسمه شرعي پَرده په دريم کال يا پنځم کال د هجرت باندې فرض کړې شوې .

بهر حال ، عورت پټول او د زَنانه وُ حِجاب دواړه جدا جدا مسئلې دي .

مفتي شفيع رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې دا تفصيل مونږ ځکه ذکر کړو چې ددې دواړو مسئلو په يو ځای کولو سره بيا خلقو ته د قرآن کريم په احکاماتو کې ډيرې شُبهې راپيدا کيږي .

د ښځې مخ او لاسونه په نص د قرآن سره په عورت کې داخل ندي، قدمونه ورباندې فقهاء کرامو قياس کړي دي ، که دا په مانځه کې ښکاره وي نو مونځ يې کيږي ، خو په پَرده کولو کې به د غير مَحرَمو سرو د وړاندې دا هم نه ښکاره کوي . (١)

علماؤ ليکلي : ائمه اربعه وُ چې د زَنانه وُ د مخ او لاسونو متعلق کوم مسائل ذکر کړي د هغې تعلق د عباداتو او معاملاتو سره دی ، لکه : مونځ ، حج ، اخيستل خرڅول ، وغيره چې په دې کې يې د ضرورت په وخت د مخ او لاسونو اِستثناء کړی .

او هر چې د زَنانه وُ د حجاب مسئله ده نو دا خو د څلورو واړو ائمه وُ په نزد ظاهره ده چې زَنانه به بِلا ضرورت د پرَدو سړو د وړاندې خپل مخ نه ښکاره کوي ، او سړي به هم بِلاضرورت پرَدو ښځو ته نه ګوري ، دا خبره مفسّرينو هم کړی . (٢)

---

(١) معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله سورة الاحزاب في تشريح آية ٥٣

(٢) كلام الأئمة الأربعة في كشف المرأة لوجهها : لم يتكلم مالك و أبو حنيفة والشافعي رحمهم الله في مسألة كشف المرأة لوجهها لذاته . ولايعرف هذا في كتبهم ولا في مسائل أصحابهم المقرّبين منهم . وإنما يتكلمون في مسألة وجه المرأة وكفيها عند تعلقها بمسألة أخرى من العبادات او المعاملات : كالصلاة والحج والعقود والخصبة . وذلك لأنّ المسألة عندهم ظاهرة في أن الاصل في النساء الحرائر الستر والعفاف وتغطية الوجه . وكان كلامهم كله في الأبواب المستثناة من هذا الأصل المستقر . قال الامام محمد بن علي الموزعي الشافعي في تفسيره " والسلف كمالك والشافعي وأبي حنيفة وغيرهم لم يتكلموا إلا في عورة الصلاة " ثم قال : " وما علمت أحدا منهم يبيح للشابة أن تكشف وجهها لغير حاجة . ولايبيح للشاب أن ينظر إليها لغير حاجة " .

ولو كان الأصل في النساء السفور لكان بحث المسألة عندهم استقلالا آكد ، و أوجب من بحثها تبعا . فهم لم يبحثوها إلا عند الحاجة لضدّ الأصل و خلافه . وهو الكشف في الصلاة . والنقاب في الحج . والمعاملات والخصومات والعقود و شبهها لأنها في هذه الأبواب تنتقل المرأة عن الأصل فاحتاج للتأكيد . الحجاب في الشرع والفطرة ج ١ ص ١٣٢ ، تيسير البيان لاحكام القرآن ج ٢ ص ١٠٠١

په **تفسير بيضاوي** کښې هم ذکر دي چې په " إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا " سره چې د مخ او لاسونو کومه اِستثناء شوی " چې دا په عورت کښې داخل ندي" نو ظاهره داده چې دا د مانځه په باره کښې عورت ندي ( يعنى که په مانځه کښې د زَنانه مخ او لاسونه ښکاره شي نو مونځ يې نه ماتيږي ) ، د پرَدو سړو په حق کښې د اَصيلې ښځې ټول بدن عورت دی ، د خپل خاوند او خپلو مَحارمو نه علاوه بل هيچا ته اِجازت نشته چې بِلا ضرورت د ښځې مخ ته اوګوري . (۱)

علامه ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ په خپله فتاوى کښې دا خبره ليکلی : تحقيق دادی چې د ښځې مخ او لاسونه په مانځه کښې عورت ندي خو د پرَدو سړو په حق کښې عورت دي ، هغوی ته جائز ندي چې بِلاضرورت دې مخ ته اوګوري . (۲)

په " **الحجاب في الشرع والفطرة** " کتاب کښې ذکر دي : د مانځه عورت او پَردې په عورت کښې فرق دی : د سړي عورت د نوم نه تر زَنګون پورې دی ، او د زَنانه عورت د مخ ، لاسونو او قدمونو نه علاوه نور ټول بدن دی .

ډير خلق غلطي دا کوي چې فقهاء کرامو د ښځې د پاره په مانځه کښې د عورت پټولو کومه مسئله ذکر کړی چې : اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ إِلَّا وَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا . ښځه ټوله عورت دی مګر مخ او د لاسونو وَرغوي يې عورت ندي .

---

(۱) ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ ﴾ كالحليّ والثياب والأصباغ فضلًا عن مواضعها لمن لا يحل أن تبدى له. ﴿ إِلَّا مَا ظَهَرَ ﴾ مِنْهَا عند مزاولة الأشياء كالثياب والخاتم فإن في سترها حرجًا. وقيل المراد بالزينة مواضعها على حذف المضاف أو ما يعم المحاسن الخلقية والتزيينية، والمستثنى هو الوجه والكفان لأنها ليست بعورة . والأظهر أنّ هٰذا في الصّلاة لا في النظر ، فإنّ كلّ بدن الحرة عورة لا يحل لغير الزوج والمحرم النظر إلى شيء منها إلّا لضرورة كالمعالجة وتَحَمُّلِ الشهادة . تفسير البيضاوي ج ۴ ص ۱۰۴ سورة النور آية ۳۱ .

(۲) اِخْتَلَفَتْ عِبَارَةُ أَصْحَابِنَا فِي وَجْهِ الْحُرَّةِ فِي الصَّلَاةِ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ : لَيْسَ بِعَوْرَةٍ . وَقَالَ بَعْضُهُمْ : عَوْرَةٌ ، وَإِنَّمَا رُخِّصَ فِي كَشْفِهِ فِي الصَّلَاةِ لِلْحَاجَةِ . وَالتَّحْقِيقُ : أَنَّهُ لَيْسَ بِعَوْرَةٍ فِي الصَّلَاةِ ، وَهُوَ عَوْرَةٌ فِي بَابِ النَّظَرِ إِذْ لَمْ يَجُزْ النَّظَرُ إِلَيْهِ . الفتاوى الكبرى لابن تيمية ج ۵ ص ۳۲۲ كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ سَتْرِ الْعَوْرَةِ .

دوی دا مسئله د ښځې د پاره د مخ ښکاره کولو په جواز کې هم بيانوي ، او دا وايي چې د ښځې مخ او لاسونه عورت ندي (نو ښکاره کول يې جائز دي) .

حالانکه دا د دوی غلطي ده ، د مانځه عورت ځانله دی ، او د پَردې عورت ځانله دی ، د دواړو په احکاماتو کې غټ فرق دی ، دواړه مسئلې په يو بل کې خلط کول ندي په کار .

تر دې چې يوه زَنانه په کور کې په مانځه ولاړه وي او د مخ ، لاسونو او قدمونو نه علاوه نور عورت لکه ويښتان يې ښکاره شي نو مونځ يې ماتيږي اگرچې په دې کور کې د دې د خاوند نه علاوه بل هيڅوک نه وي .

دا ښځه به دا نه وايي چې : زه خو صرف خاوند ليدلې يم بل چا نه يم ليدلی ، نو زما مونځ ولې مات شو ؟ دا ځکه چې د مانځه عورت ځانله دی (ددې په ښکاره کولو سره مونځ ماتيږي) .

علماؤ دا هم ليکلي دي چې داسې ماشومه جينۍ چې هغه تمييز کولې شي په خپل کور کې مونځ کوي نو ددې د پاره هم د مخ ، لاسونو او قدمونو نه علاوه د نور بدن پټول فرض دي ، حالانکه که دا ماشومه بهر ته اُوځي نو پرَدي سړي ددې مخ ته کتلې شي (ځکه چې دا ماشومه ده) .

بلکه د څلورو واړو مذاهبو فقهاؤ دا مسئله صراحةً ذکر کړی چې که يوه زَنانه په داسې ځای کې په مانځه ولاړه وي چې هلته پرَدي خلق موجود وي نو دا به مخ پټوي ، (اگرچې په مانځه کې مخ پټول فرض ندي خو د پرَدو سړو نه يې پټول لازمي دي) .

پس معلومه شوه چې د مانځه عورت جدا دی ، او د پَردې عورت جدا دی .

دير خلق په دې کې خطاء کيږي ، فقهاء کرامو چې د زَنانه د پاره په مانځه کې مخ ، لاسونه او قدمونه په عورت کې ندي شمار کړي نو دا خلق د زَنانه مخ ته کتلو په جواز کې هم د فقهاؤ همدا خبره پيش کوي ، او دا وايي :

چې کله د ښځې مخ او لاسونه عورت ندی نو بيا ورته کتل هم جائز دي .

حالانکه دا غلطي کوي ، ځکه د زَنانه مخ او لاسونه صرف د مانځه په باره کې عورت ندی ، د پرَدو سړو په حق کې دا عورت دی ، دا به نه ښکاره کوي . (۱)

---

(۱) الحجاب في الشرع والفطرة ج ۱ ص ۶۳ ، و ص ۱۲۷ .

بعضې علماء وايي : عبدالله بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا چې د " إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا " تشريح په مخ او لاس سره کړې نو دا د پَردې حکم نازليدو نه مخکې خبره وه ، بيا کله چې د پَردې حکم نازل شو نو الله تعالى په ښځه باندې د پرَدو سرو د ورانديې د ټول بدن پَرده واجب کړه .

دغه وجه ده چې ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم فرمائلي :

چې کله زَنانه ( د څه ضرورت په بِناء ) د کور نه بهر اُوځي نو په غټ پړوني به خپل مخ او ټول بدن پټوي ، صرف د لارې کتلو د پاره به يوه سترګه ښکاره کوي . (۱)

همداسې خبره علامه ابن تيميه رَحِمَهُ اللَّهُ هم کړې . (۲)

## د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ د قول نه غلط مطلب اخيستل ندي په کار

بعضې خلق د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ په هغه قول باندې دُهوکه شي چې هغوی د ښځې مخ او لاسونو ته د کتلو اجازت ورکړی .

حالانکه د احنافو مشهورو لويو علماؤ د هغې مطلب دا بيان کړی چې د ضرورت په وخت ديته کتل جائز دي ، او بغير د ضرورت نه د ښځې د پاره د ټول بدن پَرده اصل ده ، پرَدو سړو د پاره ديته د کتلو اجازت نشته .

---

(۱) وقال الإمام عبد العزيز ابن باز رحمه الله : قال سبحانه: ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾ . قال ابن مسعود رَضِيَ الله عنه : مَا (ظَهَرَ مِنْهَا) يعني بذلك: ما ظهر من اللباس ؛ فإنّ ذلك مَعفوٌّ عنه. ومراده بذلك رضي الله عنه : الملابس التي ليس فيها تبرج وفتنة.

وأما ما يُروَى عن ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أنه فسّر {مَا ظَهَرَ مِنْهَا } بالوجه والكفين. فهو محمولٌ على حالة النساء قبل نزول آية الحجاب. وأما بعد ذلك فقد أوجبَ اللهُ عليهنّ ستر الجميع. ويدلّ على أنّ ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أراد ذلك: ما رواه علي بن أبي طلحة عنه أنه قال: أَمَرَ اللهُ نِسَاءَ الْمُؤْمِنِينَ إِذَا خَرَجْنَ مِنْ بُيُوتِهِنَّ فِي حَاجَةٍ أَنْ يُغَطِّينَ وُجُوهَهُنَّ مِنْ فَوْقِ رُؤُوسِهِنَّ بِالْجَلَابِيبِ وَيُبْدِينَ عَيْنًا وَاحِدَةً . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۹۲ .

(۲) فَإِذَا كُنَّ مَأْمُورَاتٍ بِالْجِلْبَابِ لِئَلَّا يُعْرَفْنَ وَهُوَ سَتْرُ الْوَجْهِ أَوْ سَتْرُ الْوَجْهِ بِالنِّقَابِ: كَانَ الْوَجْهُ وَالْيَدَانِ مِنَ الزِّينَةِ الَّتِي أُمِرَتْ أَلَّا تُظْهِرَهَا لِلْأَجَانِبِ فَمَا بَقِيَ يَحِلُّ لِلْأَجَانِبِ النَّظَرُ إِلَّا إِلَى الثِّيَابِ الظَّاهِرَةِ فَابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ذَكَرَ آخِرَ الْأَمْرَيْنِ وَابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ذَكَرَ أَوَّلَ الْأَمْرَيْنِ . مجموع الفتاوى لابن تيميه ج ۲۲ ص ۱۱۱ .

بيا خاصکر د ځواني ښځې د پاره خو د مخ او ټول بدن پټول لازمي دي ځکه ددې په ښکاره کولو کې فتنه ده .

ددې خبرې وضاحت امام سرخسي ، ابوبکر جصاص ، او علامه ابن عابدين رحمهم الله کړی . (۱)

(۱) قال عبدالعزيز الطريفي رَحِمَهُ اَللَّهُ : وأمّا أبو حنيفة رَحِمَهُ اَللَّهُ فهو كمالک رَحِمَهُ اَللَّهُ في هذا الباب . يفرّق بين عورة الستر وعورة النظر . فلا يوجب ستر الوجه والكفين لأنّهما عورة . وإنما يوجب سترهما عند نظر الرّجال الذين يستر عن مثلهم . وقد رأيتُ من يحتجّ بقول لأبي حنيفة رَحِمَهُ اَللَّهُ في سياق أحكام النّظر . نقله محمد بن الحسن الشيباني رَحِمَهُ اَللَّهُ كما في المبسوط . حيث قال :

" وَلَا بَأس بِأَن ينظر إِلى وَجههَا وَإِلى كفها وَلَا ينظر إِلى شَيْءٍ غير ذَلِك مِنهَا وَهٰذَا قَول أبي حنيفَة رَحِمَهُ اَللَّهُ . المبسوط لمحمد بن الحسن الشيباني ج ۳ ص ۵۷ كتاب الإستحسان "

ولما اختلّ لدى النّاقل لمثل هذا الكلام الأصل . و هو عدم التّفريق بين العورتين والسّياقين . نسبوا الى مذهب أبي حنيفة رَحِمَهُ اَللَّهُ ما لايريده . وأعلام الحنفية يعلمون مرادَه و يدركون التّفريق . و يبينون أنّ الأصل التغطية . و أنّ إباحة النظر في أحوال للرجل لا تناقض أصل السّتر من المرأة . فخطاب المرأة غير خطاب الرجل . قال السرخسي رَحِمَهُ اَللَّهُ :

" إِنَّ الْمَرْأَةَ مِنْ قَرْنِهَا إِلَى قَدَمِهَا عَوْرَةٌ هُوَ الْقِيَاسُ الظَّاهِرُ وَإِلَيْهِ أَشَارَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ مَسْتُوْرَةٌ» ثُمَّ أُبِيحَ النَّظَرُ إِلَى بَعْضِ الْمَوَاضِعِ مِنْهَا لِلْحَاجَةِ وَالضَّرُورَةِ . فَكَانَ ذٰلِكَ اسْتِحْسَانًا لِكَوْنِهِ أَرْفَقَ بِالنَّاسِ . المبسوط للسرخسي ج ۱۰ ص ۱۴۵ كِتَابُ الإستِحسَانِ "

و هو هنا يريد عورة النظر . ولذا لاتجد من يبيح من الحنفيّة المحققين للمرأة كشف وجهها إلّا في سياق الحاجة الى النظر اليها في العقود والحقوق . ويفرّقون بين أصل النظر وبين الحاجة إليه . ويفرقون بين عورة السّتر و عورة النّظر . قال الطحطاوي رَحِمَهُ اَللَّهُ في حاشيته :

" قوله : "وجميع بدن الحرة" أي جسدها . قوله: " إلّا وجهها" ومنع الشّابة من كشفه لخوف الفتنة لا لأنّه عورة . حاشية الطحطاوي على مراقي الفلاح ج ۱ ص ۲۴۱ كتاب الصلاة فصل في متعلقات الشروط وفروعها "

وهذا مايقرّره علماء الحنفية ومحققوها : كالجصاص رَحِمَهُ اَللَّهُ . وابن عابدين رَحِمَهُ اَللَّهُ وغيرهما . الحجاب في الشرع والفطرة لمولانا عبدالعزيز الطريفي رَحِمَهُ اَللَّهُ ج ۱ ص ۱۴۸ .

# هغه صورتونه چې په هغې کې ښځې ته د پَردو سرو د وړاندې د مخ ښکاره کولو، او د سړو د پاره هغې ته د کتلو اجازت شته

اګر چې شريعت ښځې ته د پَردو سړو د وړاندې بِلاضرورت خپل مخ ښکاره کول حرام ګرځولي، او سړي د پاره بِلاضرورت د پَردۍ ښځې مخ ته کتل هم حرام دي.

ځکه د زَنانه په مخ ښکاره کولو، او سړو د پاره ديته کتلو کې د فِتنې يره ده، نو شريعت د فِتنې دا دَروازه مکمل بنده کړې ده.

خو بيا هم په ځنې ځايونو کې سخت ضرورت راپيښ شي، نو شريعت د ضرورت په خاطر په دغه ځايونو کې زَنانه ته د مخ ښکاره کولو اجازت ورکړی.

همدارنګې سړي ته هم د سخت ضرورت په وخت په ځنې ځايونو کې د پَردۍ ښځې مخ ته د کتلو اجازت شته. هغه ځايونه دا دي:

## اول: چې د سړي د کومې ښځې سره د نکاح اِراده وي هغې ته کتل جائز دي:

که يو کس د يوې ښځې سره د نکاح کولو اِراده لري نو ده د پاره د هغې مخ ته کتل جائز دي، په احاديثو کې ددې اجازت شته. (۱)

۱. رسولُ الله ﷺ فرمايي:

إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمْ اِمْرَأَةً فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهَا إِذَا كَانَ إِنَّمَا يَنْظُرُ إِلَيْهَا لِخِطْبَةٍ وَإِنْ كَانَتْ لَا تَعْلَمُ. (۲)

---

(۱) ما هي الحالات التي يرخص فيها بالسفور أمام الأجنبي ؟ نظرًا لأن الشرع الحنيف إنما حرم السفور سدًا الذريعة الفتنة. ونظرًا للقاعدة الفقهية التي تنص على أن: ما مُنعَ سدًا للذريعة أُبيحَ لِلمصلحة الراجحة. فقد رفع الله الحرج عن المرأة حيث احتاجتْ إلى كشف وجهها. وكذا عن الرّجل إذا طرأت حاجة إلى النظر إليه. فَمِن هذه الحالات: أولا: عند الخِطبة. عودة الحجاب ج ۳ ص ۴۷۶.

(۲) مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۳۶۰۲، و رقم الحديث ۲۳۶۰۳، المعجم الاوسط رقم الحديث ۹۱۱، مجمع الزوائد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ إِلَى مَنْ يُرِيدُ تَزْوِيجَهَ رقم الحديث ۷۴۵۵ وقال الهيثمي: رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالطَّبَرَانِيُّ فِي الْأَوْسَطِ وَالْكَبِيرِ. وَرِجَالُ أَحْمَدَ رِجَالُ الصَّحِيحِ. شرح معاني الآثار رقم الحديث ۴۲۷۹۰.

کله چې په تاسو کې څوک يوې ښځې ته د نکاح پيغام ورليږي نو په ده باندې څه ګناه نشته چې هغې ته اوګوري خو شرط دادی چې دا هغې ته د نکاح کولو په غرض ګوري اګر چې هغه پوهه نه وي . ( خو دلذت حاصلولو په غرض به نه ورګوري )

۲ . حضرت جابر ﷺ د نبي عليه السلام دا حديث نقل کوي :

إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمُ الْمَرْأَةَ فَإِنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَا يَدْعُوهُ إِلَى نِكَاحِهَا فَلْيَفْعَلْ .

کله چې په تاسو کې يو کس يوې ښځې ته د نکاح پيغام ورليږي ( يعنی د هغې سره د نکاح کولو اراده لري ) نو که دده طاقت وي چې د هغې هغه ځای ( مخ او لاسونو ) ته اوګوري چې ده ته پرې د هغې سره د نکاح کولو رغبت پيدا کيږي نو دا کار دې اوکړي ( يعنی هغې ته دې اوګوري ) .... (۱)

۳ . حضرت مغيره بن شعبه ﷺ فرمايي چې زه نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته راغلم او دوی ته مې د يوې ښځې تذکره اوکړه چې زه د هغې سره نکاح کول غواړم ، دوی راته اوفرمايل : اِذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَجْدَرُ أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا . (۲)

---

(۱) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا . قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمُ الْمَرْأَةَ فَإِنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَا يَدْعُوهُ إِلَى نِكَاحِهَا فَلْيَفْعَلْ » . قَالَ: فَخَطَبْتُ جَارِيَةً فَكُنْتُ أَتَخَبَّأُ لَهَا حَتَّى رَأَيْتُ مِنْهَا مَا دَعَانِي إِلَى نِكَاحِهَا وَتَزَوُّجِهَا فَتَزَوَّجْتُهَا . سنن ابي داؤد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَنْظُرُ إِلَى الْمَرْأَةِ وَهُوَ يُرِيدُ تَزْوِيجَهَا رقم الحديث ۲۰۸۲ قال الالباني : حسن . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۴۵۸۶ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۱۷۳۸۹ .

(۲) عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ ﷺ ، قَالَ : أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ لَهُ امْرَأَةً أَخْطُبُهَا، فَقَالَ : «اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَجْدَرُ أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا » . فَأَتَيْتُ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ، فَخَطَبْتُهَا إِلَى أَبَوَيْهَا، وَأَخْبَرْتُهُمَا بِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَأَنَّهُمَا كَرِهَا ذٰلِكَ، قَالَ: فَسَمِعَتْ ذٰلِكَ الْمَرْأَةُ ، وَهِيَ فِي خِدْرِهَا، فَقَالَتْ: إِنْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَكَ أَنْ تَنْظُرَ، فَانْظُرْ، وَإِلَّا فَأَنْشُدُكَ . كَأَنَّهَا أَعْظَمَتْ ذٰلِكَ. قَالَ: فَنَظَرْتُ إِلَيْهَا فَتَزَوَّجْتُهَا . فَذَكَرَ مِنْ مُوَافَقَتِهَا . سنن ابن ماجة كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ إِلَى الْمَرْأَةِ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا رقم الحديث ۱۸۶۶ قال الالباني: صحيح . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۸۱۳۷ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۵۲ ، سنن سعيد بن منصور رقم الحديث ۵۱۶ ، سنن الترمذي أَبْوَابُ النِّكَاحِ بَابُ مَا جَاءَ فِي النَّظَرِ إِلَى الْمَخْطُوبَةِ رقم الحديث ۱۰۸۷ ، سنن النسائي رقم الحديث ۳۲۳۵ .

ته لاړ شه، هغه او ګوره ځکه دا ډيره ښه ده چې ستاسو په مينځ کې محبت دائمي پاتې شي.

**فائده** : ددې احاديثو نه معلومه شوه چې د سړي د کومې ښځې سره د نکاح کولو اراده وي نو د هغې مخ ته کتل جائز دي.

خو که پخپله يې نه شوه کتلی نو بيا به يوه اِعتباري ښځه وَرأوليږي چې هغه يې اُوګوري، او ده ته د هغې صحيح حالت بيان کړي. (۱)

## دويم : د علاج په وخت

چې کله ښځه بيماره شي او زَنانه ډاکټره نه وي نو بيا دا جائز دي چې اَمانت دار مُعتَمَد نارينه ډاکټر ددې علاج اوکړي.

اوس که د علاج په وخت د زَنانه مخ ښکاره شي، يا ډاکټر ديته اوګوري نو دا جائز ده، خو شرط دادی چې دا ښځه به ددې ډاکټر سره نه ځانله کيږي بلکه ددې سره به بل کس خامخا وي، او دا ډاکټر به هم ددې ښځې صرف هغه ځايونو ته ګوري کوموته چې د علاج په وخت د کتلو ضرورت وي. (۲)

په احاديثو کې هم د علاج په وخت حتّی الوَسع د پَردې اِهتمام راغلی:

د مسلم شريف او ابوداؤد شريف حديث دی:

---

(۱) وَلِلْعُلَمَاءِ خِلَافٌ فِيْ جَوَازِ النَّظَرِ إِلَى الْمَرْأَةِ الَّتِيْ يُرِيْدُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا . فَجَوَّزَهُ الْأَوْزَاعِيُّ وَالثَّوْرِيُّ وَأَبُوْ حَنِيْفَةَ وَالشَّافِعِيُّ وَأَحْمَدُ وَإِسْحَاقُ رَحِمَهُمُ اللهُ مُطْلَقًا . أَذِنَتِ الْمَرْأَةُ أَمْ لَمْ تَأْذَنْ . لِحَدِيْثَيْ جَابِرٍ وَالْمُغِيْرَةِ الْمَذْكُوْرَيْنِ فِيْ أَوَّلِ الْحِسَانِ. وَ جَوَّزَهُ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ بِإِذْنِهَا .... وَإِذَا لَمْ يُمْكِنْهُ النَّظَرُ إِسْتَحَبَّ أَنْ يَبْعَثَ امْرَأَةً تَصِفُهَا لَهُ.
مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۰ في تشريح حديث ۳۰۹۸ كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ

(۲) ثانياً: عند التداوي إذا فقدت طبيبة تداويها، بشرط عدم الخلوة، وقصر النظر على موضع الحاجة، وتحري الطبيب العدل الثقة. عودة الحجاب ج ۳ ص ۴۷۶.

وَإِذَا كَانَ بِعَوْرَةِ الْمَرْأَةِ دَاءٌ. فَلَا بَأْسَ لِلطبيب الأمين أَن ينظر إِلَيْهَا كَمَا ينظر الْخَتَّان إِلَى الفرج عِنْد الخِتَان. قَالَ الحسنُ، وَالشَّعْبِيّ فِي الْمَرْأَةِ بِهَا الجرح وَنَحْوه يُخرق الثَّوب على الجرح. ثُمَّ ينظر إِلَيْهِ. يَعْنِي الطَّبِيب. شرح السنة للبغوي ج ۹ ص ۲۴ كتاب النِّكَاح بَاب النَّهْيِ عَنْ مُبَاشَرَةِ الْمَرْأَةِ الْمَرْأَةَ لِتَنْعَتَهَا لِزَوْجِهَا في تشريح حديث ۲۲۵۱.

حضرت جابر رضی الله عنه فرمايي چې اُمّ المؤمنين " اُمّ سلمة رضی الله عنها " د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه د ښکر لږولو (يعني وينه ويستلو) اجازت اُوغوښت:

فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَا طَيْبَةَ أَنْ يَحْجُمَهَا .

نبي عليه السلام ابوطيبة ته حکم اوکړو چې ديته ښکر اُولږوي .

حضرت جابر رضی الله عنه فرمايي (پيغمبر عليه السلام ځکه ابوطيبة ته حکم اوکړو چې :)

كَانَ أَخَاهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ ، أَوْ غُلَامًا لَمْ يَحْتَلِمْ .

ابوطيبة د اُمّ سلمة رضی الله عنها رضاعي ورور وُ ، يا نابالغ هلک وُ . (۱)

**فائده** : ددې حديث نه معلومه شوه چې د علاج په وخت هم د پَردي لحاظ ساتل په کار دي ، ځکه که بغير ضرورته د هر ډاکټر د وړاندې د بدن ښکاره کول جائز وی نو بيا ولې حضرت جابر رضی الله عنه فرمايل چې :

" ابوطيبة د اُمّ سلمة رضی الله عنها رضاعي ورور يا نابالغه هلک وُ ". (۲)

البته د ضرورت په وخت د پَردي ډاکټر نه هم علاج صحيح دی ، يا ډاکټر ته هم د پَردی زَنانه بدن ته د کتلو اجازت شته . (۳)

## ډاکټر به صرف د ضرورت ځايونو ته گوري

خو دا قاعده ياد ساتئ چې څومره ځای ته د ډاکټر د کتلو ضرورت وي صرف هماغه

---

(۱) عَنْ جَابِرٍ رضی الله عنه . أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اِسْتَأْذَنَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحِجَامَةِ « فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَا طَيْبَةَ أَنْ يَحْجُمَهَا » قَالَ : حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ : كَانَ أَخَاهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ ، أَوْ غُلَامًا لَمْ يَحْتَلِمْ . صحيح مسلم كتاب السَّلَامِ بَابُ لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءٌ وَاسْتِحْبَابِ التَّدَاوِي رقم الحديث ۷۲ (۲۲۰۶) ، سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي الْعَبْدِ يَنْظُرُ إِلَى شَعْرِ مَوْلَاتِهِ رقم الحديث ۴۱۰۵ ، مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاحِ بَاب النظر إلى المخطوبة وبيان العورات الفصل الأول رقم الحديث ۳۱۰۳(۶) .

(۲) شرگړه لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۵۰ .

(۳) قَدْ صَرَّحَ عُلَمَاؤُنَا بِأَنَّ غَيْرَ الْمَحْرَمِ أَيْضًا عِنْدَ الضَّرُورَةِ يَحْجُمُ وَيَفْصِدُ وَيَخْتِنُ . وَقَالَ الطِّيبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : يَجُوزُ لِلْأَجْنَبِيِّ النَّظَرُ إِلَى جَمِيعِ بَدَنِهَا لِلضَّرُورَةِ وَلِلْمُعَالَجَةِ . مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۲ كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النظر في شرح حديث ۳۱۰۳

ځای ته به ګوري، نورو ځايونو ته به نه ګوري.

مثلاً که د زَنانه په لاس باندې زخم وي نو ډاکټر ته د لاس کتلو اجازت شته خو د مخ يا نور بدن د کتلو اجازت ورته نشته.

يا مثلا د زَنانه په خېټه يا مَلا باندې زخم وي او ډاکټر ته ددې د ښکاره کولو ضرورت وي نو ددې طريقه داده چې زَنانه به زړې کپړې واغوندي په هغې کې به دا د زخم ځای اُوشلوي او ډاکټر به يې اُوګوري، د غوندې خېټې يا غوندې ملا ښکاره کولو ضرورت نشته. (۱)

همدارنګې که ډاکټر د څه ضرورت په وجه د زَنانه د بدن څه حصې ته ګوري نو په دغه ځای کې ولاړ نور پرَدي خلق به ديته نه ګوري.

همدغه شان مسئله د سرې د پاره د نوم نه تر زَنګون پورې هم ده، چې دا د سړي عورت دی، که په دې کې کوم ځای ته د ډاکټر د کتلو ضرورت پيدا شي نو صرف هماغه مخصوص ځای به ګوري، نورو ځايونو ته د کتلو اجازت نشته. (۲)

په **فتاوی محموديه** کې ذکر دي:

که د ښځې په داسې ځای کې تکليف يا زخم پيدا شي چې د هغې پټول په دې باندې فرض وي، او ډاکټر ته د ښکاره کولو نه بغير ددې علاج نشي کيدی نو بيا د ضرورت په وخت صرف همدا حصه ډاکټر ته ښکاره کول جائز ده، ددينه زياته به پرَدي ډاکټر ته نه ښکاره کوي.

بهتر داده چې دا ډاکټر يوې ښځې ته د علاج طريقه اُوښائي او هغه بيا به ددې مريضې ښځې علاج اوکړي، خو که دا سخته وه نو بيا د ډاکټر د وړاندې همدا د مرض واله ځای ښکاره کول جائز دي.

ليکن بِلا ضرورت د ښځې ټول بدن د ډاکټر په تصرّف کې ورکول، يا ډاکټر ته د مرض د

(۱) قَالَ الحسنُ، وَالشَّعْبِيّ فِي المَرْأَة بِهَا الجرْح وَنَحْوه يُخرق الثَّوب على الجرْح، ثُمَّ ينظر إِلَيْهِ، يَعْنِي الطَّبِيب. شرح السنّة للبغوي ج ۹ ص ۲۲ كتاب النِّكَاح بَاب النَّهْي عَنْ مُبَاشَرَةِ المَرْأَةِ المَرْأَةَ... في تشريح حديث ۲۲۵۱.

(۲) شرعي پرده لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۵۰.

ځای نه علاوه نورو ځایونو ته کتل ناجائز دي. (۱)

همدا سې مسئله په " آپ کے مسائل اور اُن کا حل " کې هم ذکر ده. (۲)

# په هسپتال کې د مجبوریت په وجه د ماشوم پیدا کیدو په وخت بې پَردګي

په **فتاوی محمودیه** کې ذکر دي: که د یوې زَنانه ماشوم په کور کې پیدا کیدل مشکل وي، خو په هسپتال کې د ښځو د پَردې څه انتظام نه وي، نو بیا د مجبوریت په وجه که په هسپتال کې د ماشوم پیدا کیدو په وخت بې پَردګي راشي نو دا خبر دی، دا د انسان په اختیار کې نده، الله تعالی د بندګانو مجبوریت پیژني. (۳)

---

(۱) ( وَيَنْظُرُ الطَّبِيبُ إِلَى مَوْضِعِ مَرَضِهَا ). كنز الدقائق. وَفِي نَظَرِ الطَّبِيبِ إِلَى مَوْضِعِ الْمَرَضِ ضَرُورَةٌ فَيُرَخَّصُ لَهُمْ إِحْيَاءً لِحُقُوقِ النَّاسِ وَدَفْعًا لِحَاجَتِهِمْ فَصَارَ كَنَظَرِ الْخَتَّانِ وَالْخَافِضَةِ. وَكَذَا يَنْظُرُ إِلَى مَوْضِعِ الْإِحْتِقَانِ لِلْمَرَضِ؛ لِأَنَّهُ مُدَاوَاةٌ .... وَيَنْبَغِي لِلطَّبِيبِ أَنْ يُعَلِّمَ امْرَأَةً إِنْ أَمْكَنَ، لِأَنَّ نَظَرَ الْجِنْسِ أَخَفُّ. وَإِنْ لَمْ يُمْكِنْ سَتَرَ كُلَّ عُضْوٍ مِنْهَا سِوَى مَوْضِعِ الْمَرَضِ ثُمَّ يَنْظُرُ، وَيَغُضُّ بَصَرَهُ عَنْ غَيْرِ ذَلِكَ الْمَوْضِعِ مَا اسْتَطَاعَ؛ لِأَنَّ مَا ثَبَتَ لِلضَّرُورَةِ يَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهَا .... تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق ج ٦ ص ١٧ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ. فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۱۱۳ اعضائے مستورہ کو دیکھنا اور کھولنا.

(۲) (وَمُدَاوَاتِهَا يَنْظُرُ) الطَّبِيبُ (إِلَى مَوْضِعِ مَرَضِهَا بِقَدْرِ الضَّرُورَةِ) إِذِ الضَّرُورَاتُ تَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهَا. وَكَذَا نَظَرُ قَابِلَةٍ وَخَتَّانٍ. وَيَنْبَغِي أَنْ يُعَلِّمَ امْرَأَةً تُدَاوِيهَا لِأَنَّ نَظَرَ الْجِنْسِ إِلَى الْجِنْسِ أَخَفُّ. الدر المختار

قال ابن عابدين رحمه الله: وَقَالَ فِي الْجَوْهَرَةِ: إِذَا كَانَ الْمَرَضُ فِي سَائِرِ بَدَنِهَا غَيْرَ الْفَرْجِ يَجُوزُ النَّظَرُ إِلَيْهِ عِنْدَ الدَّوَاءِ، لِأَنَّهُ مَوْضِعُ ضَرُورَةٍ، وَإِنْ كَانَ فِي مَوْضِعِ الْفَرْجِ، فَيَنْبَغِي أَنْ يُعَلِّمَ امْرَأَةً تُدَاوِيهَا فَإِنْ لَمْ تُوجَدْ وَخَافُوا عَلَيْهَا أَنْ تَهْلِكَ أَوْ يُصِيبَهَا وَجَعٌ لَا تَحْتَمِلُهُ يَسْتُرُوا مِنْهَا كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا مَوْضِعَ الْعِلَّةِ ثُمَّ يُدَاوِيهَا الرَّجُلُ وَيَغُضُّ بَصَرَهُ مَا اسْتَطَاعَ إِلَّا عَنْ مَوْضِعِ الْجُرْحِ اهـ فَتَأَمَّلْ. وَالظَّاهِرُ أَنَّ "يَنْبَغِي" هُنَا لِلْوُجُوبِ. رد المحتار على الدر المختار ج ٦ ص ٣٧٠ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ. آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۷۰ پرده.

(۳) اِمْرَأَةٌ أَصَابَتْهَا قُرْحَةٌ فِي مَوْضِعٍ لَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهِ لَا يَحِلُّ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهَا لَكِنْ تُعَلَّمُ امْرَأَةٌ تُدَاوِيهَا، فَإِنْ لَمْ يَجِدُوا امْرَأَةً تُدَاوِيهَا، وَلَا امْرَأَةً تَتَعَلَّمُ ذَلِكَ إِذَا عُلِّمَتْ وَخِيفَ عَلَيْهَا ←←←←←←←←←←

په " آپ کے مسائل اور اُن کا حل " کښې ذکر دي : په هسپتال کښې د ماشوم پیدا کیدو کار صرف د ښځو ډاکټرانو وي ، خو که داسې يو کېس راغی چې هغه د ښځو ډاکټرانو د وَس نه بهر وُ مثلا د زنانه آپریشن کول وو ، او د آپریشن د پاره قابله ډاکټره نه وه نو بیا د مجبوریت په وجه سړي ډاکټر هم دا آپريشن کولې شي ..... (۱)

## که حامله ښځه وفات شي او ماشوم يې په خېټه کښې ژوندې وي نو د اَپريشن په ذريعه به ورنه دا راويستلې شي

عام طور چې کله حامله ښځه وفات شي نو څه وخت پس په کښې ماشوم هم وفات کيږي ، خو که په څه علامو سره دا معلومه شي چې ماشوم په کښې تر اوسه ژوندې دی نو فورًا به ورله اَپریشن کولې شي او دا ماشوم به ورنه راویستلې شي . (۲)

---

←←← الْبَلَاءُ أَوِ الْوَجَعُ أَوِ الْهَلَاكُ. فَإِنَّهُ يُسْتَرُ مِنْهَا كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا مَوْضِعَ تِلْكَ الْقُرْحَةِ . ثُمَّ يُدَاوِيهَا الرَّجُلُ وَيَغُضُّ بَصَرَهُ مَا اسْتَطَاعَ إِلَّا عَنْ ذٰلِكَ الْمَوْضِعِ . وَلَا فَرْقَ فِي هٰذَا بَيْنَ ذَوَاتِ الْمَحَارِمِ وَغَيْرِهِنَّ ؛ لِأَنَّ النَّظَرَ إِلَى الْعَوْرَةِ لَا يَحِلُّ بِسَبَبِ الْمَحْرَمِيَّةِ. كَذَا فِي فَتَاوَى قَاضِي خَانْ.

وَلَوْ خَافَتِ الْإِفْتِصَادَ مِنَ الْمَرْأَةِ فَلِلْأَجْنَبِيِّ أَنْ يَفْصِدَهَا. كَذَا فِي الْقُنْيَةِ. الفتاوى الهندية ج ۵ ص ۳۳۰ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ الْبَابُ الثَّامِنُ فِيمَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَيْهِ وَمَا لَا يَحِلُّ لَهُ . فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۱۲۱ اعضائے مستورہ کو دیکھنا اور کھولنا .

(۱) ... فَإِنْ لَمْ تُوجَدْ وَخَافُوا عَلَيْهَا أَنْ تَهْلِكَ أَوْ يُصِيبَهَا وَجَعٌ لَا تَحْتَمِلُهُ يَسْتُرُوا مِنْهَا كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا مَوْضِعَ الْعِلَّةِ ثُمَّ يُدَاوِيهَا الرَّجُلُ وَيَغُضُّ بَصَرَهُ مَا اسْتَطَاعَ إِلَّا عَنْ مَوْضِعِ الْجُرْحِ . رد المحتار على الدر المختار ج ۶ ص ۳۷۰ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ . آپ کے مسائل اوران کا حل ج ۸ ص ۲۷ پرده .

(۲) فِي فَتَاوَى أَبِي اللَّيْثِ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى فِي امْرَأَةٍ حَامِلٍ مَاتَتْ وَعُلِمَ أَنَّ مَا فِي بَطْنِهَا حَيٌّ فَإِنَّهُ يُشَقُّ بَطْنُهَا مِنَ الشِّقِّ الْأَيْسَرِ وَكَذٰلِكَ إِذَا كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِمْ أَنَّهُ حَيٌّ يُشَقُّ بَطْنُهَا كَذَا فِي الْمُحِيطِ وَحُكِيَ أَنَّهُ فَعَلَ ذٰلِكَ بِإِذْنِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى فَعَاشَ الْوَلَدُ كَذَا فِي السِّرَاجِيَّةِ. الفتاوى الهندية ج ۵ ص ۳۶۰ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ الْبَابُ الْحَادِي وَالْعِشْرُونَ فِيمَا يَسَعُ مِنْ جِرَاحَاتِ بَنِي آدَمَ وَالْحَيَوَانَاتِ . الاشباه والنظائر ص ۴۴ الفن الاول في القواعد الكلية النوع الاول القاعدة الخامسة الضرر يزال ، البحر الرائق ج ۸ ص ۲۰۵ كتاب الكراهية فصل في البيع . ←←←←

## د نوکرۍ د پاره د ډاکټري معائنې په وخت عورت ښکاره کول ناجائز دی

په دې ځای کې ضِمنًا درته د امسئله هم ذکر کوم چې په بعضې سرکاري مَحکمو کې د نَوکري کولو د پاره دا شرط وي چې ډاکټري معائنه کوي ، په دې معائنه کې ډاکټر د سړي د بدن نه ټولې کپړې لرې کړي او د بدن هر اَندام يې ګوري ، تر دې چې د سړي آلې (ذکر) له هم په لاس زُور ورکوي چې چيرته دې کس ته د سُوزک و آتشک بيماري نه وي ( ځکه دا دواړه متعدي بيمارۍ دي ) ، همدارنګې د سړي په شاته حصه ( دُبره ) کې هم ګوته ورکوي ددې د پاره چې چيرته ددې کس د بواسيرو بيماري نه وي .

نو ددې حکم دادی چې په داسې طريقې سره ډاکټري معائنه په خپله يا بل له کول ناجائز ده ، د بدن چې کومه حصه پټول فرض دي هغه د پرَدو سړو د وړاندې دداسې مقصد د پاره ښکاره کول ، يا هغوی ته په دې باندې د لاس وهلو اجازت ورکول هيڅ کله جائز ندي ، که چيرته د يوې نَوکرۍ د پاره داسې ډاکټري معائنه شرط وي نو داسې شرط قبلول ناجائز دی . (۱)

او دا مسئله اِتفاقي ده په دې کې د هيچا اختلاف نشته ، ځکه عورت پټول د اَئمه اَربعهٔ

---

←←←←← اِمْرَأَةٌ مَاتَتْ وَالْوَلَدُ يَضْطَرِبُ فِي بَطْنِهَا قَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى يُشَقُّ بَطْنُهَا وَيُخْرَجُ الْوَلَدُ لَا يَسَعُ إِلَّا ذٰلِكَ. كَذَا فِي فَتَاوَى قَاضِي خَانْ . الفتاوى الهندية ج ۱ ص ۱۵۷ اَلْبَابُ الْحَادِي وَالْعِشْرُونَ فِي الْجَنَائِزِ اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ فِي الْمُحْتَضَرِ . فتاوى التاتارخانيه ج ۲ ص ۱۷۶ كتاب الصلوة الفصل الثاني والثلاثون في الجنائز القسم الرابع ، قاضي خان على هامش الهندية ج ۱ ص ۱۸۸ باب في غسل الميت ومايتعلق به ، فتاوى محموديه ج ۲۷ ص ۳۱۸ ، وص ۳۱۹ اعضاء انسانی اوران کی خرید وفروخت

(۱) ( وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ إِلَى الرَّجُلِ إِلَّا الْعَوْرَةَ ) ، وَهِيَ مَا بَيْنَ السُّرَّةِ وَالرُّكْبَةِ .... ثُمَّ حُكْمُ الْعَوْرَةِ فِي الرُّكْبَةِ أَخَفُّ مِنْهُ فِي الْفَخِذِ. وَفِي الْفَخِذِ أَخَفُّ مِنْهُ فِي السَّوْأَةِ حَتَّى يُنْكِرَ عَلَيْهِ فِي كَشْفِ الرُّكْبَةِ بِرِفْقٍ. وَفِي الْفَخِذِ بِعُنْفٍ. وَفِي السَّوْأَةِ بِضَرْبٍ إِنْ لَجَّ..... ( وَيَمَسُّ مَا حَلَّ النَّظَرُ إِلَيْهِ ) أَيْ مِنْ مَحَارِمِهِ أَوْ مِنَ الرَّجُلِ لَا مِنَ الْأَجْنَبِيَّةِ . تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق ج ٦ ص ۱۸ ، وص ۱۹ . كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ . البحرالرائق ج ۸ ص ۱۹۲ كتاب الكراهية فصل في النظر والمس ، مجمع الانهر مع سكب الانهر ج ۴ ص ۲۰۰ كتاب الكراهية فصل في النظر ونحوه .

په نزد باندې بالاتفاق فرض دی. (۱)

بل دا چې د نوکرۍ د پاره عورت ښکاره کول خو څه ضرورتِ شرعيه ندی، ځکه په داسې قِسمه ډاکټري معائنه باندې نه خو د صحت دارو مدار دی، نه په دې باندې شرعي ضرورت موقوف دی، او نه په دې باندې د معيشت دارو مدار دی، ځکه بغير د داسې قِسمه نوکرۍ نه هم خلق په آسانه ژوند تيروي.

لهذا د نوکرۍ د پاره داسې قِسمه ډاکټري معائنه کول حرامه ده، ددينه ځان ساتل واجب دي. (۲)

## دريم: د واجبي تعليم په وخت. (خو چې بل صورت نه وي)

چې کله په زَنانه باندې څه عِلم زده کول واجب وي خو اُستاذه ښځه او مَحرَم نبک اُستاذ نه وي، او د پَردې شاته ددې تعليم زده کول متعذَر وي، او د واړه طرفه د فِتنې يَره نه وي نو په دې وخت کې ښځې ته د مخ ښکاره کول جائز دي.

خو ددې د پاره څلور شرائط دي، تفصيل يې دادی:

**اول شرط** دادی چې ښځه دا کوم تعليم زده کوي دا په دې باندې فرض يا واجب وي. ځکه د مستحب تعليم د پاره د مخ ښکاره کولو اجازت نشته.

**دويم شرط** دادی چې اُستاذه ښځه يا څوک صالح مَحرَم اُستاذ نه وي. ځکه که دا وو نو بيا ديته د پَردې اُستاذ دوړاندې د مخ ښکاره کولو اجازت نشته، بلکه دا به د زَنانه اُستاذې نه تعليم زده کوي، يا به د نېک مَحرَم رِشته دار نه تعليم زده کوي.

---

(۱) أجمعوا على انّ ستر العورة عن العيون واجب فى الصلوة وغيرها. الميزان الكبرى للشعراني ج۱ ص ۱۷۶ باب شروط الصلاة.

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوْقٍ فِي مَعْصِيَةِ الخَالِقِ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السنة، مشكاة المصابيح كتاب الإمَارَةِ وَالقَضَاء الفَصْل الثَّانِي رقم الحديث ۳۶۹۶ (۳۶).

(۲) وَيَحْرُمُ النَّظَرُ إلَى العَوْرَةِ إلَّا عِنْدَ الضَّرُورَةِ.... وَلَا يَتَجَاوَزُ قَدْرَ الضَّرُوْرَةِ. مجمع الأنهر ج ۲ ص ۵۳۸ كِتَابُ الكَرَاهِيَةِ فَصْلٌ فِي بَيَانِ أَحْكَامِ النَّظَرِ وَنَحْوِه. فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۱۲۲، و ص ۱۲۳ اعضاءِ مستوره كو ديكهنا اور كهولنا.

دریم شرط دادی چې په پَرده کې ددې تعلیم زده کولو ممکن نه وي. ځکه که پَرده کې دا زده کول ممکن وو نو بیا دیته د مخ ښکاره کول اجازت نشته.

څلورم شرط دادی چې د مخ په ښکاره کولو سره د دواړو طرفه د فِتنې یَره نه وي. ځکه که د فِتنې یَره وه نو بیا ښځې ته د مخ ښکاره کولو او پړدو سرو د پاره دیته د کتلو اجازت نشته. (۱)

## څلورم: د قاضي دوړاندې د فیصلې په وخت، یا د ګواهۍ په وخت

زَنانه ته د قاضي د وړاندې د فیصلې په وخت، یا په زَنانه باندې د ګواهي کولو په وخت د مخ ښکاره کولو اجازت شته.

ځکه که د قاضي د وړاندې دا مخ ښکاره نکړي نو قاضي ته به څه پته اُولږي چې دا فیصله یې په چا باندې اوکړه؟

همدا رنګې که په دې ښځه باندې د ګواهۍ کولو په وخت دا مخ ښکاره نکړي نو ګواه ته به څه پته اُولږي چې دا ګواهي یې په چا باندې اوکړه؟ (۲)

## پنځم: د سخت مجبوریت په وخت

زَنانه ته د سخت مجبوریت په وخت هم د مخ ښکاره کولو اجازت شته.

---

(۱) ثالثا: عند تعليمها العلم الواجب إذا افتقدت امرأة تعلمها، وكذا مَحرما صالحًا، وأنْ يتعذر التّعليم من وراء حجاب، وإلا لم يحل لها الكشف، ولا له النظر، وأن تؤمن الفتنة من الجانبين. عودة الحجاب ج ۳ ص ۲۷۶.

(۲) رابعا: عند التقاضي، والشهادة، وزاد بعضهم: المعاملة التي قد تستوجب الشهادة.

قال القاضي أبو بكر بن العربي رَحِمَهُ‌اللَّهُ: لِلمفتي والقاضي والشاهد أنْ ينظر إلى وجه المرأة إذا كلمتهم في الفتوى والقضاء والشهادة. فأمّا القاضي والشاهد فلابدّ مِن كشف وجهها له لِيَعْلَمَ على مَن يَقضي، وعلى من شَهِد. إذ العلم بالمقضي عليه والمشهود عليه شرطٌ. فأما المفتي فلا ينظر إليها إلا إذا كانت ساترة بسبب أو كان ذلك مما يتعلق بالتقوى، ومن العلماء من قال: ينظر إليها، فإنّها مأمورة بسؤاله، وهو مأمور بإجابتها، وكلاهما عورة أباحته الفتوى، فكذلك رؤيتها لأنّ ذلك يتم بالرؤية. عودة الحجاب ج ۳ ص ۲۷۶. عارضة الأحوذي ج ۴ ص ۵۶.

مثلاً کُفري حکومت وي او هغوی په هغه زَنانهٔ باندې سخت ظلم کوي کومو چې مخونه پټ کړي وي ، او ددې د پاره بل صورت هم نه وي ، نو په دې وخت کې دې زَنانهٔ ته د مخ ښکاره کولو اجازت شته .

## ضروري شرط : ( په مذکوره ځايونو کې به زينت نه ښکاره کوي )

دا پاس چې کوم پنځه ځايونه ذکر شو ( چې په هغې کې زَنانه ته د مجبوريت په وخت د مخ ښکاره کولو اجازت شته ) نو په دغه ځايونو کې په ښځه باندې دا واجب دي چې د خپل زِينت شيان به نه ښکاره کوي .

مثلا په دغه وختونو کې به زيورات نه اچوي ، ميک اَپ به نه کوي ، عطر به نه استعمالوي او ځان به نه ښائسته کوي . (۱)

## د پَردې په باره کې نازل شوي ټولو آيتونو باندې عمل کول

بهر حال ، د ښځو د پاره اصل حکم همدا دی چې په کورونو کې په پَرده کې ژوند تېر کړي، لکه په ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ ﴾ او ﴿ وَ إِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَسْئَلُوهُنَّ مِنْ وَرَآءِ حِجَابٍ ﴾ آيتونو کې د همدې حکم دی .

ليکن کله زَنانه ته د څه ضرورت د پاره د کور نه د وتلو ضرورت هم راپېښيږي نو شريعت ورته د وتلو اجازت هم ورکړی ، خو په ﴿ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ آيت سره يې ورباندې (په غټ څادر يا بُرقع کې ) د ټول وجود پټول هم فرض کړي .

بيا کله بعضې زَنانهٔ ته د کور نه بهر د څه مجبوريت په وجه په لاس باندې د څه کار کولو ضرورت هم راپېښيږي ، او په سترګو باندې د هغې کتل هم لازمي وي نو چونکه په

---

(۱) خامسا : عند الإكراه، كما في حالة العيش في ظل حكومات "إرهابية" جائرة. تسلط جلاوزتها على المنتقبات لإيذائهن، أو اعتقالهن، أو فصلهن من وظائفهن إذا كانت المصدر الوحيد لرزقهن. فإن الأمر إذا ضاق اتسع. والصبر أولى .

وفي جميع الحالات الاستثنائية الآنفة الذكر. يجب على المرأة أن تجتنب إظهار زينتها كالحلي والأصباغ ونحوها. عودة الحجاب لمولانا محمد أحمد إسماعيل المقدم ج ۳ ص ۲۷۷ تنبيهات .

ي وخت کې مخ او لاسونه پټول مشکل وي نو د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د
فسير موافق چونکه په ﴿ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾ آيت سره د مخ او لاسونو اِستثناء شوی . نو د
سخت ضرورت په بِناء ورته د مخ او لاسونو ښکاره کولو اجازت هم شته . (۱)
نو د پَردې په ټولو آيتونو باندې عمل اوشو .

## خلاصه

د غونډ تقرير خلاصه دا راأووته چې : اګر چې په اسلام کې زَنانه ته په کور کې په پَرده
کې د پاتې کيدو حکم شوی خو بيا هم د دِيني يا دُنيوي ضرورت په وجه د کور نه بهر په
پرده کې وتلې شي .
خو د بهر وتلو په وخت چې کوم شرائط او آداب دي د هغې لحاظ به پوره ساتي ، او
بِلاضرورت به د پرَدو سرو د وړاندې خپل مخ نه ښکاره کوي .

## دُعا

الله تعالی دې زمونږ د زَنانه وُ په زړونو کې د شرعي پَردې اَهميت پيدا کړي ، د بې
حيايۍ او بې پَردګۍ نه دې اُوساتي .
ربِّ کائنات دې مونږ ته د اسلام په ټولو احکاماتو باندې پوره طريقې سره د عمل کولو
توفيق رانصيبه کړي .

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن
وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

(۱) پردہ کے شرعی احکام لمولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله ص ۷۰ ، القاء السكينة في تحقيق ابداء الزينة .

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلٰى ﴾

الاحزاب آية ۳۳.

# د پَردې متعلق اعتراضات او د هغې جوابات

تالِيف

اَبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدٰى عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اكاخيل كالونى مردان

## نوټ

د پَردې متعلق دا اعتراضات او جوابات تاسو په مستقله جُمعه کې هم بيانولې شئ ، خو خطبه او تمهيدي خبره ورته د مخکې موضوع نه را انقل کړئ ·
او د مخکينې موضوع ګانو په آخر کې يې هم بيانولې شئ ·
خو که په مستقله جُمعه بيان شي نو فائده به يې زياته وي ؛ ځکه د پَردې متعلق چې د خلقو په ذهنونو کې کوم شکوک او شبهات دي هغه به ختم شي ·

ابو الشمس عفي عنه

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# د پَردې متعلق اعتراضات او د هغې جوابات

بعضې د دِين دُشمنان د پَردې متعلق څه اعتراضات کوي ، او د مسلمانانو په زړونو کې د پَردې په باره کې شکوک او شبهات اچوي ، مقصد يې دا وي چې د زَنانهٔ په بې پَردګۍ سره خپل مذموم مقاصد پوره کړي ، نو زه به درته د هغوی د اعتراضاتو نه مُفصّل جوابات کوم ، خو د هغې نه مخکې درته اِجمالاً د هغه دلائلو حيثيت بيانوم کوم چې دا بې دِينه خلق په دليل کې پيش کوي :

## د بې پَردګۍ د جواز د پاره چې کوم دلائل پيش کولې شي د هغې حيثيت

د اِسلام دُشمنان چې د بې پَردګۍ د جواز د پاره کوم دلائل پيش کوي نو د هغې نه د دوی مُدّعیٰ نه ثابتيږي ، ځکه د يو څو وجوهاتو په وجه په دغه دلائلو باندې اِستدلال صحيح ندی : **اول** : دوی د بې پَردګۍ په ثبوت کې هغه احاديث او واقعات پيش کوي چې هغه د پَردې د فرضيت نه مخکې دي .

حالانکه د صحيح قول مطابق د پَردې فرضيت په پنځم کال د هجرت باندې شوی ، نبي عليه السلام ته د نبوّت ملاويدو نه پس تر د پَردې فرضيت پورې تقريبًا اُوولس (۱۷) کاله زمانه داسې وه چې په دې کې دا خاص شرعي پَرده فرض نه وه ، نو په دې وخت کې چې کوم واقعات پيښ شوي دي ددينه د بې پَردګۍ په ثبوت باندې اِستدلال صحيح ندی .

**دويم** : بې دِينه خلق د بې پَردګۍ د ثبوت د پاره اکثر هغه احاديث پيش کوي چې په هغې کې نبي عليه السلام زَنانهٔ ته د سخت ضرورت په وجه د پَردو سرو د وړاندې د مخ ښکاره کولو اجازت ورکړې وي .

مثلاً د ضرورت په وخت د ډاکټر د وړاندې ، يا د ګواهي ورکولو په وخت د ښځې د پاره مخ ښکاره کول جائز دي ، يا د يو سړي د يوې ښځې سره د نکاح کولو اِراده وي نو ده ته د هغې مخ ته کتل جائز دي ، يا نور د ضرورت په ځايونو کې شريعت ښځو ته د پَردو سرو د وړاندې د مخ ښکاره کولو اجازت ورکړی .

نو دا بې دِینه خلق دغه احادیث د بې پَردګۍ د ثبوت د پاره پیش کوي حالانکه دا پیش کول صحیح ندي ، ځکه دا خو د ضرورت ځایونه دي .

بل دا چې که مونږ دغه دلائلو ته اوګورو کوم چې دوی د بې پَردګۍ د ثبوت د پاره پیش کوي نو د همدغه دلائلو نه د پَردې ثبوت کیږي ، ځکه که چیرته هر وخت د ښځو د پاره د پرَدو سرو د وراندې خپل زِینت ښکاره کول جائز وی نو بیا نبي علیه السلام په دې مخصوص ځایونو کې اِستثناء ولې کوله ؟

ددې اِستثناء نه همدا معلومیږي چې ښځه به په عامو حالاتو کې په پَرده کې وي خو د ضرورت په وخت په مذکوره ځایونو کې د پرَدو سړو د وراندې مخ ، لاسونه او قدمونه ښکاره کولې شي .

**دریم** : دا بې دِینه خلق د بې پَردګۍ د ثبوت د پاره اکثر ضعیف احادیث په دلیل کې پیش کوي ، حالانکه دا اتفاقي خبره ده چې د ضعیفو احادیثو نه اَحکامات نه ثابتیږي .

**څلورم** : د دِین دُشمنان د بې پَردګۍ د ثبوت د پاره اکثر داسې نصوص پیش کوي چې هغه په دې خپله مُدّعٰی کې صریح نه وي بلکه نور احتمالات په کې هم وي ، لهذا دداسې نصوصو نه د دوی اِستدلال صحیح ندی .(۱)

---

(۱) تدور شُبه المغرضين حول أقوالٍ لا رصيد لها من المعنى الذي يمكن أن يتقبله العقل السليم، لأنها من نوع ما يسميه علماء المنطق بالسفسطة التي لها شكل الحجة، وليست لها حقيقتها . وهي أقوال يراد بها إخضاع النفس، أكثر مما يراد بها إقناع العقل. هذا فيما يتعلق بالمغرضين من أعداء الذين الذين يتخذون السفور ذريعة لمقاصدهم السيئة. أما الفريق الآخر الذي يبيح السفور بناءً على اجتهاد فقهي مخلص في طلب الحق، فأغلب ما تعلقوا به: _ إما أحاديث ضعيفة، لا تثبت عند أهل العلم بالحديث. _ وإما وقائع أحوال لا عموم لها. _ وإما نصوص يفهم منها إباحة السفور لكنها كانت قبل نزول الحجاب. _ وإما نصوص يفهم منها حصول السفور في حالة من حالات الترخيص فيه مثل الخِطبة، والشهادة، والتطبيب، وغيرها، وهذه في الحقيقة تؤيد أن الأصل منع السفور، وإلا لما كان لهذه الاستثناءات معنى . _ وإما نصوص غير صريحة يطرقها الاحتمال، فيسقط بها الاستدلال . عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۶۹ .

اوس درته د پَردې متعلق اعتراضات او د هغې جوابات شروع کوم :

## اول اعتراض : پَرده د مُلیانو ایجاد دی

بې دِینه خلق یو اعتراض دا کوي چې " پَرده په اسلام کې نشته بلکې دا ددې تَنګ نظره مُلیانو اِیجاد دی " .

ددې **جواب** دادی چې په اسلام کې په واضحې طریقې سره د پَردې حکم بیان شوی ، اوس چې دوی ته نه ښکاري نو دا خو د دوی نقصان دی .

که ړُوند ته نمر په نظر نه راځي ، یا خاپېرک د ورځې نمر نه ګوري نو دا خو د دوی د سترګو نقصان دی ، د نمر نقصان خو ندی .

همدغه شان چې چا ټول عُمر تعلیم د امریکې او برطانیې په یونیورسټو کې کړې وي یا یې د حیواناتو په شان فحاش ژوند تېر کړې وي ، یا د مغربي تهذیب نه متأثر وي نو دې ته به څه پته وي چې پَرده په اسلام کې شته او که نه ؟ دا نقصان خو دده خپل دی .

## دویم اعتراض : مُلیان د ښځو د آزادۍ او ترقۍ دُشمنان دي

بعضې بې دینه خلق دا اعتراض کوي چې :

" مُلیان د ښځو د آزادۍ او ترقۍ دُشمنان دي ، دوی ښځې په کور کې بندې کړي او ترقي نه ورکوي ، او چې کله ښځې ترقي اونکړي نو بیا ملک هم ترقي نشي کولی ، لهذا ښځو ته دې د آزادۍ او بې پَردګۍ اجازت ورکړې شي نو د یورپي ملکونو په شان به زمونږ ملک هم ترقي اوکړي " .

ددې **جواب** دادی چې مُلیان هیڅ کله د مُلک د ترقۍ دُشمنان ندي .

**ترقي چاته وایي ؟** اول دې دا بې دِینه خلق د ترقۍ معنٰی زده کړي چې ترقي چاته وایي ؟ دوی خو ترقي دیته وایي چې ښځه سَرتور سَر ، کلاؤ سِینه ، سِینګار کړې په بازارونو کې د پرَدو سړو سره ځنګ په ځنګ ګرځي ، زِنا او نور د فحاشۍ کارونه کوي ، په کلبونو کې د پرَدو سړو په مخکې ګډېږي ، په سوِیمِنګ پُول ( تالابونو ) کې د پرَدو سړو سره لغړې لامبي ، آیا دا ترقي ده ؟

هيڅ کله نه ، دا خو بې حيائي او بې غيرتي ده ، اسلام هيڅ کله ددې اجازت نه ورکوي او نه به علماء ددې اجازت ورکړي ، بلکې علماء به د خپلو سَرونو په قربانۍ سره د آخِري سَلګۍ پورې د داسې فحاشۍ مَخنيوې کوي.

خلق صرف يورپي ملکونو ته ګوري چې هلته سړي او ښځې يو ځاى په دَفترونو کې کار کوي نو اګر چې ظاهري دُنيوي ترقي به ورته حاصله وي خو ليکن اصلِ سکون ورته بيا هم حاصل نه وي ، ځکه د داسې بې حياء ښځو کورنې ژوند مکمل تباه وي ، اکثره د خپلو خاوندانو نه طلاقې شوې وي ، زياتره وخت په کلبونو او هوټلو کې د پرَدو سړو سره تيروي

اسلام چې ښځې ته کوم اُوچت مقام ورکړى بل هيڅ مذهب دا ندې ورکړى : ښځه يې د قيمتي ملغلرې په شان په کور کې محفوظ ساتلې ، د شهزادګۍ په شان يې د کور سَرپرَسته ګرځولې ، د پرَدو سړو د غلط نظر او نقصان نه يې بچ کړې .

**اصل ترقي** : اصل ترقي داده چې انسان د خپل مقصد حيات نه ځان خبر کړي ، عزت او شرافت سره ژوند تېر کړي ، د الله او رسول احکامات اُومني ، په اِيمان او اعمالو کې ترقي اوکړي ، او ښځه په پَرده کې اُوسي ، نو په دې وخت کې به د الله ﷻ رحمتونه راوريږي ، بيا چې دداسې حياناکو ښځو په غيږ کې د کومو بچو پَرورَش اوشي دوى ملک ته ترقي ورکولې شي .

همدارنګې د مُلک ترقي خو په اَمن ، تجارت ، کارخانو جوړولو ، او خلقو ته رُوزګار پيدا کولو سره راځي او علماء هيڅ کله ددې مخالِف ندي ، علماء خو د بې حيائۍ او بې پَردګۍ مخالف دي .

**د ښځو پَرده د ملک د ترقۍ د پاره مانِع نده** : که مونږ اسلامي تاريخ اوګورو نو په اِبتدائي دَور کې د دُنيا په اکثره حصه باندې د مسلمانانو حکومتُو ، اسلامي ملکونو ورځ په ورځ ترقي کوله ، په مسلمانانو کې لوي سائنسدانان او فلسفيان وو ، لوي لوي علماء ، اَولياء او فاتحين وو ، هر طرف ته د علومو چَرچه وه ، خو ددې ټولو باوجود بيا هم د مسلمانانو ښځې په پَرده کې وى ، د پَردې په وجه د دوى په ترقۍ کې هيڅ فرق رانغى بلکې ورځ په ورځ يې نوره هم ترقي کوله .

دا ځکه چې د مسلمان اصل عزت په اسلام او اِيمان کې دى ، الله تعالى فرمايي :

﴿ وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾.(۱)

ترجمه: او هم تاسو به غالب يَئ که چيرته تاسو رېښتيني مؤمنان يَئ.

پس معلومه شوه چې د زَنانهٔ پَردهٔ د مُلک په ترقۍ کې مانع نده.

بل دا چې زه تاسو ته دا وايم چې که چيرته د ښځو په بې پَردګۍ سره يو ملک ترقي کولی نو بيا خو نن هم ډير يورپي ملکونه داسې دي چې په هغې کې ښځو ته مکمل آزادي حاصله ده، بې حيائي او بې پَردګي په کې مکمل آزاده ده خو ليکن بيا هم هغوی تر اوسه ترقي نده کړې که چيرته په بې پَردګۍ کې ترقي وی نو په کار ده چې هريو يورپي ملک ترقي کړې وی.

ډيره د أفسوس خبره ده چې په مسلمانانو کې د بعضې کمزوري ايمان واله حکمرانان او بعضې عام مسلمانان د مغربي تهذيب نه دومره متأثر شوي چې دوی هم د هغوی په نقشِ قدم باندې روان دي، په سکولونو کې يې مخلوط تعليم شروع کړی، ښځو ته يې مکمل آزادي ورکړی، اوس يې ښځې د ښارو په شان بې حياء، کلاوُ سينې په بازارونوکې د پَردو سرو سره څنګ په څنګ ګرځي وهي، او بيا ډيره د بې غيرتۍ خبره داده چې ددې ښځو سَرپرستان په خپلو سترګو باندې دا بې شَرمي او زِناکاري ګوري خو ليکن هيڅ غږ نه کوي، ګويا الله تعالی د دوی عقلونه مَسخ کړي دي.

نبي عليه السلام خو رېښتيا فرمائلي: إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَافْعَلْ مَا شِئْتَ.(۲)

چې کله در کې حياء نه وي نو بيا چې دې څه خوښه وي هغه کوه (خو سزا به يې أوګورې).

يعنې چې کله درنه حياء ختمه شي نو بيا خو بل داسې څيز نشته چې هغه تا د فحاشۍ او ګناهونو نه منع کړې.

خو چې په چا کې معمولي غيرت او معمولي حياء وي هغه به هيڅ کله داسې بې پَردګي برداشت نه کړي.

---

(۱) آل عمران آية ۱۳۹.

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ أَحَادِيثِ الأَنْبِيَاءِ بَابُ حَدِيثِ الغَارِ رقم الحديث ۳۴۸۳.

وفي رواية: إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ. صحيح البخاري كِتَابُ أَحَادِيثِ الأَنْبِيَاءِ بَابُ حَدِيثِ الغَارِ رقم الحديث ۳۴۸۴. مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۷۱۰۷.

## دریم اعتراض : د ښځو په پردې کولو سره د ملک نیمه آبادي بیکاره کیږي

بعضې خلق دا اعتراض کوي چې :

" که مونږ ښځې په پَرده کې په کور کینوو نو دملک نیمه آبادي به بېکاره شي ، ځکه د مُلک نیمه آبادي د ښځو ده ، لهذاد بېکارتیا نه دبچ کیدو د پاره ښځې بهر ته راویستل پکار دي " .

ددې **اول جواب** دادی چې که دا خبره د هغه ملک واله خلق اوکړي چې د هغوی سړو ته سَل فیصده نَوکري (او کاروبار) مِلاؤ شوې وي نو بیا به مونږ اُووایو چې دا خبره څه نا څه صحیح ده ، لیکن په دې اسلامي ملکونو کې خو د غټو غټو ډِګریانو واله سړي بې رُوزګاره ګرځي هیڅ نوکري ورته نه ملاویږي نو بیا څنګه دوی وایي چې ښځې دې بهر د نوکرۍ د پاره راأووځي .

اول دې دوی دې ټولو سړو ته کارونه پیدا کړي بیا دې روسته د ښځو د نوکرۍ غم کوي.

**دویم جواب دادی** چې دې خلقو ته کار صرف هغه معلومیږي چې په هغې باندې روپۍ ګټلې شي . په کور کې چې ښځې کوم کار کوي هغه ورته هیڅ کار نه معلومیږي ، حالانکه د کور پاکیزه ماحول برابرول ، خانداني نظام صحیح کول د ښځې اَهمه فریضه او غټ کار دی ، ځکه ښځه چې د بچو صحیح تربیت اوکړي نو ددې په نتیجه کې ډیر اَهم شخصیات پیدا کیږي ، او بهترینه معاشره په وجود کې راځي .

## څلورم اعتراض : پَرده د ښځو د پاره قید او په دوی باندې ظلم دی

بعضې خلق دا اعتراض کوي چې :" پَرده د ښځو د پاره قید او په دوی باندې ظلم دی " .

نو ددې **جواب** دادی چې پَرده هیڅ کله د ښځو د پاره قید ندی ؛ ځکه په هره ښځه کې فِطرةً حیاء وي ، او د حیاء تقاضا داده چې ښځه په پَرده کې وي ، او کوم شی چې د فِطرت موافق وي هغه قید نه وي .

بلکه کومه ښځه چې فطرتِ سلیمه لري د هغې د پاره بې پَردګي قید دی ؛ ځکه دا بې پَردګي د هغې د فِطرت خلاف ده ، او قید خو همدې ته وایي چې د فطرت او طبعیت خلاف وي ، ځکه که د طبعیت خلاف نه وي نو بیا قید نه وي .

**مثال** : دغه وجه ده چې که یو کس په بیتُ الخلاء کې د اَودس ماتي د پاره په پَرده کې ناست وي نو هیڅوک دیته قید نه وایي اګر چې دا د نورو خلقو د نظرونو نه پټ وي ، ځکه دا د طبعیت موافق دی .

البته که څوک دا کس په بیتُ الخلاء کې بند کړي او قلف (تاله ) ورپسې واچوي نو بیا دا قید دی ځکه دا دده د طبعیت خلاف دی .

همدغه شان کومې ښځې چې په پَرده کې په کورونو کې ناستې وي نو دا د دوی د طبعیت موافق ده ځکه په هره ښځه کې حیاء وي او د حیاء تقاضا داده چې دا په پَرده کې وي. او بې پَردګي د دوی د طبعیت خلاف ده نو ځکه دا ورله قید دی .

## یو پادري ته د مسلمان بهترین جواب

یو پادري مسلمان ته وویل چې : " اسلام ډیر ښه مذهب دی خو دا یوه خبره یې زما نده خوښه چې ښځې یې په قید کې ساتلې دي " .

مسلمان ورته وویل : مونږ خو ښځې په قید کې ندي ساتلي .

پادري ورته وویل : دا تاسو چې ورته پَرده وایئ دا د ښځو د پاره قید دی .

مسلمان ورته وویل : اول ته د قید په حقیقت باندې ځان پوهه کړه چې قید چاته وایي ؟ د قید حقیقت دادی چې " یو کار د طبعیت خلاف وي . یعنی یو کس د هغه د مرضۍ نه خلاف په یو ځای کې بند ول " او که یو کار د طبعیت خلاف نه وُ نو دا قید ندی . ګنې بیا خو چې یو کس په بیتُ الخلاء کې ناست وي نو ستاسو په نزد خو دیته هم قید ویل په کار دي ؛ ځکه دا هم د نورو د نظرونو نه په پَرده کې پټ وي ، خو دیته چې قید نشي ویلی دا ځکه چې دا د طبعیت موافق دی .

البته که څوک دا په لیټرین کې بند کړي او بهر یې بالکل نه راپرېږدي نو دا بیا قید دی ځکه دا اوس دده د طبعیت خلاف دی .

همدغه شان ښځې چې په پَرده کې په کورونو کې ناستې وي نو دا قید ندی ځکه د مسلمانانو په ښځو کې فِطرةً حیاء شته نو د دوی د فطرت او طبعیت دا تقاضا کوي چې د پَردو سرو نه پَرده اوکړي . نو پَرده کول د دوی د طبعت موافق شوه . لهذا دا قید ندی .

بل دا چې شریعت خو زَنانه ته د ضرورت په وخت په پَرده کې بهر ته د وتلو اجازت کړی

نو بيا دا څنګه قيد شو ؟

بلکه مونږ وايو چې ښځه د کور نه بې پَردې حالت کې راويستل قيد دی ، ځکه بې پَردګي د حياداري ښځې د طبعيت خلاف ده .

او که څوک دا اعتراض کوي چې " چې په تَنګو کورونو کې د ښځو ساتل قيد دی نو ځکه يې بهر ته راويستل په کار دي "

نو مونږ ورته وايو چې بيا خو په ښاريه کې په لکونو خلق راجمع وي او په تنګو کورونو کې اُوسيږي نو هغې ته هم قيد ويل په کار دي ، هغوی هم د کورونو نه راويستل په کار دي چې په ځنګلونو او غټ ميدانونو کې آزاد اوګرځي .

نو لکه څرنګې چې د ښار خلق په خپله خوَښه په تنګو کورونو کې اُوسيږي ، په هغې کې خوشحال وي او دا قيد نه ګڼړي ځکه دا يې د طبعيت موافق وي نو همدغه شان مسلمانانې ښځې هم په خپله خوښه په کورونو کې په پَرده کې خوشحاله وي دا د دوی د پاره قيد نه وي ځکه دا يې د طبعيت موافق وي .

بل دا چې قيد انسان ته د يو جُرم په سزا کې ورکولې شي ، او پَرده خو زَنانه د ثواب حاصلولو د پاره کوي ، نو دا قيد ندی .

## فِطري شيان انسان پخپله معلومولې شي

په اسلام کې د فِطري خبرو بيانولو خاص اِهتمام ندې شوی بلکه دا هر کس په خپله معلومولې شي ، مثلاً شريعت خو د اَودس ماتي (ډکو مِتيازو) په باره کې دا بحث کړی چې دا ناپاک دی خو په قرآن کريم او احاديثو هيچرته دا بحث نشته چې " اَودس ماتي خوړل حرام دی " ، دا ځکه چې د هر چا فِطرت او طبعيت ددينه نفرت کوي ، نو که شريعت يې بيان نکړې بيا هم د هر چا فِطرت دا معلومولې شي چې ددې خوړل حرام دي .

همدغه شان که چيرته اسلامي شريعت د پَردې نه بحث نه وې کړی نو بيا هم فِطرتِ سليمه دا معلومولې شوه چې د ښځې د پاره پَرده ضروري ده ، ځکه په هره ښځه کې فِطرةً حياء شته ، او پَرده خو د حياء موافق ده .

ليکن شريعت د مونږ سره دا اِحسان اوکړو چې بيا يې هم راته د پَردې احکامات واضح کړل " چې زَنانه دې پَرده کوي " دا ځکه چې الله او رسول ته دا معلومه وه چې په روستو

زمانه کې به حیاء کمیږي ، د خلقو په طبیعت باندې به بَهیمِیَت ( د چارپیانو صفت ) غالبه کیږي نو ځکه یې زَنانهؤ ته د پَردې حکم اوکړو .

## پنځم اعتراض : آیا دا اسلام ټول په پَرده کې دی ؟

کله چې علماء د پَردې په باره کې خبره کوي نو د یورپي تهذیب نه متأثره خلق ورته وایي :

" آیا دا اسلام ټول په پَرده کې دی چې تاسو دیته دومره زُور ورکړی ؟ دُنیا کوم ځای ته اُورسیده او تاسو د هماغه زړې زمانې خبرې تکراروئ " .

ددې **جواب** دادی چې : آو ، د هر شرعي حکم په منلو کې اسلام دی که هغه فرض وي، که واجب وي ، که سُنت وي او که مستحب وي . چې کله په سُنت طریقې سره اِستنجاء کولو او سُنت طریقې سره خوراک څکاک کولو کې اسلام دی نو په پَرده کولو کې خو خامخا اسلام دی .

مسلمانانو ته دا حکم شوی چې دا به د اسلام په ټولو احکاماتو باندې عمل کوي ، الله تعالی فرمایي : ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱدْخُلُوا۟ فِى ٱلسِّلْمِ كَآفَّةً ﴾ . (۱)

ترجمه : اې ایمان والو ! تاسو ټول په اسلام کې پوره پوره داخل شئ .

که چیرته مونږ نن د اسلام یو حکم پرېږدو ، صبا بل پرېږدو نو بیا خو اسلام پاتې نه شو .

**واقعه** : په دې پورې یوه واقعه رایاده شوه چې یو کس تصویر جوړوونکي ته ورغی ، هغه ته یې وویل : زما په وجود باندې د زمري تصویر جوړ کړه . هغه وویل : صحیح ده ، ستَن یې راواخیسته او دده په بدن باندې یې د زمري تصویر جوړول شروع کړل . (۲)

کله چې ده ته د ستَنې په سُوري کیدو سره تکلیف پیدا شو نو د هغه کس نه یې پوښتنه اوکړه : دا یې کوم ځای جوړوې ؟ هغه ورته وویل : د زمري لکۍ جوړوم .

ده ورته وویل: دا لکۍ پرېږده دا خو څه ضروري نده ، زمري خو بې لکۍ هم وي .

---

(۱) البقرة آية ۲۰۸ .

(۲) په بدن به یې تصویر داسې جوړول چې د ستَنې په سَر به یې څرمن زخمي کوله ، بیا به یې په دې ځای باندې شین رَنګ واچول ، نو دا به پوخ تصویرؤ ، بیا به نه ورانیدو ، لکه دا بعضې زَنانه چې په خپل تَندي باندې دغه شان خال جوړوي . **نوټ** : په بدن باندې د خال یا تصویر جوړول حرام دي ، ددې تفصیلي بحث روستو په فقهي مسائلو کې په صفحه ۳۳۴ باندې ذکر دی . ابوالشمس علي عنه

هغه کس بیا د زمري خپې جوړول شروع کړی ، کله چې ده د ستنې زخمي کیدو دَرد محسوس کړو نو پوښتنه یې ورنه اوکړه : اوس یې کوم ځای جوړوی ؟ هغه ورته وویل : خپې ورله جوړوم . ده ورته وویل : خپې یې پرېږده دا خو څه ضروري ندي .

هغه کس بیا د سَر په جوړولو شروع اوکړه ، ده چې د ستَنې درد محسوس کړو نو پوښتنه یې اوکړه : اوس یې کوم ځای جوړوی ؟ هغه ورته ویل : سَر . ده ورته وویل : سَر یې هم پرېږده . آخر هغه کس ورته وویل :

چې کله په زمري کې لکۍ ، خپې او سَر نه وي نو آیا دا زمرې وي ؟ مونږ خو داسې زمرې ندي لیدلی .

نو همدغه شان که چیرته مونږ نن د اسلام یو حکم ( پَرده ) پرېږدو ، صبا بل حکم پرېږدو نو آیا دا به اسلام وي ؟ هیڅ کله نه .

## شپږم اعتراض : پَرده د ښځو د صحت د پاره نقصاني ده

د یورپي تهذیب نه متأثره خلق یو اعتراض دا کوي چې:

" پَرده د ښځو د صحت د پاره نقصاني ده ؛ ځکه ښځې چې په کور کې ناستې وي نو د تازه هوا نه محرومې وي " .

ددې **اول جواب** دادی چې الله تعالی حکیم ذات دی ، هغه هیڅ کله انسانانو ته داسې حکم نه کوي چې په هغې کې د دوی نقصان وي ، الله تعالی چې زَنانهٔ ته د پَردې حکم کړی نو ضرور به په دې کې فائدې وي او نقصان به په کې نه وي .

او که مونږ په معاشره کې اوګورو نو کومې ښځې چې په کورونو کې په پَرده کې ناستې وي هغوی د هغه ښځو په نسبت ډیرې صِحت مَندې وي کومې چې تول ه ورځ بې حِجابه په بازارونو او کوڅو کې ګرځي ، یا په سینماګانو او هوټلو کې شپې کوي .

همدا رنګې کومې ښځې چې په پَرده کې وي هغوی دومره ډاکټرانو ته نه ځي څومره چې دا بې حِجابه ښځې ځي .

په یورپي ملکونو کې چې اِیدز یا نور وَبائي مرضونه زیات وي نو د هغې سبب همدا بې حیائي او بې حِجابي ده .

د مذکوره اعتراض دويم جواب دادی چې که په کور کې پاتې کيدل د ښځو د صحت د پاره نقصاني وی نو بيا خو سړي هم نيم ژوند په کور کې تيروي ځکه دوی چې سهر کار ته اُووځي نو مازيگر واپس راځي بيا کور کې وي ، نو په کار ده چې د سړو صحت هم خراب شوې وی. لهذا دا خبره غلطه ده چې پَرده د ښځو د صحت د پاره نقصاني ده.

## اووم اعتراض : پَرده د ښځو د تعليم د پاره رُکاوټ (مانِع) دی

بعضې خلق دا اعتراض کوي چې : " پَرده د ښځو د تعليم د پاره رُکاوټ دی ، يعنی ددې په وجه ښځې د تعليم نه پاتې کيږي " .

ددې جواب دادی چې دا خبره غلطه ده چې پَرده د ښځو د تعليم د پاره مانِع ده؛ ځکه که مونږ په اسلامي تاريخ باندې نظر واچوو نو دا به راته معلومه شي چې د صحابه کرامو ، تابعينو او تبع تابعينو په ښځو کې لوي لوي عالِماني تيرې شوي ، بلکه لوي لوي کتابونه يې ليکلي چې په نن دَور کې هغه شان قابلې ښځې نشته ، حالانکه هغوی دا تعليم په پَرده کې حاصل کړې وُ ، پَرده د هغوی د تعليم د پاره مانِع نه شوه.

د ښځو د پاره چې د قرآن کريم او احاديثو کوم تعليم ضروري دی هغه په پَرده کې حاصلول ممکن دی ، او کوم تعليم چې ورله ضروري ندی د هغې د پاره پَرده پريخودل او هغه حاصلول پکار ندی.

بل دا چې د تعليم د پاره بې پَرده کيدل خو ضروري ندي ، بلکه د تعليم د پاره اصل شی ذِهني سکون ، يَکسُوئي ، او پوره توَجّه ده او دا په پَرده کې زياته وي.

لهذا د ښځو د پاره پَرده کول د تعليم د پاره مددگاره ده ، مانِع نده.

الله تعالى چې د سړو او ښځو جدا جدا صورتونه پيدا کړي نو دا ځکه چې د دوی د پاره يې ځانله ځانله کارونه متعيّن کړي : په ښځو باندې يې د رزق گټلو ذِمه داري نده ايخی ، بلکه ښځو ته يې د کور اِنتظام ، او د ماشومانو پَرورش سپارلی. او سړو ته يې د بهر کارونه او رزق گټل سپارلي دي.

اوس که چيرته سړو ته په کور کې کار اُوسپارل شي يا ښځو ته د بهر کار اُوسپارل شي نو ټول نِظام به برباد شي ، لهذا د فِطرت برقرار ساتلو د پاره دا ضروري ده چې سړي او

ښځې په خپل خپل میدان کې کار اوکړي.

د ښځو د پاره په دَفترونو او کارخانو کې د کار کولو ضرورت نشته ، سړي خو تر اُوسه کم ندي چې ښځې هم دې میدان ته رااُووتی.

لهذا کوم تعلیم چې د ښځو د پاره ضروري دی د هغې د پاره پَرده مانع نده ، هغه بغیر د بې پَردګۍ نه حاصیلیدې شي ، او کوم تعلیم چې ضروري ندی د هغې د پاره د بې پَردګۍ ضرورت نشته.

## اتم اعتراض : په پَردې کولو سره په ښځو کې بُزدلي پیدا کیږي

د پَردې مخالِفین یو اعتراض دا کوي چې :

" په پَردې کولو سره په ښځو کې بُزدِلي پیدا کیږي نو ځکه مونږ د ښځو پَرده نه خوښوو "

ددې **جواب** دادی : دا خو عجیبه خبره ده چې " په پَردې سره ښځه بُزدِله کیږي او په بې پَردګۍ سره بهادره کیږي ؟ "

حالانکه د بُزدلۍ چې کوم اَسباب دي هغه ټول په بې پَرده ښځو کې موجود دي ؛ ځکه بُزدِلي په هغه چا کې پیدا کیږي چې د هغه په زړه کې د الله ﷻ نه یَره نه وي ، ګناهونه کوي ، د الله ﷻ په ځای باندې بندګان خوشحالوي ، او په زړه کې یې د دُنیا محبت وي ، او دا ټول کارونه په بې پَرده ښځو کې وي نو ځکه بُزدلي به هم په همدوی کې وي . په حیاء دارو ښځو کې دا مذکوره کارونه ډیر کم وي نو ځکه بهادراني وي.

که مونږ خپل اسلامي تاریخ اوګورو نو دا به راته واضحه شي چې پَرده دارو ښځو داسې د بهادرۍ کارنامې کړي دي چې هغه د نن دَور بهادر سړي هم نشي کولی.

د حضرت اُمّ عمارة رضي الله عنها ، حضرت صفیه رضي الله عنها ، حضرت خَولة بنت آزور رضي الله عنها ، حضرت اُمّ اَبان رضي الله عنها ، او حضرت خَنساء رضي الله عنها د بهادرۍ د واقعاتو نه کتابونه ډک دي .(۱)

(۱) دا واقعات په تفصیل سره ددې (اصلاحي مدلّل تقریرونه) کتاب په دولسم جلد کې د صفحه ۷۵ نه تر صفحه ۸۲ پورې ذکر دي . ابوالشمس علي عنه.

## نهم اعتراض : د ښځو په پردې کولو سره د سړو حرص نور هم زياتيږي

يو اعتراض دا هم کولې شي چې :

" د ښځو په پردې کولو سره د سړو حرص نور هم زياتيږي ؛ ځکه دا قاعده ده :

اَلْاِنْسَانُ حَرِيْصٌ فِيْمَا مُنِعَ . ( انسان چې د څه شي نه منع کولې شي په هغې کې دده حرص زيات وي ) . نو ښځې دې کلاوَ مخ بهر آزادې پريخودې شي چې د سړو حرص ختم شي " .

ددې اعتراض دوه جوابونه درته کوم : يو اِلزامي ، او بل تحقيقي :

**اِلزامي جواب** دادی چې عام طور باندې خلق په دُنيا کې دوه شيان پټ ساتي :

يو مال و دولت ، او دويم ښځه .

نو مونږ تاسو ته وايو چې د مال و دولت په پټولو سره هم د غلو ( داکوانو ) حرص زياتيږي لهذا تاسو هم خپل مال و دولت بهر سړکونو ته رااُوباسئ ، په سړکونو باندې يې واچوئ چې د غلو دا حرص ختم شي .

خو که د مال په راويستلو باندې د غلو نه يريږئ او محفوظ يې ساتئ نو مونږ هم وايو چې د ښځو په بهر راوتلو کې ډير نقصان او غټه فتنه ده .

حديث کې راځي ، رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ . (۱)

ښځه په پَرده کې د اُوسيدو څيز دی ( يعنی لکه څرنګې چې عورت پټول په کار دي همدغه شان ښځه هم د غير مَحرَمو سړو د نظرونو نه محفوظ کيدل په کار دي ) ، کله چې دا د پَردې نه بهَر اُووځي نو شيطان يې د سړو په نظر کې ښائسته ښکاره کوي . ( چې په دې سره نور خلق په دې گمراه کوي او ښځه په خپله هم گمراه کيږي ) .

---

(۱) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ وقال الترمذي: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ . قال الالباني: صحيح . مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النَّظَرِ إِلَى الْمَخْطُوبَةِ وَبَيَانِ الْعَوْرَاتِ اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۱۰۹(۱۲) ، مصنف ابن ابي شيبة رقم ۷٦۱٦ ، كنزالعمال رقم الحديث ۴۵۰۴۵ ، صحيح الترغيب والترهيب كتاب الصلاة ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها رقم ۳۴٦(۷) .

**تحقیقي جواب** دادی چې ستاسو دا خبره چې ( اَلْاِنْسَانُ حَرِيْصٌ فِيْمَا مُنِعَ ) . دا په هله صحیح وه چې سړي د ښځو سره بلکل په هیڅ صورت نه ملاویدی حالانکه شریعت د نکاح په ذریعه باندې سړو ته د ښځو سره د ملاویدو اجازت ورکړې دی ، تر دې چې یو سړي ته یې د څلورو ښځو سره د نکاح کولو اجازت ورکړې دی ، لهذا اوس خو د سړو د حِرص هیڅ سوال نه پیدا کیږي .

## لسم اعتراض : ښځو ته د پَردې حکم کول ګویا ټولو سړو ته د شک په نظر کتل دي

د بې دِینه خلقو یو اعتراض په مونږ باندې دا هم دی چې :

" کله تاسو ښځو ته د پَردې حکم کوی ، نو ګویا تاسو ټولو سړو ته د شک په نظر باندې ګوری ، یعنی ستاسو په سړو باندې اعتماد نشته هر کس درته بَدکاره معلومیږي نو ځکه ښځو ته د پَردې حکم کوی " .

ددې خبرې **الزامي جواب** دادی چې که چیرته ستاسو دا خبره صحیح وي نو بیا خو تاسو دُکانونو ته د شپې تاله ( قُلف ) مه وراچوئ ؛ ځکه په دې سره خو ګویا تاسو ته ټول خلق داکوان معلومیږي ، بلکه همداسې کلاؤ یې پریږدئ .

همدارنګې چې کله تاسو موټر سائکل یا موټر په بازار کې اُودروئ نو تاله مه وراچوئ ځکه په تالې اچولو سره خو ګویا تاسو ته ټول خلق غله ( داکوان ) معلومیږي .

همدارنګې بیا خو څوکیداران مه نیسئ ځکه په دې سره خو ګویا تاسو ټولو خلقو ته د داکوانو په نظر ګوری .

همدارنګې بیا خو په معاشره کې پولیسو ته هیڅ ضرورت نه وُ ځکه د پولیسو وجود خو ستاسو په نزد دلیل ددې خبرې دی چې ټوله معاشره مجرمان او قاتِلان دي .

لهذا ستاسو دا خبره غلطه ده چې ښځو ته د پَردې حکم کولو په وجه سړو ته د شک په نظر کتل دي . بلکه پَرده د الله او رسول حکم دی بغیر د چُون و چرا به ښځې په دې باندې عمل کوي ، او په دې کې د ښځې د پاره ډیرې فائدې هم دي .

## يوولسم اعتراض : د ښځو په پَردې کولو سره د معاشرې حُسن ختمېږي

بعضې خلق دا اعتراض کوي چې :

" که ښځې پَرده شروع کړي او ښکاره مخ په بازارونو کې نه ګرځي نو په دې سره به د معاشرې حُسن ختم شي ، يا به سړي څه شي ته د کتلو په وجه خوَند حاصلوي ؟ "

ددې جواب دادی چې دا خبره هغه څوک کوي چې په هغه کې حياء او غېرت نه وي ، او د مغربي تهذيب نه متأثره وي ، ځکه په بې پَردګۍ سره خو د الله ﷻ لعنت راورېږي .

آيا مسلمان ته دا جائز دي چې د معمولي خوَند حاصلولو د پاره د قرآن کريم او احاديثو صريح احکامات د خپو لاندې کړي ؟ او ځان د الله تعالى د لعنت او غضب مستحق اوګرځوي ؟ هيڅ کله نه .

په چا کې چې معمولي حياء او غېرت وي هغه به هيڅ کله دا خوَښ نکړي چې دده لور او خور ته دې بل څوک په بَد نظر باندې اوګوري ، نو بيا دا څنګه د بل چا لور او خور ته په بَد نظر کتلو سره خوَند حاصلوي ؟

## دولسم اعتراض : زمونږ ښځې پاکې دي دوی ته د پَردې ضرورت نشته

بعضې خلق دا وايي چې : " زمونږ ښځو ته د پَردې ضرورت نشته ځکه دا پاکې دي ، دوی چې بهر ښکاره مخ ګرځي نو د دوی په زړونو کې د ګناه هيڅ خيال نه وي . همدارنګې زمونږ سړي هم پاک دي د دوی نه که دا ښځې پَرده نه کوي يا دوی ورته وَرګوري نو څه پَرواه نشته ځکه ددې سړو زړونه هم پاک دي " .

ددې شُبهې او دليل نه درته لس (۱۰) جوابونه کوم :

**اول جواب** : په قرآن کريم او احاديثو کې چې د پَردې کوم نصوص ذکر شوي هغه مطلق ذکر دي په هغې کې دا نشته چې ګنې د نېکې ښځې د پاره پَرده ضروري نده ، بلکه هرې ښځې ته دا حکم شوی چې د پرَدو سړو نه پَرده اوکړي ، او هر سړي ته د نظر ښکته ساتلو حکم شوی .

**دويم جواب** : د پَردې حکم د ټولو نه مخکې د نبي عليه السلام بيبيانو ته شوې ، د

هغوی پاک دامني د قرآن کريم په نص سره ثابته ده ، او په هغه وخت کې چې کوم صحابه کرام وو د هغوی په پاکدامنۍ باندې خو فرشتو هم رَشک کولو ، خو ليکن ددې باوجود بيا هم الله تعالى اَزواج مطهرات ته د پَردې حکم اوکړو .

پس معلومه شوه چې په پاک دَامن کيدو سره پَرده نه معاف کيږي ، او که چاته معاف کيدی نو اَزواجِ مُطهّرات به معاف شوي وو .

**دريم جواب** : که چيرته نېک خلق د پَردې نه مُستثنٰی شي نو بيا خو ستاسو په نزد په صحابه کرامو باندې لوي تُهمت راځي : " چې ( نَعُوْذُ بِالله ) صحابه کرام نېکان نه وو نو ځکه اَزواجِ مُطهّرات ته د هغوی نه د پَردې حکم شوې وُ " .

حالانکه د صحابه کرامو پاکدامني د قرآن کريم د آيتونو او صريحو آحاديثو نه ثابت ده .

**څلورم جواب** : که چيرته د نېکانو ښځو او نېکانو سړو د پاره د پَردې ضرورت نه وی نو بيا ولې الله تعالى د پَردې حکم کړلو ؟ په دې سره خو نَعوذُ بِالله د الله ﷻ حکم فضول کيږي ځکه چې ستاسو زړونه پاک وو او الله تعالى درته د پَردې حکم اوکړو . حالانکه د الله تعالى هيڅ حکم فضول ندی .

**پنځم جواب** : پَرده د الله تعالى حکم دی او بنده به د الله تعالى حکم بغير د چُون و چرا مني ، په دې کې خپل عقل جنګول صحيح ندی .

**شپږم جواب** : د ګناه نه معصوم صرف اَنبياء کرام دي نور خلق د ګناهونو نه معصوم ندي ، لهذا دا خبره کول : " چې زمونږ ښځې او زمونږ سړي پاک دي د دوی نه ګناه نه کيږي " دا غلطه ده .

**اووم جواب** : په حديث کې هم راځي ، رسولُ الله ﷺ فرمايي :

لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا كَانَ ثَالِثَهُمَا الشَّيْطَانُ . (۱)

(۱) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۱ قال الالباني : صحيح . و رقم الحديث ۲۱٦٥ أَبْوَابُ الْفِتَنِ بَابُ مَا جَاءَ فِي لُزُومِ الْجَمَاعَةِ ، مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النظر إِلَى الْمَخطوبة وَبَيَان العورات اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۱۱۸(۲۱) ، مسند احمد مخرجا رقم ۱۵٦۹٦ ، صحيح ابن حبان رقم ۵۵۸٦ ، المعجم الاوسط رقم ۲۹۲۹ ، الترغيب والترهيب لقوام السنة رقم ۹٦۱ ، مجمع الزوائد رقم ۹۱۳۱ .

چې کله هم سرې د پردې، ښځې سره ځانله شي نو هلته دریم خامخا شیطان وي.

تردې چې یو بزرګ فرمایي: که په یو ځای کې د حسن بصري رَحِمَهُ اللّٰهُ په شان لوي بزرګ او د رابعه بصریه په شان لویه بزرګه ځانله کیني او د دوی په مینځ کې د زنانه مَحرَم نه وي نو شیطان به دوی هم په بدکارۍ کې مبتلاء کړي. (۱)

بل دا چې که اول د ښځې او سړي زړه پاک وي خو چې بې پردګي شروع شي نو په قلار قلار یې د یو بل سره عِشق پیدا شي، او آخر په ګناه کې مبتلاء شي.

**اَتم جواب**: په معاشره کې ډیرې داسې ښځې شته چې هغوی ځان ته پاک دامنې وایي او نور خلق یې هم پاک دامنې ګڼړي خو چې کله یې بې پردګي شروع کړی نو د شیطاني وَسوسو په وجه ورنه داسې واقعات صادر شوي چې د ټول خاندان د پاره د ذِلّت او رَسوایۍ سبب ګرځیدلي. او داسې واقعات خلق روزانه په خپلو سترګو باندې ویني.

**نهم جواب**: کوم کس چې ځان پخپله پاکدامن ګڼړي او په دې باندې دومره مغروره وي چې د شرعي احکاماتو (لکه پَرده وغیره) لحاظ نه ساتي نو داسې کس الله تعالی ددې تکبّر په وجه ذلیله کوي.

**لسم جواب**: کومه ښځه یا سړې چې ځان ته پاکدامن وایي او بیا شرعي پَرده نه کوي نو داسې کس د ګناهِ کبیره کولو په وجه فاسق دی، او فاسق سړې کله پاکدامن کیدې شي؟

لهذا د ښځو د پاره د پردو سړو نه پَرده ضروري ده.

## دیارلسم اعتراض: مونږ د زړه پَرده کوو

بعضې ښځې دا وایي چې:

" مونږ د زړه پَرده کوو، یعنی د پَردې اصل مقصد حیاء او د زړه پاکوالې دی او زمونږ زړونه صفا دي، په سترګو کې مو حیاء شته نو لهذا مونږ ته د پَردې ضرورت نشته "

ددې اعتراض درته پنځه جوابونه کوم:

**اول جواب** دادی چې په قرآن کریم کې ازواج مطهّرات ته د پَردې حکم شوې ؤ، نو آیا د هغوی زړونه صفا نه وو؟ آیا د هغوی په سترګو کې حیاء نه وه؟ ضرور وه خو بیا هم

(۱) شرعي پرده لمولانا مفتي رشید احمد صاحب ص ۲٦.

شریعت ورته د پَردې حکم کړې وُ .

په قرآن کریم او احادیثو کې هیچرته دا نشته چې کله زړه صفا وي یا د پَردې ضرورت نشته ، بلکې د ښځې د بلوغ نه پس دیته د پرَدو سړو نه د پَردې حکم شوی .

**دویم جواب** دادی چې دا خبره صحیح ده "چې د پَردې اصل مقصد حیاء او د زړه صفا والې دی" خو ورسره ورسره دا ظاهري پَرده هُم ضروري ده .

لکه څرنګې چې د روژې اصل مقصد تقوی ده خو ورسره ورسره د روژې نیول هم ضروري دي ، همدارنګې د مونځ ، زکوة ، او حج اصل مقصد حاصلولو سره سره دا ظاهري عبادات کول هم ضروري دي .

اوس که څوک دا اُووايي چې زه تقوی ځانته په بله طریقه حاصلوم او روژه نیسم نو آیا دده دا خبره به صحیح وي ؟ هیڅ کله نه ، هر کس به ورته وایي چې د تقوی سره سره روژه نیول هم ضروري ده ، همدغه شان د حیاء او زړه صفا والي سره سره دا ظاهري پَرده هم ضروري ده .

**دریم جواب** دادی چې دا د زړه پَرده خو عجیبه پَرده ده ، ځکه یو طرف ته دوی وایي چې زمونږ زړونه صفا دي او په سترګو کې مو حیاء ده ، خو بل طرف ته یې مخ ، سَر او سینې ښکاره کړي وي ، پرَدو سړو ته نیغ نیغ ګوري ، د هغوی په مخ کې ګډیږي ، نو آیا دا د زړه صفائي ده ؟ په خُله باندې دعوی د زړه د پاکوالي کوي او کارونه د بې شَرمۍ کوي .

**څلورم جواب** دادی چې که بِالفرض مونږ دا اُومنو چې د دوی زړونه صفا دي نو چې کله دوی په نرۍ کپړو کې ښکاره مخ ، کلاؤ سِینې ، سِینګار کړې بهر بازار ته رااُوځي ، نو آیا سړي به دوی ته په کتلو سره په فِتنه کې نه مبتلاء کیږي ؟ آیا سړي به د سترګو په زِنا کې نه مبتلاء کیږي ؟ آیا معاشره به نه بې حیاء کیږي ؟ ضرور به دا کارونه کیږي .

د زړه د پَردې خبره شیطاني دُهوکه ده ، دا خبره هغه ښځو ایجاد کړې چې د هغوی د پَردې نه نفرت وي ، په دې بهانه باندې ځانته د بې پَردګۍ جواز پیدا کوي .

**پنځم جواب** دادی چې کله ستاسو زړونه صفا دي نو بیا خو د کپړو ضرورت هم نشته دا هم اُوباسئ او بَربنډې ګرځئ ، چې عقل مو ځای ته راشي .

# څوارلسم اعتراض : صحابياتو به د نبي عليه السلام سره په جُمات كې د جَمعې مونځ كولو

بعضې خلق د پرَدې زَنانه مخ ته كتلو جواز د پاره دا دليل پيش كوي چې :

" صحابياتو به د نبي عليه السلام سره په جُمات كې د جَمعې مونځ كولو ، او دا ممكن ده چې سرو به د ښځو مخونه هم ليدلي وي " .

ددې **جواب** دادى چې د صحابه كرامو مخونه به قبلې طرف ته وو ، او ښځې به شاته په صفونو كې ناستې وى .

او په بخاري شريف كې دا حديث شته چې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم دا ترتيب مقرر كړې وُ چې كله به يې سلام اوګرځول نو په خپل ځاى به ناست وُ او صحابه كرام رضي الله عنهم به هم په خپلو ځايونو باندې د لږ وخت د پاره ناست وو ، په دې وخت كې به زَنانه خپلو كورونو ته لاړى ، نو بيا به نبي عليه السلام او صحابه كرام پاڅيدل . (۱)

بل دا چې نبي عليه السلام خو د زَنانه وُ د پاره جُمات ته د راتَنوتلو خاص دَروازه مقرر كړې وه چې په هغې به صرف زَنانه راتللى ، سړي به په هغې نه راتلل . (۲)

پس معلومه شوه چې د صحابه كرامود زَنانه وُ سره اختلاط نه وُ راغلى ، نو مخونو ته به يې ورله څنګه كتلي وى ؟

---

(۱) عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ : إِنَّ النِّسَاءَ فِي عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ إِذَا سَلَّمْنَ مِنَ الْمَكْتُوْبَةِ قُمْنَ وَثَبَتَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ صَلَّى مِنَ الرِّجَالِ مَا شَاءَ اللهُ . فَإِذَا قَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ الرِّجَالُ . صحيح البخاري كِتَابُ الأَذَانِ بَابُ خُرُوْجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِاللَّيْلِ وَالْغَلَسِ رقم الحديث ۸٦٦ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲٦٦۸۸ ، سنن النسائي رقم الحديث ۱۳۳۳ ، مشكوة المصابيح كتاب الصَّلاة بَابُ الدُّعَاءِ فِي التَّشَهُّدِ الفَصْلُ الأول رقم الحديث ۹۴۸(۱۰) .

(۲) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا بَنَى الْمَسْجِدَ جَعَلَ بَابًا لِلنِّسَاءِ . وَ قَالَ : « لَا يَلِجَنَّ مِنْ هٰذَا الْبَابِ مِنَ الرِّجَالِ أَحَدٌ » قَالَ نَافِعٌ : فَمَا رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا دَاخِلًا مِنْ ذٰلِكَ الْبَابِ وَلَا خَارِجًا مِنْهُ . مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۱۹۳۸ وَمَا رَوَى نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ .

## پنځلسم اعتراض : فلانکې کس د مونږ سره ورو کې راغټ شوی ، يا هغه زمونږ د پلار په ځای دی نو د هغه نه د پردې ضرورت نشته

بعضې ښځې دا وايي چې : "" دا لېوَر ( د خاوند ورور ) خو د ما سره وړوکې راغټ شوی دا خو زما د ځوي په ځای دی نو دده نه د پَردې ضرورت نشته .

يا : فلانکې کس خو زمونږ د پلار په ځای دی د هغه نه د پَردې ضرورت نشته .

همدارنګې بعضې سړي هم دا وايي چې فلانکۍ جينۍ خو زما د لور په ځای ده ، که هغه د ما نه پَرده اونکړي نو دا خېر دی "" .

ددې **جواب** دادی چې دا د جهالت خبرې دي ، داسې خبرې هغه څوک کوي چې د ګناهونو په وجه د هغه عقل مَسخ شوې وي ، او عقل يې پوره کار نه کوي .

آيا نبي عليه السلام د ټول اُمت د ښځو د پاره د پلار په شان نهٔ ؟ نو بيا ولې مسلمانانو ښځو ورنه پَرده کوله ؟ يا ولې نبي عليه السلام د پَردې په باره کې دومره تاکيدي احکامات بيانول ؟

دا ښځې دومره سوچ نه کوي چې د چا سره نکاح کيدې شي د هغه نه پَرده ضروري ده ، لېوَر که د ښځې سره وروکې راغټ شي خو بيا هم ددې ښځې ورسره نکاح جائز ده ، نو پَرده ورنه هم ضروري ده .

او که يوه زَنانه دا وايي چې " فلانکې کس زما د پلار ځای دی " نو په دې سره هم پَرده نه معاف کيږي ؛ ځکه که په دې سره پَرده معاف کيدی نو بيا خو به د پَردې حکم مکمل ختم شي ؛ ځکه هره ښځه به د ځان نه مشر کس په باره کې دا وايي چې : دده نه پَرده نه کوم ځکه دا زما د پلار په ځای دی .

د کشر کس په باره کې به دا وايي چې : دده نه پَرده نه کوم ځکه دا زما د ځوي په ځای دی .

د هَمزولي کس په باره کې به دا وايي چې : دده نه پَرده نه کوم ځکه دا زما د ورور په ځای دی . نو دا به آخر د چا نه پَرده کوي ؟

همدارنګې بيا به سړو ته هم بهانه جوړه شي ، سړې به د مشرې ښځې په باره کې دا وايي چې دا زما د مور په ځای ده ، د کشرې ښځې په باره کې به دا وايي چې دا زما د لور په ځای

ده ، او د همزولې ښځې په باره کې به دا وايي چې دا زما د خور په ځای ده ، ځکه ورسره زړه وَر مِلاوېږم . لهذا په داسې وَهمي خبرو باندې د پَردې صریح احکامات پرېښودل جائز ندي . (نوټ : ددې مسئلې پوره تشریح روستو په فقهي مسائلو کې راروانه ده . ابوالشمس علي عنه)

## شپاړسم اعتراض : ډیر عُمر مو د فلانکي کس نه پَرده نده کړې نو اوس د پَردې فائده نشته

بعضې ښځې دا وايي چې: " مونږ د فلانکي کس نه ډیر عُمر پَرده نده کړې هغه مونږ ښه پیژني نو د هغه نه د پَردې کولو هیڅ فائده نشته " .

یا بعضې ښځې دا وايي چې : " مونږ د فلانکي کس نه په ځوانۍ کې پَرده نده کړې نو اوس په بُودا والي کې ورنه د پَردې هیڅ فائده نشته " .

ددې **جواب** دادی چې که یو کس ډیر عُمر گناه اوکړي نو په دې سره خو ده ته دا گناه نه جائز کیږي ، بلکه اوس هم ورته حرامه ده .

همدغه شان که یوې ښځې ډیر عُمر د بې پَردگۍ گناه کړې وي نو په دې سره خو دیته بې پَردگي نه جائز کیږي ، بلکې په دې باندې دا فرض دي چې د الله ﷻ د وړاندې زَر توبه اُوباسي ، او آئنده د بې پَردگۍ نه ځان اُوساتي .

که یو کس ډیر عُمر مونځونه نه وي کړي او اوس دا وايي چې :

" ما خو ډیر عُمر مونځونه ندي کړي اوس د مونځ کولو څه فائده نشته "

نو لکه څرنگې چې دده دا خبره غلطه ده همدغه شان د هغه ښځو خبره هم غلطه ده چې هغوی وايي چې " مونږ ډیر عُمر پَرده نده کړې اوس د پَردې څه فائده نشته " . بلکه اوس هم پَرده ضرروي ده . (۱)

## اوولسم اعتراض : فلانکي کس څو پېرۍ زه ناڅاپه لیدلې یم نو اوس د هغه نه د پَردې ضرورت نشته

بعضې ښځې دا وايي چې :

---

(۱) فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۹۱ پردہ کا ثبوت اور اس کا وجوب .

" فلانکي کس څو پېرې زه ناڅاپه ليدلې يم نو اوس د هغه نه د پَردې ضرورت نشته "

ددې **جواب** دادی چې ناڅاپه په ښځه باندې نظر پرېوتلو نه پس هيڅ کله ښځې ته قصدًا د بې پَردګۍ ګناه کولو اجازت نشته.

مخکې ذکر شو چې که يوه زَنانه ټول عُمر د بې پَردګۍ ګناه اوکړي خو بيا هم ديته بې پَردګۍ نه جائز کيږي ، نو ناڅاپه په ښځه باندې نظر پرېوتلو سره به څنګه ديته بې پَردګي جائز شي ؟

## اتلسم اعتراض : په شريک کور کې پَرده کول مشکل ده

بعضې خلق دا وايي چې :

" مونږ څو ورونړه او د تره ځامن په يو کور کې شريک اُوسيږو، د ځانله ځانله کور وَس مو نشته، او په شريک کور کې پَرده کول ډيره ګرانه ده ؛ ځکه هر وخت سرې ځي او راځي ".

ددې **جواب** دادی چې که د چا ځانله کور په وَس کې نه وي نو بيا هم په شريک کور کې پَرده کول ممکن ده ، ځکه سړې چې کور ته راننوځي نو ناڅاپه دې نه راداخليږي بلکې د راتللو په وخت دې ټوخې وغيره اوکړي ددې د پاره چې زَنانه پَرده اوکړي :

يعنی زَنانه دې يوې څنډې ته شي ، يا دې خپل مخ بل طرف ته واړوي ، يا دې په مخ باندې لوپټه راواچوي.

زَنانه دې په شريک کور کې حتّی الوَسع د بې پَردګۍ نه ځان ساتي ، بِلا ضرورته دې د غير مَحرَمو سړو سره خبرې نه کوي ، ګپ شپ او خندګانې دې ورسره نه کوي ، ځانله دې ورسره نه کيني ، په لِباس کې دې احتياط کوي ، او په لوپټه دې د سَرپټولو کوشش کوي.

اوس که د ډير اِحتياط باوجود په دې باندې بې اِختياره د غير مَحرَمو سړو نظر اولږي نو دا معاف دی.

همدارنګې که د ډير اِحتياط باوجود په شريک کور کې د مخ پټول مشکل وو نو بيا که مخ او لاسونه ښکاره وي نو دا خبر دی ، خو نور بدن ( ويښتان ، او سينې وغيره ) به پټ ساتي.

## نورلسم اعتراض : په دِين کې آساني ده

بعضې خلق دا اعتراض کوي چې د قرآن کريم د ډيرو آيتونو او صريحو اَحاديثو نه

معلومیږي چې په دِین کې آساني ده ، سختي نشته ، او پَرده کول زمونږ د پاره سخته ده نو ځکه یې نه کوو .

ددې **جواب** دادی چې په دِین کې د آسانۍ مطلب دادی چې انسان به په ځان باندې قصدًا داسې عبادات نه لازموي چې بیا د هغې طاقت نشي لرلی ، ځکه انسان د خپل طاقت موافق مکلف دی .

او کوم عبادات چې شریعت په انسان باندې لازم کړي دي لکه پَرده وغیره نو د هغې کول لازمي دي ، ځکه الله تعالی هیڅ کله په بندګانو باندې داسې حُکم ندې فرض کړی چې دوی د هغې طاقت نشي لرلی ، بلکې کوم حکم چې الله تعالی فرض کړی خامخا روغ انسان د هغې طاقت لرلې شي .

لهذا د پَردې په باره کې دا خبره کول چې " دا زمونږ د طاقت نه بهر ده " دا شیطاني دُهوکه ده .

او که مونږ د آسانۍ پسې روان شو نو بیا خو به څوک مونځ ، روژه ، زکوة ، حج او نور عبادات هم نه کوي او بهانه به دا جوړوي چې په دِین کې آساني ده او دا عبادات کول مونږ ته سخت دي .

لکه څرنګې چې په نورو عباداتو کې دا بهانه جوړول صحیح نده نو همدغه شان د پَردې په باره کې هم دا بهانه جوړول صحیح نده .

## شلم اعتراض : په پَرده کې پیچیدګي ده

بعضې ښځې دا وایي چې مونږ پَرده ځکه نه کوو چې په دې کې ډیرې پیچیدګیانې دي ، په دې سره مونږ ته ډیر مشکلات رامخې ته کیږي .

ددې **جواب** دادی چې د پَردې حکم خو الله تعالی ورکړی :

﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى ﴾ .(۱)

ترجمه : او تاسو په کورونو کې اُوسئ ، او د رومبي جاهلیت ( د زمانې ) په شان ښائست مه ښکاره کوئ .

---

(۱) الاحزاب آية ۳۳ .

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ يُدۡنِينَ عَلَيۡهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّ ﴾ . (۱)

ترجمه: اې پیغمبره ! ته خپلو بیبیانو ، خپلو لورانو او مؤمنانو زَنانهٔ ته اُووایه چې (د کور نه د څه ضرور کار پسې د وتلو په وخت) خپل لوې څادرونه په ځان باندې راښکته کړي.

همدارنګې نبي ﷺ هم په خپلو بې شماره احادیثو کې زَنانهٔ ته د پَردې حکم کړی. (۲)

بیا صحابیاتو او د مسلمانانو بیبیانو هم په دې باندې پوره عمل کړی.

نو که چیرته په پَرده کې پیچیدګیانې وی نو بیا ولې الله ﷻ او رسولُ الله ﷺ د پَردې حکم کولو ، آیا دوی ته په دې کې پیچیدګیانې نهٔ معلومیدی ؟

که یقیني په پَرده باندې عمل کول ګران وی نو بیا په کار ده چې صحابیاتو او د مسلمانانو پاکیزه ښځو هم په دې باندې عمل نه وې کړی ، حالانکه دوی په پَرده باندې پوره عمل کړې وُ . لهذا څوک چې دا خبره کوي چې په پَرده کې پیچیدګیانې دي او په دې عمل کول ګران دي نو دا یو قِسم په الله او رسول باندې اعتراض کوي.

## یوویشتم اعتراض : بعضې ښځې داوایي چې " سرې د مونږ نه ولې پَرده نه کوي ؟ "

بعضې ښځې دا وایي : "چې کله مونږ د خپلو رِشته دارو (خپلوانو) کره لاړې شو نو د هغوی سرې د مونږ نه پَرده نه کوي ، نو ځکه مونږ هم ورنه پَرده نه کوو " .

ددې **جواب** دادی چې پَرده په ښځه باندې فرض ده ، په سړي باندې فرض نده ، ښځه به خپل کوشش کوي چې پَرده اوکړي.

په داسې موقعو کې به ښځه خپل نظر ښکته ساتي ، بِلاضرورت به د غیر مَحرَمو سره خبرې نه کوي ، او د هغه ځای د ښځو د وړاندې دې د پَردې اَهمیت واضح کړي چې هغوی په دې خبرې شي چې دا ښځه بې پَردګي نه خوښوي ، نو آئنده به د هغه کور سړي ددې مخې ته نه راځي.

---

(۱) الاحزاب آية ۵۹.

(۲) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ . سنن الترمذي أبواب الرضاع باب ما جاء في كراهية الدخول على المغيبات رقم الحديث ۱۱۷۳ وقال الترمذي: هٰذا حديث حسن صحيح غريب.

## دوه ویشتم اعتراض : بعضې علماء پَرده نه کوي

بعضې خلق د بې پَردګۍ د جواز د پاره دا دلیل پیش کوي چې :

" مونږ بعضې علماء لیدلي چې هغوی پَرده نه کوي ، د پَردې ښځې سره لاس ملاوَوي او د هغوی سره د تي وي په پروګرامونو کې ځانله ناست وي "

ددې **جواب** دادی چې پَرده د الله او رسول حکم دی ، ددې منل لازمي دي ، د الله او رسول د حکم خلاف د بل هیچا عمل حُجت ندی ، که عالِم یا بل څوک ناجائز کار اوکړي نو په دې سره خو دا کار نه جائز کیږي .

د پردۍ ځوانې ښځې سره لاس ملاوول حرام . (۱)

همدارنګې د هغې سره ځانله کیناستل هم حرام دي . (۲)

دا خو دُنیا ده ، هر قِسمه خلق په کې پیدا کیږي ، که څوک ناجائز کار اوکړي هغه زمونږ د پاره دلیل ندی ، بلکه زمونږ د پاره دلیل قرآن و سنت او ددینه مستبط شوي احکام دي .

## درویشتم اعتراض : په پَردې کولو سره خلق پیغورونه راکوي

بعضې خلق دا وایي چې مونږ په خپلو ښځو باندې ددې د وجې پَرده نه کوو چې بیا به اهلِ مغرب واله د مونږ پسې پروپیګنډې کوي او دا پیغورونه به راکوي چې :

مسلمانان د ښځو سره ظلم کوي ، په کورونو کې یې قید کړي دي ، بهر ته را وتلو په وخت

---

(۱) وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَمَسَّ وَجْهَهَا، وَلَا كَفَّهَا، وَإِنْ كَانَ يَأْمَنُ الشَّهْوَةَ وَهَذَا إِذَا كَانَتْ شَابَّةً تُشْتَهَى . الفتاوى الهندية ج ٥ ص ٣٢٩ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ البَابُ الثَّامِنُ فِيمَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَيْهِ وَمَا لَا يَحِلُّ لَهُ .

وَلَا تَمَسُّ شَيْئًا مِنْهُ إِذَا كَانَ أَحَدُهُمَا شَابًّا فِي حَدِّ الشَّهْوَةِ وَإِنْ أَمِنَا عَلَى أَنْفُسِهِمَا الشَّهْوَةَ . . الفتاوى الهندية ج ٥ ص ٣٢٧ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ البَابُ الثَّامِنُ فِيمَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَيْهِ وَمَا لَا يَحِلُّ لَهُ .

(٢) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا مَعَ ذِي مَحْرَمٍ ... صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا ذُو مَحْرَمٍ، وَالدُّخُولُ عَلَى الْمُغِيبَةِ رقم الحديث ٥٢٣٣ ، صحيح مسلم كِتَابُ الْحَجِّ بَابُ سَفَرِ الْمَرْأَةِ مَعَ مَحْرَمٍ إِلَى حَجٍّ وَغَيْرِهِ رقم الحديث ٤٢٤ (١٣٤١) .

اَلْخَلْوَةُ بِالْأَجْنَبِيَّةِ حَرَامٌ . الدرالمختار ج ٦ ص ٣٦٨ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ . الاشباه والنظائر ص ١٥٩ كتاب الحظر والاباحة ، مجمع الانهر على هامش المجمع ج ٣ ص ٢٠٣ كتاب الكراهية فصل في النظر ونحوه .

يې د کارټون په شان په برقع کې پټې کړې وي .

ددې **جواب** دادی چې د پردې حکم الله تعالی په قرآن کريم کې نازل کړې دی ، رسول الله ﷺ په خپلو احاديثو مبارکه وُ کې په تفصيل سره بيان کړې دی ، بيا ازواجِ مُطهّرات او صحابياتو په دې باندې پوره عمل کړې دی .

نو چې د چا دا ايمان او يقين وي چې شريعت مونږ ته څه بيان کړي دي دا برحق دي ، او په همدې کې زمونږ د دوارو جهانو خير دی ، نو داسې کس هيڅ کله د غير مُسلمو د پروپيګنډو او پيغورونو پَرواه نه ساتي .

د پيغورونو نه خو انبياء کرام هم خلاص نه وو : چا به ورته ويل چې دا ليونيان دي ، چا به ورته ويل چې دا ساحران دي ، چا به ورته ويل چې دا ډير پَسمانده خلق دي ، چا به ورته ويل چې دا مونږ د ژوند د راحتونو نه محروم کوي ، او نور مختلف قِسمه پيغورونه به يې ورکول .

نو چې کله پيغمبرانو ته پيغورونه ورکړل شوي نو مونږ مسلمانان خو د هغوی وارثان يو مونږ ته به هم خامخا دا راکولې شي ، خو مونږ به د شريعت دا ښائسته احکامات د خلقو د پيغورونو په وجه نه پرېږدو .

که چيرته بِالفرض مونږ د اهلِ مغرب د پروپيګنډو نه ځان بچ کولو د پاره د ښځو پَرده ختمه کړو او د هغوی په شان ښځې د کورونو نه راوباسو نو بيا په هم هغوی د مسلمانانو پسې همدا پروپيګنډې کوي ، او همدغه شان سپک به ورته ګوري ، نو څه فائده يې اوکړه ؟

لهذا د غير مُسلمو د پيغورونو هيڅ پَرواه نده پکار .

## که نن کافران د مسلمانانو پسې خاندي نو د قيامت په ورځ به مسلمانان د کافرانو پسې خاندي

مسلمانان دې په زړه کې دا پُوخ عزم اوکړي چې که څوک د مونږ پسې پروپيګنډې کوي يا پيغورونه راکوي نو مونږ به ددې هيڅ پَرواه نه ساتو ، بلکې زمونږ د پاره د الله او رسول حکم ډير اَهم دی .

که نن کافران د مسلمانانو پسې خاندي او مَسخرې ورپسې کوي نو د قيامت په ورځ به

همدا مسلمانان د کافرانو پسې خاندي. الله تعالی به د قیامت په ورځ اُوفرمایي :

﴿ إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ ۞ وَإِذَا مَرُّوا بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ ۞ وَإِذَا انْقَلَبُوا إِلَىٰ أَهْلِهِمُ انْقَلَبُوا فَكِهِينَ ۞ وَإِذَا رَأَوْهُمْ قَالُوا إِنَّ هَٰؤُلَاءِ لَضَالُّونَ ۞ وَمَا أُرْسِلُوا عَلَيْهِمْ حَافِظِينَ ۞ فَالْيَوْمَ الَّذِينَ آمَنُوا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُونَ ۞ عَلَى الْأَرَائِكِ يَنْظُرُونَ ﴾ . (۱)

ترجمه : بیشکه څوک چې مُجرمان دي دوی به په (دُنیا کې) په مؤمنانو پورې خندا کوله ، او کله به چې دوی په مسلمانانو باندې تیریدل نو یو بل ته به یې سترګې وهلی ، او کله به چې دا مُجرمان خپلو کورونو ته واپس تلل نو خوشحاله به تلل (یعنی په دې وخت کې به یې هم د مسلمانانو پورې ټوقې کولی) ، او کله به چې دوی مسلمانان اُولیدل نو دا به یې ویل چې همدا خلق ګمراه دي ، حالانکه دوی په مسلمانانو باندې نِګرانان نه وو رالیږل شوي ، پس نن (د قیامت په ورځ) به مؤمنان د کافرانو پسې خندا کوي ، په تختونو باندې به ناست وي ګوري به چې آیا کافرانو ته د خپلو عمَلونو بَدله ورکړې شوه ؟ (او که نه ؟)

# عزت په اسلام کې دی

په دې خبره باندې ځان پوهه کړئ چې د مسلمانانو عزت په اسلامي احکاماتو باندې عمل کولو کې دی ، که دوی په بل شي کې عزت لټوي نو الله تعالی به یې رَسوا کړي .

حضرت عُمر ﷺ په یوه موقع اوفرمایل :

إِنَّا كُنَّا أَذَلَّ قَوْمٍ فَأَعَزَّنَا اللهُ بِالْإِسْلَامِ فَمَهْمَا نَطْلُبُ الْعِزَّةَ بِغَيْرِ مَا أَعَزَّنَا اللهُ بِهِ أَذَلَّنَا اللهُ . (۲)

(۱) المطففين آية ۲۹ تا ۳۵ .

(۲) المستدرک على الصحيحين للحاكم كِتَابُ الإِيمَانِ رقم الحديث ۲۰۷. وقال الحاكم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . ووافقه الذهبي . شعب الايمان رقم ۷۸۴۷ حسن الخلق ، الترغيب والترهيب رقم ۲۸۹۳ (۴) كتاب الأدب وغيره الترغيب في التواضع والترهيب من الكبر والعجب والافتخار .

وفي رواية : إِنَّا قَوْمٌ أَعَزَّنَا اللهُ بِالْإِسْلَامِ ، فَلَنْ نَبْتَغِيَ الْعِزَّةَ بِغَيْرِهِ . المستدرک على الصحيحين للحاكم كِتَابُ الإِيمَانِ رقم الحديث ۲۰۸ ، الزهد لهناد بن السري ۴۱۷/۲ بَابُ التَّوَاضُعِ .

مونږ خو ډير ذليل قوم وو ، پس الله تعالى مونږ ته د اسلام په وجه عزت راکړو ، اوس چې الله تعالى مونږ ته د څه شي په وجه عزت راکړى که چيرته مونږ د هغې نه علاوه په بل شي سره عزت طلب کړو نو الله تعالى به مونږ ذليل کړي.

نن صبا چې مسلمانان ورځ په ورځ ذليله کيږي نو دا ځکه چې دوى خپل اسلامي احکامات پريښي او د غير مُسلمو اِتباع کوي.

## الله تعالى چې د کوم کار حُکم کړى ضرور به په هغې کې ډيرې فائدې وي

اَلْحَمْدُلِلّٰه ، مونږ مسلمانان يو ، زمونږ دا عقيده ده چې سړي او ښځې دواړه الله تعالى پيدا کړي ، الله ﷻ حکيم ذات دى مسلمانانو ته چې د څه حُکم کوي ضرور به پدې کې ډير حِکمتونه وي ، او د کوم کار نه يې چې منع کوي نو ضرور به په دې کې ډير نقصانات وي.

اوس الله تعالى ښځو ته د پَردې حکم کړى نو ضرور به په دې کې د ښځې د پاره ډيرې فائدې وي ، او چې د بې پَردګۍ نه يې منع کړي نو ضرور به په دې کې د ښځو د پاره ډير نقصانات وي.

## مسلمانان به د الله ﷻ د حُکم په مقابله کې د بل هيچا پَرواه نه ساتي

د مسلمان شان دادى چې دا به د الله تعالى هر حُکم بغير د چُون و چرا مني ، د الله ﷻ د حُکم په مقابله کې به د بل هيچا پَرواه نه ساتي.

که غير مُسلمه يا د هغوى د تهذيب نه متأثره خلق په پَرده باندې هر څومره اعتراضات اوکړي : (که دوى پَرده د مُليانو اِيجاد ګنړي ، که دا په ښځو باندې ظلم ګنړي ، که دا د ښځو د صِحت د پاره نقصاني ګنړي ، که دا د مُلک د ترقۍ د پاره مانِع ګنړي ) خو مسلمانان به ددې خبرو هيڅ پَرواه نه ساتي.

که مسلمان دا کلک عزم اوکړي چې که په اسلامي حُکم باندې عمل کولو سره ټوله دُنيا زما مخالِف کيږي او ټول رشته دار رانه خفه کيږي خو زما هيڅ پَرواه نشته ، زه به ضرور د الله ﷻ حکم پوره کوم نو داسې مسلمان به په هر ځاى کې کامياب وي.

## د پَردې مخالفت بې غیرته خلق کوي

په معاشره کې د پَردې مخالفت صرف هغه بې غيرته او بې حياء خلق کوي چې هغوی په خپلو ښځو باندې قناعت نه کوي بلکه د نورو پسې ګرځي ، اوس که چيرته ښځې په پَرده کې شي نو بيا خو د داسې خلقو مقصد نه پوره کيږي .

داسې بې غيرته خلق په خپل کور کې خپلې ښځې او خپلو لورانو ته د پَردې هم نشي ويلې ؛ ځکه که ورته اُووايي نو سمدستي ورته هغوی په جواب کې وايي چې :

" ته خپله مزې کوې او مونږ منع کوې ؟ "

همدارنګې هغه ښځې هم د پَردې مخالفت کوي چې هغوی په دې ناجائزو کارونو باندې اَموخته شوې وي . او په چا کې چې اسلام ، حياء ، او غيرت وي نو هغوی به هيڅ کله د پَردې مخالفت اونکړي ، هغوی په خپله هم ځان د ناجائزو کارونو نه ساتي او خپل کور واله هم د بې پَرده ګۍ نه منع کوي .

## دَيوث سړی به جنت ته نه داخليږي

څوک چې د خپلې ښځې بې حيايي ګوري او دا ددې هيڅ پَرواه نه کوي او نه يې منع کوي نو داسې کس ته په احاديثو کې دَيوث ويل شوی ، مونږ پښتانه ورته دَوُوث وايو ، د داسې کس د پاره په احاديثو کې سختې سزاګانې ذکر شوی .

رسولُ الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

ثَلَاثَةٌ لَا يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ أَبَدًا: اَلدَّيُّوْثُ مِنَ الرِّجَالِ. وَالرَّجُلَةُ مِنَ النِّسَاءِ. وَمُدْمِنُ الْخَمْرِ.

درې (۳) کسان به هيڅ کله جنت ته داخل نشي : يو په سړو کې دَيوث ، دويم هغه ښځه چې د سړو په شان شکل جوړوي ، او دريم هميشه شراب څکونکی .

صحابه کرامو عرض اوکړو : اې د الله رسوله ! مُدْمِنُ الْخَمْر (هميشه شراب څکونکې) خو مونږ پيژنو خو په سړو کې دا دَيوث څوک دی ؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : اَلَّذِيْ لَا يُبَالِيْ مَنْ دَخَلَ عَلٰى أَهْلِهِ .

ديوث هغه کس دی چې دا پَرواه نه کوي چې دده د کور ښځو ته څوک راغی او څوک

لاړ ... (۱)

ددې حديث نه معلومه شوه چې كوم كس دَوُوث وي يعنى دا پَرواه نه ساتي چې دده ښځې ته څوک راغى او څوک لاړ ، او د ښځو په باره كې په ده كې غيرت نه وي نو داسې كس به جنت ته نه داخليږي . (۲)

## الله تعالى د بې غيرته دَيُوث سړي عبادت نه قبلوي

الله تعالى سړې دكور نگران مقرر كړى چې دا به د ښځو حفاظت كوي ، اوس چې د كوم دَيوث سړي كوروالـه ته پردي خلق راځي او دا يې نه منع كوي نو الله تعالى د داسې بې غيرته دَوُوث سړي هيڅ عبادت نه قبلوي .

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوفرمايل : لَا يَقْبَلُ اللهُ مِنَ الصُّقُوْرِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَرْفًا وَلَا عَدْلًا .

الله تعالى به د قيامت په ورځ د صُقُوْر (دَيوث سړي) فرض او نفل عبادت قبول نكړي

(۱) عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ رضي الله عنه عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : " ثَلَاثَةٌ لَا يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ . أَبَدًا: اَلدَّيُّوْثُ مِنَ الرِّجَالِ ، وَالرَّجُلَةُ مِنَ النِّسَاءِ ، وَمُدْمِنُ الْخَمْرِ ". فَقَالُوْا: يَا رَسُوْلَ اللهِ أَمَّا مُدْمِنُ الْخَمْرِ فَقَدْ عَرَفْنَاهُ، فَمَا الدَّيُّوْثُ مِنَ الرِّجَالِ ؟ . قَالَ : " اَلَّذِيْ لَا يُبَالِيْ مَنْ دَخَلَ عَلَى أَهْلِهِ ". قُلْنَا: فَالرَّجُلَةُ مِنَ النِّسَاءِ ؟، قَالَ: " اَلَّتِيْ تَشَبَّهُ بِالرِّجَالِ" . شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۳۱۰ ، مجمع الزوائد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ لِمَنْ يَرْضَى لِأَهْلِهِ بِالْخُبْثِ رقم الحديث ۷۷۲۲ ، الترغيب والترهيب رقم الحديث ۳۱۲۶ التَّرْهِيبُ من تشبه الرجل بِالْمَرْأَةِ... ، الزواجر ج ۲ ص ۸۲ .

وفي رواية : عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: ثَلَاثَةٌ قَدْ حَرَّمَ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى عَلَيْهِمُ الْجَنَّةَ : مُدْمِنُ الْخَمْرِ ، وَالْعَاقُّ ، وَالدَّيُّوْثُ الَّذِيْ يُقِرُّ فِيْ أَهْلِهِ الْخُبْثَ . مجمع الزوائد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ لِمَنْ يَرْضَى لِأَهْلِهِ بِالْخُبْثِ رقم الحديث ۷۷۲۱ . الترغيب والترهيب رقم الحديث ۳۱۲۵ التَّرْهِيبُ من تشبه الرجل بِالْمَرْأَةِ... ، الزواجر ج ۲ ص ۸۲ .

(۲) اَلدَّيُّوْثُ : بِفَتْحِ الدَّالِ وَتَشْدِيْدِ الْيَاءِ الْمُثَنَّاةِ تحت هُوَ الَّذِيْ يعلم الْفَاحِشَةَ فِيْ أَهله ويقرهم عَلَيْهَا . الترغيب والترهيب ۳۱۲۵ التَّرْهِيبُ من تشبه الرجل بِالْمَرْأَةِ...

قَالَ الْعُلَمَاءُ: اَلدَّيُّوْثُ الَّذِيْ لَا غَيْرَةَ لَهُ عَلَى أَهْلِ بَيْتِهِ ... وَفِيْ لِسَانِ الْعَرَبِ: وَالدَّيُّوْثُ الْقَوَّادُ عَلَى أَهْلِهِ وَالَّذِيْ لَا يَغَارُ عَلَى أَهْلِهِ . الزواجر ج ۲ ۸۲ الْكَبِيْرَةُ الثَّانِيَةُ وَالثَّالِثَةُ وَالثَّمَانُوْنَ بَعْدَ الْمِائَتَيْنِ الدِّيَاثَةُ وَالْقِيَادَةُ بَيْنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ

صحابه كرام فرمايي چې مونږ عرض اوكړو : اې د الله رسوله ! دا صُقُور څوک دى ؟
نبي عليه السلام اوفرمايل : اَلَّذِيْ يُدْخِلُ عَلٰى أَهْلِهِ الرِّجَالَ .
دا هغه څوک دى چې خپل كور واله ؤ ته پردي سړي راولي .(۱)
لهذا مسلمان به د بې پردګۍ ، او بې غيرتۍ نه ځان ساتي ، او په معاشره كې به فحاشي او بې حيائي نه خوَروي .

## خپله ځوانه لور په بې پردې لباس كې ځان سره چكر له بوتلل دَيُوثي ده

كه يو پلار خپله ځوانه لور په بې پردې لباس كې ځان سره د غير مسلمو په شان په چكر باندې بوځي نو داسې پلار دَيوث (دَوُوث) دى ، اسلام دې كار ته بې غيرتي وايي ، او په حديث كې ذكر دي چې دَيوث ( بې غيرته ) به جنت ته نه داخليږي . (۲)

## د فحاشۍ او بې حيايۍ خوَرولو أسباب اسلامي ملكونو ته هم رارسيدلي

ډيره د اَفسوس خبره ده چې د فحاشۍ او بې حيايۍ خوَرولو كوم اَسباب د غير مُسلمو په ملكونو كې وو هغه اوس د مسلمانانو ملكونو ته هم رارسيدلي . او بعضې بَدبخته مسلمانان په خپله دا بې حيائي خوَروي . هغه اَسباب يو څو دادي :

۱ . **سينماګانې** : نن صبا اكثره په هر ښار كې سينماګانې جوړې دي ، په دې كې سړي او ښځې يو ځاى ناست وي ، او د فحاشۍ او بې حيايۍ نه ډك فِلمونه په كې ګوري . چې دا د ځوان نسل د پاره تباهي ده ، ځكه چې كله په شريكه باندې دوى ټول دا لغر فِلمونه اوګوري نو د حياء ماده د دوى نه مكمل ختمه شي .

۲ . **ټي وي او اِنټرنټ** : د فحاشۍ بله ذريعه ټي وي او اِنټرنټ دى ، ځكه په كور كې پلار او لورانې يو ځاى ناست وي ، ډرامې او ګډاګانې ګوري ، اكثره په كې داسې مناظر

---

(۱) عَنْ مَالِكِ بْنِ أُحَيْمِرَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: لَا يَقْبَلُ اللهُ مِنَ الصُّقُوْرِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَرْفًا ، وَلَا عَدْلًا . قُلْنَا: يَا رَسُوْلَ اللهِ ! وَمَا الصُّقُوْرُ ؟ قَالَ : اَلَّذِيْ يُدْخِلُ عَلٰى أَهْلِهِ الرِّجَالَ . مجمع الزوائد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابٌ فِيْمَنْ يَرْضٰى لِأَهْلِهِ بِالْخُبْثِ رقم ۷۷۲۳ .

(۲) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۱۰۷ ط دار .

مخې ته راشي چې هغه جنسي خواهشات راپاروي ، نو چې کله د کور خلق په يو ځای دا کوري نو په دوی کې به حياء او غيرت څه پاتې شي ؟

په دې کې چې مسلمانانې ښځې د غير مُسلمو ښځو فيشنونه او بې پَردگي اوګوري نو ضرور به بيا هماغه انداز اختياروي .

بيا خاصکر نن صبا د ځوان نسل د پاره د بې حيايۍ لويه ذريعه اِنټرنېټ او فيس بُک دی ، اګر چې په دې کې څه ناڅه فائده به ضرور وي خو اکثره غلط استعماليږي ، ځکه ځوانان په دې کې د ټول جهان فحاشي په آسانه باندې په خپل کور کې کتلې شي .

مخکې به يو شريف سړې سينما ته د خپل شرافت په وجه نه شو تللی ليکن دې اِنټرنېټ دومره آساني ورته پيدا کړه چې بل څوک ورباندې خبر هم نه وي او ټوله شپه ځانله د فحاشۍ ويډيوګانې ګوري .

۳ . **په اَخبارونو کې فحش تصويرونه** : د بې حيايۍ خوَرولو يوه ذريعه اَخبارونه دي ، ځکه اَخبارونو واله د آخبار مستقله حصه ددې فحش تصويرونو د پاره مُعيّن کړي وي چې په هغې کې د زَنانه وُ داسې فحش تصويرونه او شهوَت راپاروونکي مضمونونه وي چې د هغې نه شيطان هم پناه غواړي .

٤ . **فحش رِسالې** : په بازار کې ډيرې رِسالې داسې خرڅيږي چې په هغې کې فحش تصويرونه او د بې حيايۍ مضمونونه وي ، رَذيل خلق يې په شوق باندې اخلي او ګوري يې .

۵. **د ښځو لغړ تصويرونه** : په بازار کې د ښځو داسې تصويرونه هم خرڅيږي چې په هغې کې د ښځو د عورت ځايونه ټول ښکاري ، بعضې په کې داسې لغړ تصويرونه وي چې په هغې کې د سپو په شان د سړو او د ښځو د بَدفِعلۍ مناظر وي .

٦ . **د فلمونو د اشتهار بورډُونه** : سينماګانو واله د فِلمونو د اِشتهار واله بُورډونه لږولي وي په هغې باندې د زَنانه وُ فحش تصويرونه وي ، او په داسې ځای کې يې لږولي وي چې په هغې باندې د هر چا نظر لږي ، بعضې داسې فحش تصويرونه وي چې په هغې کې سړي او ښځې يو بل له غاړه ورکړې وي او د بې حيايۍ مظاهره کوي .

۷ . **په مصنوعاتو باندې د ښځو تصویرونه** : کمپنو واله د خپلو څیزونو د اِشتهاراو خرڅولو د پاره په مصنوعاتو باندې د زَنانهٔ تصویرونه ورکړي وي ، او په بعضې مصنوعاتو باندې خو يې د زَنانهٔ د خاص اَندامونو تصویرونه هم ورکړي وي ، مقصد يې دا وي چې خلق دا څیز واخلي .

ددینه علاوه نور په وَدونو او نورو ځایونو کې داسې د فحاشۍ پروګرامونه کیږي چې په هغې کې د ښځو عزت تار تار کیږي ، چې په دې سره د خلقو د ذِهنونو نه د حیاء او غیرت تصوّر ختمیږي .

لهٰذا د مسلمانانو دا ذِمه واري ده چې د فحاشۍ لارې بَندې کړي ، پخپله هم ورنه ځان اُوساتي او نور خلق هم ددینه اُوساتي . ځکه که دا حالت همداسې بې حیائۍ طرف ته روان وي نو آئنده نسل به مکمل د اسلام نه باغي وي ، د حیاء او غیرت نه بالکل خالي وي .

الله تعالی دې مونږ ټول د فحاشۍ او بې حیایۍ نه اُوساتي . آمین

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْاُوْلٰى ﴾

الاحزاب آيه ٣٣.

# د پردې متعلق ضروري فقهي مسائل

تالِيف


اَبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدٰى عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اكاخيل كالونى مردان

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

((( **نوټ** : د پَردې بعضې مسائل داسې دي چې د هغې نه څه خلق خبر ندي، نو په همدې خاطر درته د پَردې متعلق ډير راپيخيدونکي ضروري فِقهي مسائل ذکر کوم ، مُقرِّرين حضرات د وخت او مُوقع مناسب ددې مسائلو نه هم د ځان د پاره اِنتخاب کولې شي ، چې د تقرير په دَوران يا آخر کې يې بيان کړي. نفسِ مسئله مې په پښتو ژبه کې ذکرکړې ، خو د علماوُ د فائدې په خاطر مې د قرآن کريم آيتونه ، احاديث ، او د فقهاوُ اَقوال لاندې په حاشيه کې هم ورسره رانقل کړي. البته د حاشيې د عبارتونو ترجمه مې نده کړې ځکه چې بيا کتاب ډير اُوږديږي ، اِنْ شَاءَ الله اهلِ علم ورنه په آسانه فائده حاصلولې شي ))) .

ابوالشمس عفي عنه

## جينۍ به په کوم عُمر کې پَرده شروع کوي ؟

چې کله جينۍ هوښياره شي ، داسې ماده په کې پيدا شي چې سړو ته يې خواهش پيداکيږي ، يا د سړو ديته خواهش پيدا کيږي نو دا به پَرده شروع کوي .(۱)

بيا به دا آئنده ټول عُمر پَرده کوي ، ديته هيڅ وخت د پرَدو سړو د وړاندې د بې پَردې ګرځيدلو جازت نشته .(۲)

(۱) قَالَ ابن عابدين رحمه الله : (قَوْلُهُ : لَا عَوْرَةَ لِلصَّغِيْرِ جِدًّا) وَكَذَا الصَّغِيْرَةُ وَاخْتَلَفُوْا فِيْ تَقْدِيْرِ حَدِّ الشَّهْوَةِ. فَقِيْلَ سَبْعٌ . وَقِيْلَ تِسْعٌ وَسَيَأْتِيْ فِيْ بَابِ الْإِمَامَةِ تَصْحِيْحُ عَدَمِ اعْتِبَارِهِ بِالسِّنِّ بَلِ الْمُعْتَبَرُ أَنْ تَصْلُحَ لِلْجِمَاعِ . بِأَنْ تَكُوْنَ عَبْلَةً ضَخْمَةً . وَهٰذَا هُوَ الْمُنَاسِبُ اِعْتِبَارُهُ هُنَا فَتَدَبَّرْ . رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص۴۰۸ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِيْ سَتْرِ الْعَوْرَةِ .

(۲) (وَأَنْ يَسْتَعْفِفْنَ) بترك الوضع والتستر كالشواب (خَيْرٌ لَهُنَّ) من الوضع لبعده من التهمة فلكل ساقطة لاقطة ... وأبلغ ما في ذلك أنه جعل عدم وضع الثياب في حق القواعد من الاستعفاف إيذانا بأن وضع الثياب لا مدخل له في العفة . هذا في القواعد فكيف بالكواعب؟ روح المعاني ( روح المعاني في تفسير القرآن العظيم والسبع المثاني ) ج ۹ ص ۲۰۷ سورة النور في تشريح آية ۶۰ . احكام القرآن للشيخ ظفر احمد التهانوي ج ۳ ص ۴۳۹ . فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۷۷ پرده کا ثبوت اور اس کا وجوب.

## د څومره عُمر هلک نه پَرده فرض ده؟

علماؤ ليکلي چې زَنانه د پاره د بالغ هلک نه بِالاتفاق پَرده فرض ده.

البته د نابالغه ماشومانو درې (۳) قِسمونه دي (او د هر قِسم حکم جدا جدا دى):

**اول قِسم**: هغه وړوکې ماشوم چې هغه په هيڅ نه پوهيږي، مثلاً د يو نيم کال، يا دوه کالو وي نو دده د وړاندې خو ځان بَرَيَنډول هم جائز دي؛ ځکه دده مثال خو د کاڼي په شان دى، دا په هيڅ نه پوهيږي.

**دويم قِسم**: هغه ماشوم چې څه نا څه هوښيار وي، تميز کولې شي، خو حَد د شهوت ته نه وي رسيدلى، نو دده د وړاندې زَنانه د پاره د نوم نه تر زَنګون پورې عورت ښکاره کول ناجائز دى، ددينه علاوه نور آندامونه دده د وړاندې ښکاره کول جائز دي.

**دريم قِسم**: هغه پرَدې هلک چې بالغ شوې نه وي خو بلوغ ته نزدې شوې وي نو دده حُکم د بالغ په شان دى، زَنانه د پاره دده نه مکمل پَرده کول فرض ده. (۱)

علماؤ دا هم ليکلي چې کوم هلک د ښځو د پَردې (او پټو خبرو) نه خبر وي نو د هغه نه پَرده کول په کار ده. (۲)

## د نامَحرَم رِشته دار نه هم پَرده ضروري ده

د ښځې چې د چا سره نکاح کيږي هغوى ته " نَامَحرَم " وايي د هغوى ټولو نه ددې د پاره پَرده فرض ده. (۳)

د ښځې د پاره د ترور ځامن، د تره ځامن، د ماما ځامن، او لېوَر هم نَامَحرَم دي، د دوى نه هم ددې د پاره پَرده ضروري ده.

که چيرته د څه مجبوريت په وجه ښځه د نَامَحرَم مخې ته راځي نو مخ ورله پټول په کار دي. (۴)

---

(۱) امداد الفتاوى ج ۴ ص ۱۹۸.

(۲) آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۱۱۴، وص ۷۰ ج ۵

(۳) ﴿ يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ﴾. الاحزاب آية ۵۹

(۴) قَالَ الحصكفي رَحِمَهُ اللَّهُ: (وَتُمْنَعُ) الْمَرْأَةُ الشَّابَّةُ (مِنْ كَشْفِ الْوَجْهِ بَيْنَ رِجَالٍ) لَا لِأَنَّهُ ←←←←

د نَامَحرَم سره گپ شپ لړول يا ورسره اِختلاط كول (يعنى ځانله ورسره كيناستل) د زَنانه د پاره زهرِ قاتل دى. (۱)

# په شريک کور کې د پَردې حکم

د ښځې د پاره د نَامَحرَمو نه پَرده ضروري ده ، خو که يوه زَنانه په داسې کور کې وي چې هلته ټول خاندان يو ځاى اُوسيږي ، ددې د تره ځامن ، يا ماما ځامن ورسره په کور کې وي ، يا لېوَر ورسره په کور کې وي او د غربت د وجې نه خاوند د ښځې د پاره د جدا کور انتظام نشي کولى نو ددې حکم دادى چې اول به دا زَنانه دا کوشش کوي چې کله نَامَحرَم رِشته دار کور ته رانتوځي نو دا به يوې څنډې طرف ته شي ، يا دې د کور په مينځ کې پَرده اُولږوي ، او دا سړي چې کور ته راداخليږي نو مخکې دې اِطلاع کوي او خپل نظر دې ښکته ساتي. (۲)

خو که کور تَنګ وُ او د پَردې هيڅ انتظام نه شو كيدى ، يا په دې شريک کور کې د ښځې د پاره د مخ پټول گران وو ، يا د صِله رَحمي کټ کولو سبب گرځيده نو بيا که د فِتنې يَره نه وه نو زَنانه ته د مجبوريت په وجه د غير مَحرَم رِشته دارو (لکه د تره ځوي ، ماما ځوي ، لېوَر

---

←←←← عَوْرَةٌ بَلْ (لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ) . الد المختار

قال ابن عابدين رَحِمَهُ اللّٰهُ : (قَوْلُهُ : بَلْ لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ) أَيِ الْفُجُورِ بِهَا . أَوِ الشَّهْوَةِ . وَالْمَعْنَى تُمْنَعُ مِنَ الْكَشْفِ لِخَوْفِ أَنْ يَرَى الرِّجَالُ وَجْهَهَا فَتَقَعُ الْفِتْنَةُ لِأَنَّهُ مَعَ الْكَشْفِ قَدْ يَقَعُ النَّظَرُ إِلَيْهَا بِشَهْوَةٍ . رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۰۶ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ .

(۱) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۸۸ ، و ص ۸۹ پرده . فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۹۱ الحجاب . فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۱۰۶ جن سے پردہ ضروری ہے۔

(۲) ﴿ وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلٰى جُيُوْبِهِنَّ ۖ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اٰبَآئِهِنَّ اَوْ اٰبَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اَبْنَآئِهِنَّ اَوْ اَبْنَآءِ بُعُوْلَتِهِنَّ اَوْ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْٓ اِخْوَانِهِنَّ اَوْ بَنِيْٓ اَخَوٰتِهِنَّ اَوْ نِسَآئِهِنَّ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُنَّ اَوِ التّٰبِعِيْنَ غَيْرِ اُولِى الْاِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرٰتِ النِّسَآءِ ۖ وَلَا يَضْرِبْنَ بِاَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِيْنَ مِنْ زِيْنَتِهِنَّ ۚ وَتُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰهِ جَمِيْعًا اَيُّهَ الْمُؤْمِنُوْنَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴾ . النور آية ۳۱ .

وغيره ) د وړاندې د مخ ، لاسونو او قدمونو ښکاره کولو اجازت شته ، خو سينې ، پُنډۍ به نه ښکاره کوي ، خندا او گپ شپ به ورسره نه لږوي او ځان له به ورسره هم نه کيني.

خو دا اجازت هله دی چې د دوی د وړاندې د مخ په ښکاره کولو سره د فِتنې يَره نه وي ، ځکه که د فِتنې يَره وه نو بيا د دوی نه پَرده واجب ده ، د دوی د وړاندې به هم بيا مخ نه ښکاره کوي . (۱)

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللّٰهُ ليکلي : د ښځې چې کوم رِشته دار مَحرَم نه وي لکه د ترور ځامن ، ماما ځامن ، لېوَر ، او د لېوَر ځامن وغيره نو د ځوانې ښځې د پاره د دوی مخې ته راتلل او بې تکلُفه ورسره خبرې کول ندي په کار .

خو که کور تَنگ وُ يا هر وخت د دوی تلو راتلو په وجه پَخه پَرده نه شوه کيدی نو بيا د ضرورت په وجه په زُوړ څادر کې د دوی مخې ته راتلې شي ، خو مَتې ، د سَر ويښتان او

---

(۱) وَأَمَّا النَّظَرُ إِلَى الْأَجْنَبِيَّاتِ فَنَقُولُ : يَجُوزُ النَّظَرُ إِلَى مَوَاضِعِ الزِّينَةِ الظَّاهِرَةِ مِنْهُنَّ وَذَلِكَ الْوَجْهُ وَالْكَفُّ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ. كَذَا فِي الذَّخِيرَةِ. وَإِنْ غَلَبَ عَلَى ظَنِّهِ أَنَّهُ يَشْتَهِيْ فَهُوَ حَرَامٌ. كَذَا فِي الْيَنَابِيعِ. اَلنَّظَرُ إِلَى وَجْهِ الْأَجْنَبِيَّةِ إِذَا لَمْ يَكُنْ عَنْ شَهْوَةٍ لَيْسَ بِحَرَامٍ لٰكِنَّهُ مَكْرُوهٌ. كَذَا فِي السِّرَاجِيَّةِ. وَرَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ يَجُوزُ النَّظَرُ إِلَى قَدَمِهَا أَيْضًا. وَفِيْ رِوَايَةٍ أُخْرَى عَنْهُ قَالَ لَا يَجُوزُ النَّظَرُ إِلَى قَدَمِهَا. الفتاوى الهندية ج ۵ ص ۳۲۹ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ اَلْبَابُ الثَّامِنُ فِيمَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَيْهِ وَمَا لَا يَحِلُّ لَهُ . فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۸۸ الحجاب .

عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رضي الله عنه : أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ» فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ : يَا رَسُولَ اللّٰهِ ! أَفَرَأَيْتَ الْحَمْوَ ؟ قَالَ : «اَلْحَمْوُ الْمَوْتُ» . صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا ذُو مَحْرَمٍ، وَالدُّخُولُ عَلَى الْمُغِيبَةِ رقم الحديث ۵۲۳۲ .

اَلْخَلْوَةُ بِالْأَجْنَبِيَّةِ حَرَامٌ . الدرالمختار ج ٦ ص ۳٦۸ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ .

قال الحصكفي رَحِمَهُ اللّٰهُ : ( وَتُمْنَعُ ) الْمَرْأَةُ الشَّابَّةُ ( مِنْ كَشْفِ الْوَجْهِ بَيْنَ رِجَالٍ ) لَا لِأَنَّهُ عَوْرَةٌ بَلْ ( لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ ) . الدالمختار . قال ابن عابدين رَحِمَهُ اللّٰهُ : ( قَوْلُهُ : بَلْ لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ ) أَيِ الْفُجُورِ بِهَا ، أَوِ الشَّهْوَةِ . وَالْمَعْنَى تُمْنَعُ مِنَ الْكَشْفِ لِخَوْفِ أَنْ يَرَى الرِّجَالُ وَجْهَهَا فَتَقَعُ الْفِتْنَةُ لِأَنَّهُ مَعَ الْكَشْفِ قَدْ يَقَعُ النَّظَرُ إِلَيْهَا بِشَهْوَةٍ . رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۰٦ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ . فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۹۲ ، وص ۱۰٦ .

پُونډۍ د دوی د وړاندې ښکاره کول حرام دي، همدارنګې په دې وخت کې به عطر هم نه لګوي، او شرنګیدونکي زیوَرات به هم نه اچوي. (۱)

## په کور کې چې غير مَحرَم ماشوم بالغ شي نو پَرده ورنه ضروري ده

که د يوې زَنانه بسره په کور کې نَامَحرَم ماشوم اُوسيږي ( مثلاً د تره ځوي يا د ماما ځوي، او يا يې لېوَروي ) نو چې کله دا ماشوم بالغ شي نو بيا ددې ښځې د پاره دده نه په نَص د قرآن سره پَرده کول لازم ده. (۲)

## د خِينې ( يعنی د ښځې خور ) نه هم پَرده ضروري ده

سړي د پاره د خپلې خِينې (يعنی د ښځې خور) نه هم پَرده ضروري ده، لهذا يواځې د هغې سره کيناستل حرام دي. (۳)

البته د ضرورت په وخت په پَرده کې ورسره خبرې کول جائز دي، خو بې تکلُّفه ورسره ټوقې کول يا ورسره ځانله ملاويدل ناجائز دي. (۴)

## مُطلقه ښځه به د عدت تيرولو نه پس د زُوړ خاوند نه پَرده کوي

کومې ښځې ته چې خاوند طلاق ورکړي، بيا ددې عِدت تير شي نو دا به د زُوړ خاوند نه

---

(۱) ددې پوره تفصيل په امداد الفتاوی ج ۴ ص ۱۷۷ کې ذکر دی، تعليم الطالب ص ۵، آپ کے مسائل اوران کا حل ج ۸ ص ۹۰

(۲) ﴿ يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ . الاحزاب آية ۵۹ .... . آپ کے مسائل اوران کا حل ج ۸ ص ۷۹ پردہ.

(۳) اَلْخَلْوَةُ بِالْأَجْنَبِيَّةِ حَرَامٌ . الدرالمختار ج ٦ ص ۳٦۸ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ . الاشباه والنظائر ص ۱۵۹ كتاب الحظر والاباحة ، سكب الانهر على هامش المجمع ج ۴ ص ۲۰۳ كتاب الكراهية فصل في النظر ونحوه .

(۴) فَإِنَّا نُجِيزُ الْكَلَامَ مَعَ النِّسَاءِ الْأَجَانِبِ وَمُحَاوَرَتِهِنَّ عِنْدَ الْحَاجَةِ إِلَى ذٰلِكَ ... البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج ۱ ص ۲۸۵ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ . رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۰٦ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ .

ولتقضي الحوائج كسوال المتاع وأمثاله من وراء الحجاب . احكام القرآن للشيخ ظفر احمد العثماني ج ۳ ص ۴۰۱ تفصيل الخطاب في تفسير آيات الحجاب . فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۹۹ و ص ۱۳۳ جن سے پردہ ضروری ہے۔ آپ کے مسائل اوران کا حل ج ۸ ص ۵٦ پردہ .

پَرده کوي، ځکه اوس دا ښځه اَجنبي (پردۍ) شوه. ددې زُور خاوند د پاره اوس د هغې سره ملاویدل ناجائز دي. (۱)

## پردې کس ته ځوي، یا ورور یا پلار ویلو سره پَرده نه معاف کیږي

که یوه ښځه پردي کس ته ځوي اُووایي، یا ورته ورور اُووایي، یا ورته پلار اُووایي نو په دې دا کس ددې ځوي، ورور او پلار نه جوړیږي، دا به اوس هم د هغه نه پَرده کوي.

ځکه په شریعت کې چاته د ځوي ویلو، یا ورور ویلو یا پلار ویلو هیڅ حیثیت نشته، بلکه دا اوس هم اَجنبي دي، په قرآن کریم کې خو صراحةً چاته د ځوي ویلو نه منع راغلی.

بعضې زَنانه دا غلطي کوي چې یو کس ته ځوي یا ورور اُووایي نو بیا د هغه نه پَرده نه کوي. همدارنګې بعضې سړي هم دا غلطي کوي چې یوې ښځې ته لور یا خور یا مور اُووایي او بیا ورنه پَرده نه کوي حالانکه په اسلام کې ددې هیڅ حیثیت نشته.

ځکه پرَدۍ ښځې ته لور یا خور یا مور ویلو نه پس هم د هغې سره نکاح جائز ده، او چې د چا سره نکاح جائز وي د هغې نه پَرده ضروري ده. (۲)

دا مسئله ده چې که زَنانه ته بل څوک یو هلک ورکړي او دا یې راغبې کړي، ځوي ورته اُووایي (یعنی مُتَبَنّٰی یې جوړ کړي)، او ددې هلک سره ددې زَنانه د مَحرَمِیَت څه رِشته

---

(۱) لایجوز النظر الی المرأة (اي الأجنبية) لمافيه من خوف الفتنة. زيلعي ج ٦ ص ١٧ فصل في النظر والمس.

(قَوْلُهُ: وَمِنْ عِرْسِهِ وَأَمَتِهِ) فَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْهُمَا.... فَخَرَجَ الْمَجُوسِيَّةُ وَالْمُكَاتَبَةُ وَالْمُشْرِكَةُ وَمَنْكُوحَةُ الْغَيْرِ وَالْمُحَرَّمَةُ بِرَضَاعٍ أَوْ مُصَاهَرَةٍ فَحُكْمُهَا كَالْأَجْنَبِيَّةِ. رد المحتار على الدر المختار ج ٦ ص ٣٦٦ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ. فتاوی محمودیه ج ٢٨ ص ١٠٩ جن سے پردہ ضروری ہے.

(۲) ﴿ وَمَا جَعَلَ أَدْعِيَاءَكُمْ أَبْنَاءَكُمْ ذَٰلِكُمْ قَوْلُكُم بِأَفْوَاهِكُمْ وَاللَّهُ يَقُولُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيلَ ۞ ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِندَ اللَّهِ فَإِن لَّمْ تَعْلَمُوا آبَاءَهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَمَوَالِيكُمْ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيمَا أَخْطَأْتُم بِهِ وَلَٰكِن مَّا تَعَمَّدَتْ قُلُوبُكُمْ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾. سورة الاحزاب آية ۴، ۵.

قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ ... صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ لاَيَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا ذُو مَحْرَمٍ، وَالدُّخُولُ عَلَى المُغِيبَةِ رقم الحديث ۵۲۳۲. آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۷۷، و ص ۸۵ پردہ.

نه وي او دې زَنانه دې ماشوم ته سینه هم نه وي ورکړي نو چې کله دا هلک راغبټ شي دا زَنانه به ورنه پَرده کوي ، ځکه صرف په خُله ویلو سره پَردې هلک د چا ځوي نه جوړیږي .

په قرآن کریم کې ذکر دي :

﴿ وَمَا جَعَلَ اَدْعِيَآءَكُمْ اَبْنَآءَكُمْ ذٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِاَفْوَاهِكُمْ ﴾ . (۱)

ترجمه : او الله تعالی ستاسو د خُلې ویلي ځامن ( یعنی مُتَبَنّاګان ) ستاسو حقیقي ځامن ندي ګرځولي ، دا خو هسې ستاسو د خُلې (بې اَصله) خبره دهٔ .

( یعنی که تاسو چاته په خُله باندې ځوي اُووایَی نو صرف په دې سره هغه ستاسو حقیقي ځوي نه جوړیږي ) .

## بهر ته د وتلو په وخت نرۍ کپړې او نرۍ لوپټه اَچول ګناه ده

ښځه چې کله د څه ضرورت په وجه بهر اُوځي نو ددې د پاره داسې نرۍ کپړې او نرۍ لوپټه اچول ناجائز ده چې د هغې نه لاندې بدن ښکاري .

که کومه ښځه د بهر وتلو په وخت داسې نرۍ کپړې یا نرۍ لوپټه اچوي نو دا ګناهګاره ده ، ددینه به ځان ساتي . (۲)

## لوپټه د سَر په ځای په مرۍ کې اچول حرام ده

بعضې ښځې چې بهر اُوځي نو لوپټه نه په سَر کوي ، او بعضې لوپټه په مرۍ کې واچوي او دواړه طرفونه یې شاته واړوي ، سَر او سینې یې ښکاره وي ، نو دا کار د ښځو د پاره حرام او ګناه کبیره دی ، ددې په وجه په دې باندې د الله ﷻ لعنت راوریږي ، دیته په قرآن کریم کې جاهلیتِ اُولی ویل شوی ، او ددینه ښځه منع شوی . (۳)

(۱) الاحزاب آیة ۴ . فتاوی عثمانیه ج ۱۰ ص ۹۳ الحجاب .

(۲) دَخَلَتْ حَفْصَةُ بِنْتُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَلٰى عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، وَعَلٰى حَفْصَةَ خِمَارٌ رَقِيْقٌ ، فَشَقَّتْهُ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وَكَسَتْهَا خِمَارًا كَثِيْفًا . موطا الامام مالک كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ مَا يُكْرَهُ لِلنِّسَاءِ لُبْسُهُ مِنَ الثِّيَابِ رقم الحدیث ۶ . مشکوة المصابیح کتاب اللباس الفصل الثالث رقم ۴۳۷۵ (۷۲) . فتاوی عثمانیه ج ۱۰ ص ۱۰۹ .

(۳) ﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْاُوْلٰى ﴾ . الاحزاب آیة ۳۳ .

... وَأَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنَ الْآيَةِ مُخَالَفَةُ مَنْ قَبْلَهُنَّ مِنَ الْمِشْيَةِ عَلٰى تَغْنِيْجٍ وَتَكْسِيْرٍ وَإِظْهَارِ الْمَحَاسِنِ ←←←←

رسولُ الله صلی الله علیه وسلم د داسې ښځو په باره کې فرمائلي چې دوی به د جنت خوشبويي هم أو نه مومي. (۱)

## د سړو د پاره سَرتور سَر ګرځيدل د مُروت خلاف، او کافرانو طريقه ده

په دې ځای کې درته ضِمنًا د سړو د پاره د سرتور سَر ګرځيدلو مسئله هم ذکر کوم:

په **فتاوی محموديه** کې ذکر دي: د سړو د پاره د ضرورت په وخت سرتور سَر کيدل خبر دی، ليکن نن صبا چې کومه طريقه ده چې سړو هر وخت ويښتان غوَړ کړي وي او سرتور سَر ګرځي نو دا د ښکانو طريقه نده، د مرّوت خلاف ده، بلکه دا د الله تعالی د دُشمنانو طريقه ده، لهذا د دينه ځان ساتل په کار دي. (۲)

په " آپ کے مسائل اور ان کا حل " کې ذکر دي: اسلام انسانانو ته د ښو اخلاقو حکم کوي، او د بدو اخلاقو نه يې منع کوي.

---

←←← لِلرِّجَالِ، إِلَى غَيْرِ ذٰلِكَ مِمَّا لَا يَجُوزُ شَرْعًا. تفسير القرطبي (الجامع لاحكام القرآن) ج ۱۴ ص ۱۸۰ سورة الاحزاب آية ۳۳.

قال الحصكفي رَحِمَهُ اللهُ: (وَتُمْنَعُ) الْمَرْأَةُ الشَّابَّةُ (مِنْ كَشْفِ الْوَجْهِ بَيْنَ رِجَالٍ) لَا لِأَنَّهُ عَوْرَةٌ بَلْ (لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ). الد المختار قال ابن عابدين رَحِمَهُ اللهُ: (قَوْلُهُ: بَلْ لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ) أَيِ الْفُجُورِ بِهَا. أَوِ الشَّهْوَةِ. وَالْمَعْنٰى تُمْنَعُ مِنَ الْكَشْفِ لِخَوْفِ أَنْ يَرَى الرِّجَالُ وَجْهَهَا فَتَقَعُ الْفِتْنَةُ لِأَنَّهُ مَعَ الْكَشْفِ قَدْ يَقَعُ النَّظَرُ إِلَيْهَا بِشَهْوَةٍ. رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۰۶ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ. آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۶۳ پرده.

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صِنْفَانِ مِنْ أَهْلِ النَّارِ لَمْ أَرَهُمَا. قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ كَأَذْنَابِ الْبَقَرِ يَضْرِبُوْنَ بِهَا النَّاسَ. وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ مُمِيْلَاتٌ مَائِلَاتٌ. رُءُوْسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ. لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ، وَلَا يَجِدْنَ رِيْحَهَا، وَإِنَّ رِيْحَهَا لَيُوْجَدُ مِنْ مَسِيْرَةِ كَذَا وَكَذَا. صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّيْنَةِ بَابُ النِّسَاءِ الْكَاسِيَاتِ الْعَارِيَاتِ الْمَائِلَاتِ الْمُمِيْلَاتِ رقم الحديث ۱۲۵ (۲۱۲۸).

(۲) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ. سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي لُبْسِ الشُّهْرَةِ رقم الحديث ۴۰۳۱ قال الالباني: حسن صحيح. فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۱۵۲ اسلامی آداب واخلاق.

په اسلام کې د سړو د پاره په بازارونو او کوڅو کې سرتور سَر ګرځېدل داسې عيب دى چې د اِنساني مُروّت او شرافت خلاف دى ، ددې د وجې فقهاء کرامو ليکلي چې په اسلامي عدالت کې به د داسې کس ګواهي نشي قبلولى . (۱)

په مسلمانانو کې د سرتور سَر ګرځېدو رِواج د انګريزانو د نقالۍ نه راپيدا شوى ، ګني په اسلامي معاشره کې به د سړو د پاره سرتور سَر ګرځېدل عيب وُ . (۲)

## د زَنانهٔ د پاره د لباس اُصول

کوم لباس چې د کافرانو ، يا فاسقانو ، يا سړو سره خاص وي نو ښځو د پاره ددې استعمال ناجائز دى . ( ځکه د کافرانو سره مشابهت کول ، يا زَنانهٔ د پاره د سړو سره مشابهت کول حرام دى ) . (۳)

او کوم لباس چې مشترک وي نو ددې استعمال جائز دى ، خو بيا هم د زَنانه د پاره هغه لباس اچول بهتر دى کوم چې د نېکانو ښځو سره خاص وي . (۴)

---

(۱) .... وَالْمَشْيِ بِسَرَاوِيلَ فَقَطْ، وَمَدِّ رِجْلِهِ عِنْدَ النَّاسِ، وَكَشْفِ رَأْسِهِ فِي مَوْضِعٍ يُعَدُّ فِعْلُهُ خِفَّةً وَسُوْءَ أَدَبٍ وَقِلَّةَ مُرُوْءَةٍ وَحَيَاءٍ، لِأَنَّ مَنْ يَكُوْنُ كَذٰلِكَ لَا يَبْعُدُ مِنْهُ أَنْ يَشْهَدَ بِالزُّوْرِ. فتح القدير ج ۷ ص ۴۱۴ كِتَابُ الشَّهَادَاتِ بَابُ مَنْ تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ وَمَنْ لَا تُقْبَلُ.

(۲) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ٦٣ ط.

(۳) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ . سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي لُبْسِ الشُّهْرَةِ رقم الحديث ۴۰۳۱ قال الالباني: حسن صحيح.

ملا علي قاري رحمه الله ددې حديث په تشريح کې ليکي : ( مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ ): أَيْ مَنْ شَبَّهَ نَفْسَهُ بِالْكُفَّارِ مَثَلًا فِي اللِّبَاسِ وَغَيْرِهِ، أَوْ بِالْفُسَّاقِ أَوِ الْفُجَّارِ أَوْ بِأَهْلِ التَّصَوُّفِ وَالصُّلَحَاءِ الْأَبْرَارِ. ( فَهُوَ مِنْهُمْ ) : أَيْ فِي الْإِثْمِ وَالْخَيْرِ. قَالَ الطِّيبِيُّ: هٰذَا عَامٌّ فِي الْخَلْقِ وَالْخُلُقِ وَالشِّعَارِ . مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ۲۷۸۲/۷ كِتَابُ اللِّبَاسِ الْفَصْلُ الثَّانِي في تشريح حديث ۴۳۴۷ .

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: لَعَنَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُتَشَبِّهِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ ، وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ. صحيح البخاري كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ: الْمُتَشَبِّهُوْنَ بِالنِّسَاءِ، وَالْمُتَشَبِّهَاتُ بِالرِّجَالِ رقم ۵۸۸۵ .

(۴) فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۸۱ پرده کا ثبوت اور اس کا وجوب . و ج ۲۷ ص ۴۳٦ عورتوں کے لباس .

# د پَردې د پاره غټ څادر بهتر دی یا مُروّجه برقع ؟

کله چې ښځه د څه ضرورت په وجه بهر اُوځي نو ددې د پاره اصل داده چې ددې ټول بدن او مخ به پټ وي ، ددې د پاره داسې غټ څادر کافي دی چې د سَر نه تر خپو پورې ددې ټول بدن پټ کړي . (۱)

لیکن د غټ څادر سَنبالول د ښځې د پاره مشکل وي نو ځکه شریفو خلقو دې غټ څادر ته د بُرقعې شکل ورکړو ، پخوا زمانه کې به د ټوپۍ واله بُرقعې رِواج وُ ، او نن صبا د نِقاب واله بُرقعې دي . (۲)

خو د بُرقعې د پاره دا ضروري ده چې دا به داسې دَولي (فینسي) نه وي چې د خلقو توجّو ورته راوړي ، داسې نرۍ به نه وي چې ټول بدن يې ورنه ښکاري ، او دومره تَنګه به نه وي چې د اَندامونو حُجم يې ورنه معلومیږي . (۳)

پخوانۍ بُرقع اچول هم صحیح ده ، خو که په پخوانۍ بُرقعو کې پوره پَرده نه راتله نو بیا غټ څادر اچول په کار دي . مقصود د ټول بدن پټول دي که دا په پخوانۍ بُرقعې سره راځي او که په غټ څادر سره راځي دواړه استعمالول صحیح دي . (۴)

# په کور کې د کار کولو په وخت د سَر ویښتان ښکاره کیدل

په شریعت کې چې د ښځې د پاره د کومو کسانو نه پَرده نشته (یعنی د ښځې مَحارِم وي ، لکه پلار ، ورور ، ځوي وغیره ) که د دوی د وړاندې د ښځې د سَر ویښتان ښکاره شي او د فِتنې یَره نه وي نو دا خیر دی ، اګر چې پټول يې بهتر دي .

---

(۱) ﴿ يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِن جَلَابِيبِهِنَّ ﴾ .الاحزاب آیة ۵۹ .

﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ﴾ .النور آیة ۳۱ .

(۲) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۵۶ ط ،۱۵ .

(۳) فتاوی محمودیه ج ۲۷ ص ۴۳۹ عورتوں کے لباس .

(۴) انّ الجلباب مطلوب عند الخروج ، والجلباب رداء ساتر من القرن الی القدم ... فیض الباري ج ۱ ص ۳۸۸ کتاب الحیض باب شهود الحائض ... ، فتاوی محمودیه ج ۲۷ ص ۴۴۰ عورتوں کے لباس .



لهذا د کومې ښځې سره چې په کور کې صرف مَحارم وي نو د کار کولو په وخت که د دې د سَر ويښتان ښکاره شي يا دا نرئ لوپټه په سَر کوي نو دا خېر دی.

خو که په کور کې د دې سره غير مَحرَم هم اُوسيږي (يعنی داسې کسان وي چې د هغوی نه د دې د پاره پَرده ضروري وي ، لکه د تره ځامن ، ترور ځامن ، د ماما ځامن ، لېوَر وغيره) نو بيا د دې د پاره په کور کې هم د دوی د وړاندې ويښتان ښکاره کول ، يا نرئ لوپټه استعمالول ناجائز ده.(۱)

**نوټ** : د عورت پټول فرض دي ، په کومو نرو کپړو کې چې عورت ښکاري نو داسې نرئ کپړې استعمالول ناجائز دي.(۲)

## کومه ښځه چې پَرده نه کوي نو هغه ګناهګاره ده

د ښځې د پاره د قرآن کريم د آيتونو او احاديثو په رَڼا کې د غير مَحرَمو سرو نه پَرده فرض ده.(۳)

---

(۱) يُرَخَّصُ لِلْمَرْأَةِ كَشْفُ الرَّأْسِ فِي مَنْزِلِهَا وَحْدَهَا فَأَوْلَى أَنْ يَجُوزَ لَهَا لُبْس خِمَارٍ رَقِيْقٍ يَصِفُ مَا تَحْتَهُ عِنْدَ مَحَارِمِهَا كَذَا فِي الْقُنْيَةِ. الفتاوى الهندية ج ۵ ص ۳۳۳ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ اَلْبَابُ التَّاسِعُ فِي اللُّبْسِ مَا يُكْرَهُ مِنْ ذَٰلِكَ وَمَا لَا يُكْرَهُ. فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۹۴ الحجاب .

وَأَمَّا نَظَرُهُ إِلَى ذَوَاتِ مَحَارِمِهِ فَنَقُوْلُ : يُبَاحُ لَهُ أَنْ يَنْظُرَ مِنْهَا إِلَى مَوْضِعِ زِيْنَتِهَا الظَّاهِرَةِ وَالْبَاطِنَةِ وَهِيَ الرَّأْسُ وَالشَّعْرُ وَالْعُنُقُ وَالصَّدْرُ وَالْأُذُنُ وَالْعَضُدُ وَالسَّاعِدُ وَالْكَفُّ وَالسَّاقُ وَالرِّجْلُ وَالْوَجْهُ. الفتاوى الهندية ج ۵ ص ۳۲۸ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ اَلْبَابُ الثَّامِنُ فِيمَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَيْهِ وَمَا لَا يَحِلُّ لَهُ . فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۸۲ پرده کا ثبوت اور اس کا وجوب .

(وَلِلْحُرَّةِ) وَلَوْ خُنْثَى (جَمِيْعُ بَدَنِهَا) حَتَّى شَعْرُهَا النَّازِلُ فِي الْأَصَحِّ . الدر المختار ج ۱ ص ۴۰۵ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۶۴ ، و ص ۶۷ پرده .

(۲) (وَلِلْحُرَّةِ) وَلَوْ خُنْثَى (جَمِيْعُ بَدَنِهَا) حَتَّى شَعْرُهَا النَّازِلُ فِي الْأَصَحِّ . الدر المختار ج ۱ ص ۴۰۵ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ . فتاوى محموديه ج ۲۷ ص ۴۳۰ عورتوں کے لباس

(۳) فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۷۵ پرده کا ثبوت اور اس کا وجوب ، بدائع الصنائع ج ۵ ص ۱۲۱ كتاب الاستحسان ، الفقه الحنفي و أدلته ج ۲ ص ۳۸۷ كتاب الحظر والاباحة . زيلعي ج ۶ ص ۱۷ كتاب الكراهية فصل في النظر والمس.

څکه ددې ثبوت د قرآن کريم د صريحو آيتونو ، متواتر صريحو احاديثو ، اِجماعِ اُمت او قياس نه شوی. او څوک چې د ښځو د پَردې نه اِنکار کوي نو داسې کس د دِين د قطعي اَحکامو نه مُنکر دی ، دا داسې دی لکه څوک چې د مونځ ، روژې ، زکوة او حج نه مُنکرِ شي. (۱)

کومه ښځه چې بې پَردې گرځي نو داد فرض په پريخودلو گناهگاره ده ؛ څکه په بې پَردگۍ سره د قرآن کريم د آيتونو او احاديثو مخالفت راځي. (۲)

او کوم سړې چې قصداً ديته گوري نو هغه هم گناهگار دی. (۳)

البته که غير اِختياري يې وريانديې نظر اُولږي او بيا سمدستي خپل مخ راواړوي نو بيا داسې کس گناهگار ندی. (۴)

---

(۱) أَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ أَنَّ حِجَابَ الْمَرْأَةِ بِمَفْهُوْمِهِ الْعَامِّ شَرِيْعَةٌ وَدِيْنٌ . وَ أَنَّهُ ثَابِتٌ قَطْعِيٌّ مُتَوَاتِرٌ فِي الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ. وَمَنْ أَنْكَرَ شَرِيْعَةَ لِبَاسِ الْمَرْأَةِ وَحِجَابِهَا ، وَقَالَ " إِنَّ لِبَاسَهَا عَادَةٌ تُبْدِيْ مَا تَشَاءُ وَتَسْتُرُ مَا تَشَاءُ " فَهُوَ مُنْكِرٌ لِقَطْعِيٍّ مَعْلُوْمٍ مِنَ الدِّيْنِ بِالضَّرُوْرَةِ كَمُنْكِرِ الصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ وَالْحَجِّ . الحجاب في الشريعة والفطرة لعبدالعزيزبن مرزوق الطريفي ج ۱ ص ۸۷.

قال محمد بن صالح العثيمين رَحِمَهُ اللّٰهُ : اِعلم أيها المسلمُ أنّ احتجاب المرأة عن الرجالِ الأجانب وتغطية وجهها أمر واجب ، دلّ على وجوبه كتاب ربك تعالى، وسنة نبيك محمد صلى الله عليه وسلم، والإعتبار الصحيح، والقياس المطرد. رسالة الحجاب ج ۱ ص ۹.

(۲) فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۷۳ پردہ کا ثبوت اور اس کا وجوب . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۵۱ پردہ .

(۳) عَنِ الْحَسَنِ، قَالَ: وَبَلَغَنِيْ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَعَنَ اللّٰهُ النَّاظِرَ وَالْمَنْظُوْرَ إِلَيْهِ . شعب الايمان رقم الحديث ۷۳۹۹ ، مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النَّظَرِ إِلَى الْمَخْطُوْبَةِ وَبَيَان العورات اَلْفَصْل الثالث رقم الحديث ۳۲۲۵(۲۸) ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۳۵٦٦ ، كنزالعمال رقم الحديث ۱۹۱٦۲ ، و رقم الحديث ۲٦٦۳۴ .

(۴) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَلِيٍّ رضي الله عنه : يَا عَلِيُّ ! لَا تُتْبِعِ النَّظْرَةَ النَّظْرَةَ ، فَإِنَّ لَكَ الْأُوْلَى وَلَيْسَتْ لَكَ الْآخِرَةُ . سنن ابي داؤد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ مَا يُؤْمَرُ بِهِ مِنْ غَضِّ الْبَصَرِ رقم الحديث ۲۱۴۹ ، سنن الترمذي أَبْوَابُ الْأَدَبِ بَابُ مَا جَاءَ فِيْ نَظْرَةِ الْفُجَاءَةِ رقم ۲۷۷۷ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۲۹۷۴ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم ۱۷۲۱۸ ، مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النَّظَرِ إِلَى الْمَخْطُوْبَةِ وَبَيَان العورات اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم ۳۱۱۰(۱۳) .

# په پردې نه کولو سره خاوند ښځې ته سزا ورکولې شي

که یوه ښځه بغیر د ضرورتِ شرعیه نه پردو سړو ته خپل مخ یا نور جسم ښکاره کوي، یا ورسره تعلقات قائموي، یا ورسره خبرې کوي، یا د خاوند گستاخي او بې اَدبي کوي نو شریعت خاوند ته دا اجازت کړی چې دیته سزا ورکړي.(۱)

# د واده په وخت پردو سړو له د ناوې مخ کتل، یا ورله ویډیو کول ناجائز ده

په بعضې علاقو کې دا رِواج وي چې کله ناوې د خاوند کور ته راوړې شي نو د خاوند د کورنۍ هر نامَحرَم سړې راځي ددې ناوې مخ گوري او ناوې ته یو څو روپۍ ورکوي، دیته دوی " د مخ کتلو رَسم " وایي.

په بعضې ځایونو کې دا رِواج وي چې د واده په وخت ناوې او ځلمې دواړه ناست وي د خاوند د کورنۍ ټول غیر مَحرَمه ورته گوري، تصویران ورله اُوباسي او ویډیوگانې ورله کوي، یا دا ویډیوگانې هر کس گوري ( لکه نن صبا په انټرنټ باندې خلقو ډیرې همداسې ویډیوگانې خورې کړي دي ).

نو ددې حکم دادی چې دا دواړه رِواجونه بې شَرمي او بې حیائي ده، د پردو سړو د پاره د ناوې مخ کتل یا ورله تصویران ویستل او یا ورله ویډیوگانې کول د الله ﷻ د لعنت

---

(۱) علامه حصکفي رَحِمَهُ اللّٰهُ په دُرمختار کې هغه ځایونه ذکر کړي چې په هغې کې خاوند ته دا اجازت شته چې ښځې ته سزا ورکړي : ( وَيُعَزِّرُ الْمَوْلَى عَبْدَهُ وَالزَّوْجُ زَوْجَتَهُ ) وَلَوْ صَغِيْرَةً لِمَا سَيَجِيْءُ ( عَلَى تَرْكِهَا الزِّيْنَةَ ) الشَّرْعِيَّةَ مَعَ قُدْرَتِهَا عَلَيْهَا ( وَ ) تَرْكِهَا ( غُسْلَ الْجَنَابَةِ. وَ) عَلَى ( الْخُرُوْجِ مِنَ الْمَنْزِلِ ) لَوْ بِغَيْرِ حَقٍّ ( وَتَرْكِ الْإِجَابَةِ إِلَى الْفِرَاشِ ) لَوْ طَاهِرَةً مِنْ نَحْوِ حَيْضٍ. وَيَلْحَقُ بِذٰلِكَ مَا لَوْ ضَرَبَتْ وَلَدَهَا الصَّغِيْرَ عِنْدَ بُكَائِهِ. أَوْ ضَرَبَتْ جَارِيَتَهُ غَيْرَةً وَلَا تَتَّعِظُ بِوَعْظِهِ. أَوْ شَتَمَتْهُ وَلَوْ بِنَحْوِ يَا حِمَارُ. أَوِ ادَّعَتْ عَلَيْهِ. أَوْ مَزَّقَتْ ثِيَابَهُ. أَوْ كَلَّمَتْهُ لِيَسْمَعَهَا أَجْنَبِيٌّ. أَوْ كَشَفَتْ وَجْهَهَا لِغَيْرِ مَحْرَمٍ. أَوْ كَلَّمَتْهُ أَوْ شَتَمَتْهُ أَوْ أَعْطَتْ مَا لَمْ تَجْرِ الْعَادَةُ بِهِ بِلَا إِذْنِهِ. وَالضَّابِطُ كُلُّ مَعْصِيَةٍ لَا حَدَّ فِيْهَا فَلِلزَّوْجِ وَالْمَوْلَى التَّعْزِيْرُ. وَلَيْسَ مِنْهُ مَا لَوْ طَلَبَتْ نَفَقَتَهَا أَوْ كِسْوَتَهَا وَأَلَحَّتْ، لِأَنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا . الدرالمختار ج ۴ ص ۷۷ بَابُ التَّعْزِيرِ . فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۱۱۴ اعضاے مستورہ کو دیکھنا اور کھولنا

سبب دی، دا رِواج فوراً بندول پکار دي.(۱)

## په ښځو باندې فصل رېبل، یا پرې د غر نه لرګي راوړل

په بعضې علاقو کې دا رواج وي چې هغوی په ښځو باندې فصل رېبي، په پټو کې وریاندې کار کوي، او یا وریاندې د غر نه لرګي راوړي، حالانکه د دوی سره څوک مَحرَم (ورور، یا پلار، یا خوي وغیره) هم نه وي، نو ددې حکم دادی:

لکه څرنګې چې شریعت سړو ته حقوق ورکړي نو همدغه شان یې ښځو ته هم ورکړي، فرق صرف دومره دی چې د سړو د پاره د کار کولو ځانله میدان دی او د ښځو د پاره ځانله میدان دی ( سړي به د کور نه بهر کارونه کوي، او ښځې به د کور دننه کارونه کوي)، او په دې کې شریعت د دواړو لحاظ ساتلی. خو بیا هم د سختې مجبورۍ په وجه دواړه د یو بل په میدان کې کار کولې شي (یعنی ښځه د سخت ضرورت په وجه بهر کار ته راوتلې شي).

لهذا که ښځه د فصل رېبلو او غر نه لرګي راوړلو ته مجبوره وه یعنی په کور کې یې څوک سړي نه وو چې دا کارونه اوکړي نو بیا د ښځو د پاره په پَردہ کې دا کارونه کول جائز دي، لیکن که سړي په کور کې موجود وو نو بیا ښځو ته ددې کارونو د پاره د کور نه وتل ناجائز دي، ځکه دا کارونه د ښځو ذِمه واري نده.

بل دا چې کله سړي په کور کې اُوزګار پراته وي، یا په کوڅو کې ځوشې ګرځي او په ښځو باندې فصلونه رېبي، او یا یې غر ته لیږي نو دا خو نه د اسلام تعلیم دی او نه د غیرت تقاضا ده.(۲)

## د ښځو خرچ او اِخراجات د سړو په ذِمه دي

الله تعالی په ښځه باندې د رِزق ګټلو ذِمه واري نده ایخی، د واده نه مخکې یې ددې پوره

(۱) فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۱۱۱ ط ددد .

(۲) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ . سنن الترمذي أَبْوَابُ الرِّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ وقال الترمذي: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. قال الالباني: صحيح. مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النظر إلى المخطوبة وبيان العورات اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۱۰۹(۱۲). فتاوی عثمانیه ج ۱۰ ص ۱۰۶ الحجاب.

کفالت د پلار په ذِمه ايخی، او د واده نه پس يې د دې په خاوند باندې ايخی. (۱)

اوس چې کومې ښځې په خپله په خپل ځان باندې دا بوج راولي نو دا ځان ته پخپله مشکلات پيدا کوي.

نن مغرب واله کافرانو په ښځو باندې غټ ظلم دا کړی چې دوی وايي: "مونږ د سړو او ښځو په مينځ کې مساوات کوو" نو په دې نوم باندې يې ښځې دَهوکه کړي او د اِخراجاتو بُوج يې هم په هغوی اچولی. لهذا اسلام په ښځه باندې د رزق گټلو ذِمه واري نده اچولی.

البته که يوه ښځه داسې وه چې نه يې پلار وُ، نه يې خاوند وُ، او نه يې د رِزق گټلو بله ذريعه وه نو ديته د رزق پيدا کولو د پاره د کور نه بهر په پَرده کې وتل جائز دي. (۲)

خو زِينت سره بازار ته تلل، يا د پَردو سړو مخې ته راتلل ورته قطعًا حرام دي. (۳)

## ښځې د پاره د خاوند يا ورور سره شاته په موټر سائکل باندې کيناستل

که يوه ښځه د خپل خاوند يا ورور سره په موټر سائکل باندې شاته ناسته وي او دې پَرده نه وي کړي نو دا ناجائز ده، ليکن که بُرقع يا غټ پړونې يې اغوستې وُ (يعنی پَرده يې کړې وه) نو بيا جائز ده. (۴)

## د ښځو د پاره د سړو په شان ويښتان جوړول، يا د سَر ويښتان کټ کول

نبي عليه السلام سړي د ښځو په شان او ښځې د سړو په شان مشابهت کولو نه منع کړي

---

(۱) (قَوْلُهُ تَجِبُ النَّفَقَةُ لِلزَّوْجَةِ عَلَى زَوْجِهَا وَالْكِسْوَةُ بِقَدْرِ حَالِهِمَا) أَيِ الطَّعَامُ وَالشَّرَابُ بِقَرِينَةِ عَطْفِ الْكِسْوَةِ وَالسُّكْنَى عَلَيْهَا. وَالْأَصْلُ فِي ذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى {لِيُنْفِقْ ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ} [الطلاق آية ۷] وقوله تَعَالَى {وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ} [البقرة آية ۲۳۳]. وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ «وَلَهُنَّ عَلَيْكُمْ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ» وَعَلَيْهِ إِجْمَاعُ الْأُمَّةِ، وَلِأَنَّ النَّفَقَةَ جَزَاءُ الْاِحْتِبَاسِ فَكُلُّ مَنْ كَانَ مَحْبُوسًا بِحَقٍّ مَقْصُودٍ لِغَيْرِهِ كَانَتْ نَفَقَتُهُ عَلَيْهِ. أَصْلُهُ الْقَاضِي وَالْعَامِلُ فِي الصَّدَقَاتِ وَالْمُفْتِي وَالْوَالِي وَالْمُضَارِبُ إِذَا سَافَرَ بِمَالِ الْمُضَارَبَةِ. وَالْمُقَاتِلَةُ إِذَا أَقَامُوا لِدَفْعِ عَدُوِّ الْمُسْلِمِينَ. البحر الرائق ج ۴ ص ۱۸۸ بَابُ النَّفَقَةِ

(۲) اصلاحي خطبات ج ۱ ص ۱۶۳، فتاوی عثمانيه ج ۱۰ ص ۱۰۵. آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۵۹۴.

(۳) امداد الفتاوی ج ۴ ص ۱۹۴.

(۴) ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَاءِ الْمُؤْمِنِينَ يُدْنِينَ عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيبِهِنَّ﴾ الاحزاب آية ۵۹.
آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۱۱۱ پرده.

او څوک چې دا مشابهت کوي په هغوی باندې یې لعنت ویلی .(۱)

چونکه د سَر ویښتان کمول یا کټ کول د سړو معمول دی نو ځکه د ښځو د پاره دا کار د سړو سره د مشابهت په وجه حرام دی.

بیا خاصکر دانن صبا چې بعضې ښځې د سړو په شان ویښتان جوړوي نو دا خو په طریقِ اولی ناجائز او حرام دي .

البته که د څه بیمارۍ یا عُذر په وجه زَنانه خپل ویښتان کم کړي یا یې کټ کړي نو شرعًا ددې اجازت شته .(۲)

همدارنګې په حج او عُمره کې هم ښځو ته د قصر (یعنی د ګوتې د یو بَند په اَندازه د ویښتانو سرونه کټ کولو) اجازت شته ، د سَر خریلو اجازت ورته نشته .(۳)

## که د ښځې په مخ ویښتان یاګیره راأوخیجي نو لرې کول یې جائز دي

که د ښځې په مخ باندې غیر مُعتاد ویښتان راأوخیجي نو چونکه په دې سره ددې حُسن

---

(۱) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : لَعَنَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُتَشَبِّهِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ . صحيح البخاري كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ: الْمُتَشَبِّهُوْنَ بِالنِّسَاءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتُ بِالرِّجَالِ رقم الحديث ۵۸۸۵ .

(۲) وَلَوْ حَلَقَتِ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا فَإِنْ فَعَلَتْ لِوَجَعٍ أَصَابَهَا لَا بَأْسَ بِهِ . وَإِنْ فَعَلَتْ ذٰلِكَ تَشَبُّهًا بِالرَّجُلِ فَهُوَ مَكْرُوْهٌ كَذَا فِي الْكُبْرٰى. الفتاوى الهندية كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ اَلْبَابُ التَّاسِعَ عَشَرَ فِي الْخِتَانِ وَالْخِصَاءِ وَحَلْقِ الْمَرْأَةِ شَعْرَهَا ووصلها شعر غَيْرِهَا ج ۵ ص ۳۵۸ . و مثله في الدرالمختار على صدر رد المحتار ج ٦ ص ۴۰۷ كتاب الحظر والاباحة ، فتاوى حقانيه ج ۲ ص ۴۲۰ و ص ۴٦۳ باب اللباس.

(۳) (وَلَا تَحْلِقُ وَلٰكِنْ تُقَصِّرُ) لِمَا رُوِيَ « أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى النِّسَاءَ عَنِ الْحَلْقِ وَأَمَرَهُنَّ بِالتَّقْصِيْرِ » وَلِأَنَّ حَلْقَ الشَّعْرِ فِي حَقِّهَا مُثْلَةٌ كَحَلْقِ اللِّحْيَةِ فِي حَقِّ الرَّجُلِ . الهداية ج ۱ ص ۱۴۹ كتاب الحج.

( وَلَا تَحْلِقُ بَلْ تُقَصِّرُ) مِنْ رُبُعِ شَعْرِهَا . الدرالمختار ج ۲ ص ۵۲۸

(قَوْلُهُ : ثُمَّ قَصَّرَ)..... وَالْمُرَادُ بِالتَّقْصِيْرِ أَنْ يَأْخُذَ الرَّجُلُ وَالْمَرْأَةُ مِنْ رُءُوْسِ شَعْرِ رُبُعِ الرَّأْسِ مِقْدَارَ الْأُنْمُلَةِ كَذَا ذَكَرَهُ الزَّيْلَعِيُّ. وَمُرَادُهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْ كُلِّ شَعْرَةٍ مِقْدَارَ الْأُنْمُلَةِ كَمَا صَرَّحَ بِهِ فِي الْمُحِيْطِ. وَفِي الْبَدَائِعِ قَالُوْا: يَجِبُ أَنْ يَزِيْدَ فِي التَّقْصِيْرِ عَلَى قَدْرِ الْأُنْمُلَةِ حَتّٰى يَسْتَوْفِيَ قَدْرَ الْأُنْمُلَةِ مِنْ كُلِّ شَعْرَةٍ بِرَأْسِهِ لِأَنَّ أَطْرَافَ الشَّعْرِ غَيْرُ مُتَسَاوِيَةٍ عَادَةً . رد المحتار على الدر المختار ج ۲ ص ۵۱۵ كِتَابُ الْحَجِّ مطلب في رمي جمرة العقبة



خرابېږي نو فقهاء کرامو ديته دا اجازت ورکړی چې دا زياتي ويښتان صفا کړي. (۱)
همدارنګې که د ښځې په مخ ګیره یا بریت راأوخیجي نو ددې لرې کول مستحب دي. (۲)
د ښځې د پاره د مخ نه په ويښتانو راويستلو سره بِلا وجه بدن ته تکليف رسي نو په پاؤډر یا بال‌صفا صابون باندې یې صفا کول په کار دي.

## د ښځې د پاره د لاس او خپو ويښتان صفا کول جائز دي

که د ښځې په لاس او خپو باندې ويښتان راأوخيجي نو چونکه په دې سره ددې په ښائست کې فرق راځي نو دا ورته صفا کول جائز دي.
او په دې سره په اصل خِلقت کې څه تبديلي هم نه راځي، او څه دُهو که هم په کې نشته. (۳)

---

(۱) قَالَ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ « لَعَنَ اللهُ الْوَاصِلَةَ ..... وَالنَّامِصَةَ وَالْمُتَنَمِّصَةَ » . اَلنَّامِصَةُ الَّتِيْ تَنْتِفُ الشَّعْرَ مِنَ الْوَجْهِ . وَالْمُتَنَمِّصَةُ الَّتِيْ يُفْعَلُ بِهَا ذٰلِكَ . الدرالمختار قَالَ ابن عابدين: اَلنَّمْصُ : نَتْفُ الشَّعْرِ . وَمِنْهُ الْمِنْمَاصُ الْمِنْقَاشُ اهـ وَلَعَلَّهُ مَحْمُوْلٌ عَلَى مَا إِذَا فَعَلَتْهُ لِتَتَزَيَّنَ لِلْأَجَانِبِ. وَ إِلَّا فَلَوْ كَانَ فِيْ وَجْهِهَا شَعْرٌ يَنْفِرُ زَوْجُهَا عَنْهَا بِسَبَبِهِ. فَفِيْ تَحْرِيْمِ إِزَالَتِهٖ بُعْدٌ. لِأَنَّ الزِّيْنَةَ لِلنِّسَاءِ مَطْلُوْبَةٌ لِلتَّحْسِيْنِ إِلَّا أَنْ يُحْمَلَ عَلَى مَا لَا ضَرُوْرَةَ إِلَيْهِ لِمَا فِيْ نَتْفِهٖ بِالْمِنْمَاصِ مِنَ الْإِيْذَاءِ . رد المحتار على الدر المختار ج ٦ ص ٣٧٣ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ . فتاوى حقانيه ج ٢ ص ٤٢٢ باب اللباس .

(۲) وَفِيْ تَبْيِيْنِ الْمَحَارِمِ إِزَالَةُ الشَّعْرِ مِنَ الْوَجْهِ حَرَامٌ إِلَّا إِذَا نَبَتَ لِلْمَرْأَةِ لِحْيَةٌ أَوْ شَوَارِبُ فَلَا تَحْرُمُ إِزَالَتُهُ بَلْ تُسْتَحَبُّ . رد المحتار على الدر المختار ج ٦ ص ٣٧٣ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ .

قَالَ العلامة عبدالحي الكهنوي رَحِمَهُ اللهُ: الاستفسار : لو نبتت للمرأة لحية ما ذا تفعل؟

الاستبشار : يستحب نتفها وحلقها... نفع المفتي والسائل ص ١٠٦ كتاب الحظر والاباحة مايتعلق بالنساء من الحيض والنفاس . مرقاة المفاتيح شرح مشكوة المصابيح ج١ ص ٣٠٢ كتاب الطهارة باب السواك ، فتاوى حقانيه ج ٢ ص ٤٢٢ باب اللباس . فتاوى محموديه ج ٢٧ ص ٥٠٠ .

والنمص: وهو نتف الشعر من الوجه حرام أيضًا إلّا إذا نبت في وجه المرأة شعر كثير كلحية وشارب، فيندب إزالتهما. الفقه الاسلامي و ادلته للدكتور وهبة الزحيلي ج ٤ ص ٢٦٨٢ اَلْبَابُ السَّابِعُ: الحَظْر والإباحة المبحث الرابع ثامناً : الوشم والنمص والتفليج

(۳) تكملة فتح الملهم ج ٣ ص ١٩٥ . شرعی پردہ کیوں اور کیسے ؟ ص ١١٢ .

خو په لاس يې راویستل مناسب ندي ځکه بدن ته تکلیف رسي ، په څه پاؤدر وغیره سره يې صفا کول په کار دي.

# وریزې د ښائست د پاره نرۍ کول ناجائز دي

د ښائست د پاره وریزې نرۍ کول ناجائز دي. (۱)

همدارنګې د زِینت د پاره د دواړو وریزو په مینځ کې ویښتان خریل یا کټ کول ناجائز دي. (۲)

نن صبا بعضې ښځې د ښائست د پاره د وریزو اکثر ویښتان اُوباسي او صرف لږ ویښتان پریږدي ، د هغې نه نرۍ کرخه جوړه کړي نو دا شرعًا ناجائز دي ، په احادیثو کې د دینه منع راغلې.

البته که د وریزو ویښتان د حد نه زیات غټ شي نو بیا يې څه اَندازه کمول خېر دی. خو بغیر د شرعي ضرورت نه خالص د ښائست د پاره وریزې نرۍ کول ناجائز دي. (۳)

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه ، قَالَ : « لَعَنَ اللهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُوتَشِمَاتِ ، وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللهِ » ... صحیح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ {وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ} رقم الحدیث ۴۸۸۶ ، و رقم الحدیث ۵۹۳۹ كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ الْمُتَنَمِّصَاتِ . مشکوة المصابیح رقم الحدیث ۴۴۳۱(۱۳) ، صحیح ابن حبان رقم الحدیث ۵۵۰۴ ، المعجم الکبیر للطبراني رقم الحدیث ۹۴۶۹ .

په مسلم شریف کې دا حدیث داسې ذکر دی : عَنْ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه ، قَالَ : « لَعَنَ اللهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ وَالنَّامِصَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ ، وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللهِ » ... صحیح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّينَةِ بَابُ تَحْرِيمِ فِعْلِ الْوَاصِلَةِ وَالْمُسْتَوْصِلَةِ ... رقم الحدیث ۱۲۰ (۲۱۲۵) . فتاوی حقانیه ج ۲ ص ۴۲۲ باب اللباس .

" مُتَنَمِّصَات " هغې ښځو ته وايي چې د ډول د پاره وریزې اُوباسي او نرۍ کوي يې.

والنمص : وهو نتف الشعر من الوجه حرام أيضًا إلا إذا نبت في وجه المرأة شعر كثير كلحية وشارب، فيندب إزالتهما. الفقه الاسلامي و ادلته للدکتور وهبة الزحیلي ج ۴ ص ۲۶۸۲ الْبَابُ السَّابِع: الحَظْر والإباحة المبحث الرابع ثامناً : الوشم والنمص والفلیج

(۲) نور الضحی فیما یتعلق باللحی ص ۴۴ فصل در احکام موئے بینی وابرو ، فتاوی محمودیه ج ۲۷ ص ۴۷۰ بالوں کے احکام.

(۳) شرعی پردہ کیوں اور کیسے ؟ ص ۱۱۱.

## ښځو له سُرخي پوډَر ، ناخُن پالش ، او شونډې شيرين استعمالول

ښځو له په کور کې دَننه د خپل خاوند د پاره د زِينت دا شيان (سُرخي پوډَر ، ناخُن پالش ، او شونډې شيرين وغيره) استعمالول جائز دي خو شرط دادی چې دا به د شريعت په حدودو کې دَننه وي . اوس ددې څه تفصيل دی :

**ناخُن پالش** : نن صبا چې کوم ناخُن پالش خرڅيږي دا چې زَنانه په نُوکانو اُولږوي نو دا جَم شي ، ددې نه لاندې نُوک ته اُوبه نه ځي ، نو اَودس او غُسل يې نه صحيح کيږي لهذا په کومو ورځو کې چې زَنانه مونځ کوي په دغه ورځو کې دې ناخن پالش نه لږوي ، او که لږولې يې وي نو د اَودس او غُسل کولو نه مخکې دې يې لرې کړي چې اودس او غُسل يې صحيح شي .

**سُرخي او پوډَر** : د سُرخي مثال داسې دی ، لکه تېل ، او د پوډَرو مثال داسې دی لکه گَرد ، دا دواړه چونکه په وجود باندې نه جَم کيږي نو ددې سره اَودس او غُسل دواړه صحيح کيږي . (۱)

**شونډې شيرين** : که شونډي شيرين داسې وُ چې د استعمالولو نه روستو په شونډو باندې جَم کيدو ، او ددې په وجه اُوبه لاندې شونډو ته نه رسيدی نو بيا د اَودس او غُسل کولو په وخت ددې لرې کول ضروري دي ، ځکه ددې سره اَودس او غُسل نه صحيح کيږي . او که دا نه جَم کيدو نو بيا ورسره اَودس او غُسل صحيح دی ، لرې کول يې ضروري ندي .

د ښځې د پاره د زِينت دا شيان په کور کې استعمالول جائز دي ، خو د کور نه بهر وتلو په وخت ورته زينت کول ناجائز دی ، ځکه بيا په فِتنه کې د مبتلاء کيدو سبب گرځي . (۲)

---

(۱) وَالعَجِيْنُ فِي الظُّفرِ يَمْنَعُ تَمَامَ الإغْتِسَالِ وَالوَسَخُ وَالدَّرَنُ لَا يَمْنَعُ..... وَ إذَا دَهَنَ فَأَمَرَّ المَاءَ فَلَمْ يَصِلْ يُجْزِئُ. كَذَا فِي شَرْحِ الوِقَايَةِ. الفتاوى الهندية ج ۱ ص ۱۳ ، و ص ۱۴ كِتَابُ الطَّهَارَةِ البَابُ الثَّانِي فِي الغُسْلِ الفَصْلُ الأَوَّلُ فِي فَرَائِضِ الغُسْلِ

(۲) وأما التحمير ونحوه فيجوز بإذن الزوج وفي داخل البيت، ويحرم بغير إذن الزوج وخارج المنزل. الفقه الاسلامي و ادلته للدكتور وهبة الزحيلي ج ۴ ص ۲٦۸۳ البَابُ السَّابع: الحَظر والإباحة المبحث الرابع تاسعاً : الترجل والتخنث ، فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۳۰۳ ، و ص ۳۰۷ باب الزينة .

كومه ښځه چې بهر ته د وتلو په وخت ځان سِينګار کړي ، او عطر پورې کړي نو دانا جائز دي ، ځکه دا خلقو ته د زِنا دعوت ورکول دي . (۱)

## د ښځو د پاره په غوږونو او پوزه کې سُوري کول جائز دي

د ښځو په طبعيت کې د ښائست سره شوق وي ، نو ځکه شريعت دوی ته د هر قِسمه زيوراتو اچولو اجازت ورکړی ، تر دې چې دوی ته يې د زيوراتو اچولو د پاره په غوږونو او پوزه کې د سُورو کولو اجازت هم ورکړی . (۲)

## د ښځو د پاره د ستنې په ذريعه باندې په تندي يا زَنه باندې خالونه وهل ناجائز دي

بعضې ښځې په تَندي ، يا زَنه ، يا مخ باندې پُوخ خال جوړوي ، طريقه يې داوي چې د ستنې په سَر باندې هغه ځای زخمي کوي ، کله چې وينې شي نو په هغه ځای کې رانجه يا نِيل واچوي ، چې کله دا زخم ښه شي نو په دې ځای کې پُوخ خال جوړ شي .

ددې حکم دادی چې دا ناجائز دی ، ځکه دا د جاهليت د زمانې رَسم دی ، او اوس د هندوانو رِواج دی ، په داسې ښځه باندې د الله تعالى لعنت راوريږي .

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ اوفرمايل :

(۱) عَنْ أَبِي مُوسٰى ﷺ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : كُلُّ عَيْنٍ زَانِيَةٌ . وَالْمَرْأَةُ إِذَا اسْتَعْطَرَتْ فَمَرَّتْ بِالْمَجْلِسِ فَهِيَ كَذَا وَكَذَا يَعْنِي زَانِيَةً. سنن الترمذي أَبْوَابُ الأَدَبِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ خُرُوجِ الْمَرْأَةِ مُتَعَطِّرَةً رقم ۲۷۸۶ قال الترمذي : هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ . مشكوة المصابيح بَابُ الْجَمَاعَةِ وفضلها الْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۱۰۶۵(۱۴) . فتاوی محموديه ج ۲۷ ص ۴۶۷ بالوں کے احکام.

(۲) قَالَ الحصكفي رَحِمَهُ اللهُ: وَلَا بَأْسَ بِثَقْبِ أُذُنِ الْبِنْتِ ... قُلْت: وَهَلْ يَجُوزُ الْخِزَامُ فِي الْأَنْفِ, لَمْ أَرَهُ. الدر المختار . قَالَ ابن عابدين رَحِمَهُ اللهُ : (قَوْلُهُ : لَمْ أَرَهُ) قُلْت: إنْ كَانَ مِمَّا يَتَزَيَّنُ النِّسَاءُ بِهِ كَمَا هُوَ فِي بَعْضِ الْبِلَادِ فَهُوَ فِيهَا كَثَقْبِ الْقُرْطِ . رد المحتار على الدر المختار ج ۶ ص ۴۲۰ كِتَابُ الحَظْرِ وَالإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي الْبَيْعِ. فتاوی عثمانيه ج ۱۰ ص ۳۰۹ باب الزينة .

لَعَنَ اللهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُوْتَشِمَاتِ.... (۱)

الله تعالی لعنت لیږلې دی په هغه ښځو باندې چې ځانله یا بلې ښځې له په څرمن باندې خالونه وَهي.

کومو ښځو چې په ناپوهۍ کې دا خالونه وهلي وي ، یا کومو سړو په لاسونو باندې په دې طریقه نومونه لیکلي وي نو که چیرته د علاج په ذریعه په آسانه ددې لرې کول ممکن وو نو بیا ددې لرې کول واجب دي ، خو که بغیر د حرَج نه ددې لرې کول ممکن نه وو او دا یره وه چې ددې په لرې کولو سره به د جسم څه حصه یا اندام خراب شي نو بیا ددې لرې کول واجب ندي، پس کله چې ده ددینه توبه اُوویسته نو اوس په ده باندې څه گناه نشته ، په دې حکم کې سړي او ښځې برابر دي. (۲)

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ ﷺ، قَالَ: « لَعَنَ اللهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُوْتَشِمَاتِ، وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللهِ . صحیح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ {وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ} رقم الحدیث ۴۸۸۶ ، و رقم الحدیث ۵۹۳۹ كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ الْمُتَنَمِّصَاتِ. مشكوة المصابيح رقم الحديث ۴۴۳۱(۱۳)، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۵۰۴ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۹۴۶۹ .

په مسلم شریف کې دا حدیث داسې ذکر دی : عَنْ عَبْدِ اللهِ ﷺ، قَالَ: « لَعَنَ اللهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ وَالنَّامِصَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ، وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللهِ » .... صحیح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّينَةِ بَابُ تَحْرِيمِ فِعْلِ الْوَاصِلَةِ وَالْمُسْتَوْصِلَةِ... رقم الحديث ۱۲۰ (۲۱۲۵) .

عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ، وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ . صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّينَةِ بَابُ تَحْرِيمِ فِعْلِ الْوَاصِلَةِ وَالْمُسْتَوْصِلَةِ... رقم الحديث ۱۱۹ (۲۱۲۴).

(۲) قَالَ أَصْحَابُنَا : هٰذَا الْمَوْضِعُ الَّذِي وُشِمَ يَصِيرُ نَجِسًا فَإِنْ أَمْكَنَ إِزَالَتُهُ بِالْعِلَاجِ وَجَبَتْ إِزَالَتُهُ ، وَإِنْ لَمْ يُمْكِنْ إِلَّا بِالجرح فَإِنْ خَافَ مِنْهُ التَّلَفَ أَوْ فَوَاتَ عُضْوٍ أو منفعة عُضْوٍ أَوْ شَيْئًا فَاحِشًا فِي عُضْوٍ ظَاهِرٍ لَمْ تَجِبْ إِزَالَتُهُ . فَإِذَا تَابَ لَمْ يَبْقَ عَلَيْهِ إِثْمٌ . وَإِنْ لَمْ يَخَفْ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ وَنَحْوِهِ لَزِمَهُ إِزَالَتُهُ وَيَعْصِي بِتَأْخِيرِهِ ، وَسَوَاءٌ فِي هٰذَا كُلِّهِ الرَّجُلُ وَالْمَرْأَةُ . وَاللهُ أَعْلَمُ . شرح النووي على صحيح مسلم ( المنهاج شرح صحيح مسلم بن الحجاج ) ج ۱۴ ص ۱۰۶ في تشريح حديث ۱۱۹ (۲۱۲۴) ، عمدة القاري شرح صحيح البخاري ج ۱۹ ص ۲۲۵ ، مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ۷ ص ۲۸۱۹ . فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۳۰۷ الزينة .

## د فيشن د پاره غټ غټ نوكان پرېخودل مكروه دي

اسلام د نُوكانو كټ كول د فِطرت په اُمورو كې شمار كړي او ددې د كټ كولو د پاره يې ورځ هم مقرر كړې ، يعنى په جُمعه كې يې يو ځل كټ كول مستحب دي ، كني په پنځلس ورځو كې دې يو ځل كټ كوي ، او د څلويښتو ورځو نه روستو كول يې مكروه دي ، لهذا نن صبا چې سړي يا ښځې د فيشن د پاره اُوږده اُوږده نوكان پرېږدي نو دا مكروه دي .(۱)

## د ښځو د پاره په خپو كې پازيب اچول

د بعضې علاقو په ښځو كې دا رواج وي چې هغوى په خپو كې داسې پازيب ( پېنزيب ) اچوي چې د تللو په وخت شرنكار كوي . نو ددې حكم دادى چې بهر ته د وتلو په وخت دا ناجائز او حرام دى ، ځكه اسلام ښځې ته د پَردې حكم كړى او د هر هغه كار نه يې منع كړې چې د بې حيايَى سبب گرځي ، چونكه د ښځو د پاره په خپو كې شرَنگيدونكې پانزيب اچول يو قِسم بې حيائي ده ، د پرَدو خلقو توجّو ورته راوړي چې بعضې وخت د دينه لويه فِتنه او فساد پيدا كيږي .

---

(۱) (وَيُسْتَحَبُّ قَلْمُ أَظَافِيرِهِ) إلَّا لِمُجَاهِدٍ فِي دَارِ الْحَرْبِ فَيُسْتَحَبُّ تَوْفِيرُ شَارِبِهِ وَأَظْفَارِهِ (يَوْمَ الْجُمُعَةِ) وَكَوْنُهُ بَعْدَ الصَّلَاةِ أَفْضَلُ إلَّا إذَا أَخَّرَهُ إلَيْهِ تَأْخِيرًا فَاحِشًا فَيُكْرَهُ لِأَنَّ مَنْ كَانَ ظُفْرُهُ طَوِيلًا كَانَ رِزْقُهُ ضَيِّقًا . الدرالمختار ج ٦ ص ۴۰۵ كتاب الحظر والاباحة فصل في النظر والمس .

وفي الهندية : اَلْأَفْضَلُ أَنْ يُقَلِّمَ أَظْفَارَهُ وَيُحْفِيَ شَارِبَهُ وَيَحْلِقَ عَانَتَهُ وَيُنَظِّفَ بَدَنَهُ بِالْإِغْتِسَالِ فِي كُلِّ أُسْبُوعٍ مَرَّةً . فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ فَفِي كُلِّ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا . وَلَا يُعْذَرُ فِي تَرْكِهِ وَرَاءَ الْأَرْبَعِينَ . فَالْأُسْبُوعُ هُوَ الْأَفْضَلُ وَالْخَمْسَةَ عَشَرَ الْأَوْسَطُ ، وَالْأَرْبَعُونَ الْأَبْعَدُ ، وَلَا عُذْرَ فِيمَا وَرَاءَ الْأَرْبَعِينَ وَيَسْتَحِقُّ الْوَعِيدَ كَذَا فِي الْقُنْيَةِ . الفتاوى الهندية ج٥ ص ۳۵۷ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ اَلْبَابُ التَّاسِعَ عَشَرَ فِي الْخِتَانِ وَالْخِصَاءِ وَحَلْقِ الْمَرْأَةِ شَعْرَهَا وَوَصْلِهَا شَعْرَ غَيْرِهَا . ومثله في فتاوى قاضي خان على هامش الهندية ج۳ ص ۴۱۱ كتاب الحظر والاباحة فصل في الختان . فتاوى حقانيه ج ۲ ص ۴۲۰ .

يستحب أن يقلم أظفاره ويقص شاربه ويحلق عانته وينظف بدنه في كل أسبوع مرة ويوم الجمعة أفضل ثم في خمسة عشر يوما والزائد على الأربعين آثم . حاشية الطحطاوي على مراقي الفلاح ج ۱ ص ۵۲۲ كتاب الصلاة باب الجمعة ، فتاوى محموديه ج ۲۷ ص ۵۱۳ ناخن كاٹنے كا بيان.

بل دا چې بهر ته د وتلو په وخت په خپو کې شرَنګيدونکې پانزيب اچول د شرعي پَردې منافي دی. لهذا دا د ښځو د پاره اچول ناجائز دی.

البته که د قدم اخيستلو په وخت يې آواز نه کولو ، يا يې په کور کې د خاوند د پاره اچولو ( او په کور کې ورسره غير مَحرَم رشته دار نه وو ) نو بيا ددې استعمال جائز دی. (۱)

## د ښځې آواز عورت دی او که نه ؟

( **نوټ** : په دې مسئله کې د علماؤ مختلف أقوال دي نو ځکه يې درته په تفصيل سره رانقل کوم. ابوالشمس علي عنه )

مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللهُ په **تفسير معارف القرآن** کې ليکلي : د أحنافو په نزد په دې باره کې مختلف قولونه دي " چې آيا د زَنانه آواز عورت دی او که نه ؟ "

ابن همام رَحِمَهُ اللهُ د نوازل د روايت په بِناء دا په عورت کې داخل کړی . ځکه خو د زَنانه د پاره آذان کول مکروه دی ، او زَنانه به خپله وَسه پورې د قرآن تعليم هم د زَنانهٔ نه زده کوي (د سړو نه به يې نه زده کوي) ، البته د مجبورۍ په وجه يې د نارينهٔ نه هم زده کولې شي.

همدارنګې په بخاري شريف او مسلم شريف کې حديث دی چې کله سړې په مانځه ولاړ وي او څوک دده مخې ته تيرېږي نو دا به په سُبحان الله ويلو سره هغه خبردار کوي ،

---

(۱) ﴿ وَلَا يَضۡرِبۡنَ بِأَرۡجُلِهِنَّ لِيُعۡلَمَ مَا يُخۡفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ ﴾. النور آية ۳۱.

عَنْ بُنَانَةَ، مَوْلَاةِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَسَّانَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ، قَالَتْ: بَيْنَمَا هِيَ عِنْدَهَا إِذْ دُخِلَ عَلَيْهَا بِجَارِيَةٍ وَعَلَيْهَا جَلَاجِلُ يُصَوِّتْنَ، فَقَالَتْ: لَا تُدْخِلْنَهَا عَلَيَّ إِلَّا أَنْ تَقْطَعُوا جَلَاجِلَهَا، وَقَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: « لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ جَرَسٌ » . سنن ابي داؤد رقم الحديث ۴۲۳۱ كِتَاب الخَاتَمِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الجَلَاجِلِ قال الالباني: حسن . مشكوة المصابيح رقم الحديث ۴۳۹۹ (۱۷) بَاب الخَاتَم الفَصْل الثَّانِي. فتاوى حقانيه ج ۲ ص ۴۱۱ ، و مثله في امداد الفتاوى ج ۴ ص ۱۳۷ كتاب الحظر والاباحة .

قال القرطبي رَحِمَهُ اللهُ : قَوْلُهُ تَعَالَى : ( وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ ) الآية ، أَيْ لَا تَضْرِبُ الْمَرْأَةُ بِرِجْلِهَا إِذَا مَشَتْ لِتُسْمِعَ صَوْتَ خَلْخَالِهَا، فَإِسْمَاعُ صَوْتِ الزِّينَةِ كَإِبْدَاءِ الزينة وأشدّ . تفسير القرطبي ج ۱۲ ص ۲۳۷ سورة النور آية ۳۱ . فتاوى علمانيه ج ۱۰ ص ۳۱۰ باب الزينة .

خو که ښځه په مانځه ولاړه وي او ددې مخې ته څوک تيرېږي نو دا به خپې لاس په چپ لاس باندې اُووهي ( ټک به ورنه اُوباسي ) او هغه به خبردار کړي . ( ددينه هم معلومېږي چې د زَنانه آواز عورت دی ) .

ليکن د صحيح احاديثو نه دا ثابته ده چې د نبي عليه السلام بيبيانو به د حِجاب حکم نازليدو نه پس هم د پَردې شاته د پرَدو سړو سره خبرې کولی ( يعنی د دِيني مسائلو جوابونه به يې ورکول ، ددينه معلومېږي چې د زَنانه آواز عورت ندی ) .

ددې ټولو رواياتو راجمع کولو نه صحيح خبره دا معلومېږي چې په کوم ځای کې د زَنانه د آواز نه د فِتنې پيدا کيدو يَره وي نو هلته به زَنانه د پرَدو سړو سره د خبرو کولو نه منع کولې شي ، او که د فِتنې يَره نه وي نو بيا خېر دی .

خو اِحتياط په دې کې دی چې د پَردې شاته هم زَنانه د پرَدو سړو سره بِلاضرورته خبرې اونکړي . (۱)

څه تحقيق ابوبکر جصاص رازي رَحِمَهُ اللَّهُ په احکام القرآن کې هم کړی . (۲)

فقهاءِ کرامو هم ليکلي چې ښځه به بِلاضرورته د پرَدو سړو سره خبرې نه کوي ، ځکه د ښځې په آواز کې کشش دی ، خلق ورته مائله کيږي . بيا خاصکر د ښځې د پاره آواز اُوچتول ، يا پرَدو سړو سره په نرمه لهجه کې خبرې کول خو بغير د شک و شبهې نه ناجائز دي . علامه شامي رَحِمَهُ اللَّهُ او علامه طحطاوي رَحِمَهُ اللَّهُ ددې پوره تحقيق ذکر کړی . (۳)

---

(۱) تفسير معارف القرآن سورة النور في تشريح آية ۳۱ .

(۲) (وَلا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ ما يُخْفِينَ مِنْ زِينَتِهِنَّ) .... وَفِيهِ دَلَالَةٌ عَلَى أَنَّ الْمَرْأَةَ مَنْهِيَّةٌ عَنْ رَفْعِ صَوْتِهَا بِالْكَلَامِ بِحَيْثُ يَسْمَعُ ذٰلِكَ الْأَجَانِبُ إِذْ كَانَ صَوْتُهَا أَقْرَبَ إِلَى الْفِتْنَةِ مِنْ صَوْتِ خَلْخَالِهَا . وَلِذٰلِكَ كَرِهَ أَصْحَابُنَا أَذَانَ النِّسَاءِ لِأَنَّهُ يُحْتَاجُ فِيهِ إِلَى رَفْعِ الصَّوْتِ وَالْمَرْأَةُ مَنْهِيَّةٌ عَنْ ذٰلِكَ . وَهُوَ يَدُلُّ أَيْضًا عَلَى حَظْرِ النَّظَرِ إِلَى وَجْهِهَا لِلشَّهْوَةِ إِذْ كَانَ ذٰلِكَ أَقْرَبَ إِلَى الرِّيبَةِ وَأَوْلَى بِالْفِتْنَةِ . احكام القرآن ج ۵ ص ۱۷۷ النور في تشريح آية ۳۱.

(۳) وَصَوْتُهَا عَلَى الرَّاجِحِ . الدرالمختار . (قَوْلُهُ : وَصَوْتُهَا) مَعْطُوفٌ عَلَى الْمُسْتَثْنَى يَعْنِي أَنَّهُ لَيْسَ بِعَوْرَةٍ (قَوْلُهُ : عَلَى الرَّاجِحِ) عِبَارَةُ الْبَحْرِ عَنِ الْحِلْيَةِ أَنَّهُ الْأَشْبَهُ . وَفِي النَّهْرِ وَهُوَ الَّذِي يَنْبَغِي اعْتِمَادُهُ . وَمُقَابِلُهُ مَا فِي النَّوَازِلِ : نَغْمَةُ الْمَرْأَةِ عَوْرَةٌ . وَتَعَلُّمُهَا الْقُرْآنَ مِنَ الْمَرْأَةِ أَحَبُّ . قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ « اَلتَّسْبِيحُ لِلرِّجَالِ ، وَالتَّصْفِيقُ لِلنِّسَاءِ » فَلَا يَحْسُنُ أَنْ يَسْمَعَهَا الرَّجُلُ . اهـ . وَفِي الْكَافِي : وَلَا تُلَبِّي جَهْرًا ←←←←←←← ←←←←←←←

په فتاوى عثمانيه کې ذکر دي : شريعت ښځه په دومره اُوچت آواز سره د خبرو کولو نه منع کړې چې پردې سړي د دې خبرې واوري .

همدارنګې که ښځه د څه ضرورت په وجه د پردو سړو سره خبرې کوي نو په نرمۍ او دلکش لهجه کې ورته خبرې کول ناجائز دي ، البته که ضرورت راشي مثلاً څوک دروازه رااُووهي او په کور کې څوک نارينه نه وي چې ور اُووځي ، يا ټيلفون راشي او نور څوک د رااُوچتولو نه وي نو بيا زنانه ته په سخته او اجنبي لهجه کې د خبرو کولو اجازت شته .(۱)

علماؤ دا هم ليکلي : صحيح داده چې د زنانه آواز عورت ندی ليکن د عوارِضو په وجه بعضې جائز اُمور هم ناجائز کيږي ، په فقه کې د دې دير مثالونه شته .

لهذا د فتنې نه د بچ کيدو په خاطر د ښځې آواز هم په پرده کې داخل دی . ځکه د ښځو په

←←← لِأَنَّ صَوْتَهَا عَوْرَةٌ . وَمَشٰى عَلَيْهِ فِي الْمُحِيْطِ فِيْ بَابِ الْأَذَانِ بَحْرٌ . قَالَ فِي الْفَتْحِ: وَعَلٰى هٰذَا لَوْ قِيْلَ إِذَا جَهَرَتْ بِالْقِرَاءَةِ فِي الصَّلَاةِ فَسَدَتْ كَانَ مُتَّجِهًا . وَلِهٰذَا مَنَعَهَا عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مِنَ التَّسْبِيْحِ بِالصَّوْتِ لِإِعْلَامِ الْإِمَامِ بِسَهْوِهِ إِلَى التَّصْفِيْقِ اهـ وَأَقَرَّهُ الْبُرْهَانُ الْحَلَبِيُّ فِيْ شَرْحِ الْمُنْيَةِ الْكَبِيْرِ . وَكَذَا فِي الْإِمْدَادِ ؛ ثُمَّ نَقَلَ عَنْ خَطِّ الْعَلَّامَةِ الْمَقْدِسِيِّ : ذَكَرَ الْإِمَامُ أَبُو الْعَبَّاسِ الْقُرْطُبِيُّ فِيْ كِتَابِهِ فِي السَّمَاعِ : وَلَا يَظُنُّ مَنْ لَا فِطْنَةَ عِنْدَهُ أَنَّا إِذَا قُلْنَا صَوْتُ الْمَرْأَةِ عَوْرَةٌ أَنَّا نُرِيْدُ بِذٰلِكَ كَلَامَهَا . لِأَنَّ ذٰلِكَ لَيْسَ بِصَحِيْحٍ . فَإِذَا نُجِيْزُ الْكَلَامَ مَعَ النِّسَاءِ لِلْأَجَانِبِ وَمُحَاوَرَتِهِنَّ عِنْدَ الْحَاجَةِ إِلٰى ذٰلِكَ . وَلَا نُجِيْزُ لَهُنَّ رَفْعَ أَصْوَاتِهِنَّ وَلَا تَمْطِيْطَهَا وَلَا تَلْيِيْنَهَا وَتَقْطِيْعَهَا لِمَا فِيْ ذٰلِكَ مِنْ اِسْتِمَالَةِ الرِّجَالِ إِلَيْهِنَّ وَتَحْرِيْكِ الشَّهَوَاتِ مِنْهُمْ . وَمِنْ هٰذَا لَمْ يَجُزْ أَنْ تُؤَذِّنَ الْمَرْأَةُ .
رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۰۶ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِيْ سَتْرِ الْعَوْرَةِ .

وتقدم في الأذان أَنَّ صَوْتَهَا عَوْرَةٌ . وليس المراد كلامها بل ما يحصل من تليينه وتمطيطه لا يحل سماعه . مراقي الفلاح . قوله : "إن صوتها عورة" هو ما في النوازل وجرى عليه في المحيط والكافي حيث علّلا عدم جهرها بالتلبية بأن صوتها عورة . قال في الفتح : وَعَلٰى هٰذَا لَوْ قِيْلَ إِذَا جَهَرَتْ بِالْقِرَاءَةِ فِي الصَّلَاةِ فَسَدَتْ كَانَ مُتَّجِهًا . لكن قال ابن أمير حاج الأشبه أنه ليس بعورة وإنما يؤدي إلى الفتنة واعتمده في النهر أفاده السيد وظاهر هذا ان الخلاف في الجهر بالصوت فقط لا في تمطيطه وتليينه وهو ينافي ما قاله المصنف ونقله المقدسي عن أبي العباس القرطبي في كتابه في السماع ونصه : وَلَا يَظُنُّ مَنْ لَا فِطْنَةَ عِنْدَهُ أَنَّا إِذَا قُلْنَا .... حاشية الطحطاوي على مراقي الفلاح ج ۱ ص ۲۴۲ فصل في متعلقات الشروط وفروعها .

(۱) احكام القرآن للجصاص و من سورة الاحزاب ج ۳ ص ۳۵۹ ، فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۸۳ الحجاب .

خبرو هم خلق عاشقان کیږي . (۱)

# چې زَنانه د زیوراتو آواز ښکاره کولو نه منع شوی نو خپل آواز به په طریقِ اَولی نه ښکاره کوي

الله تعالی فرمایي : ﴿ وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ ﴾ . (۲)

ترجمه : او دا زَنانه دې ( د تللو په وخت ) زمکه په خپلو خپو باندې( ددې د پاره ) په زُوره نه وهي چې په دې سره ددې د هغه پټو زیوراتو آواز معلوم شي .

په دې ځای کې دا نُکته د ذکر کولو قابله ده چې کله الله تعالی زَنانه په زمکه باندې په زُوره خپه وهلو نه منع کړي چې پرَدې کس ددې د خپو د زیوراتو آواز وا نه وري نو چې چیرته د فِتنې یره وي هلته خو ورله آواز پټول په طریقِ اولی لازم شو ، ځکه ددې آواز خو د فِتنې سبب ګرځي .

دغه وجه ده چې کله د ضرورت په وجه زَنانه د پرَدو سړو سره خبرې کوي نو الله تعالی په نرمه لهجه کې د خبرو کولو نه منع کړې ، الله ﷻ اَزواج مُطهّرات ته فرمایي :

﴿ يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ إِنِ اتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ وَقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴾ . (۳)

ترجمه : اې د پیغمبر بیبیانو ! تاسو د نورو عامو ښځو په شان نهَ یئ کهِ چیرته تاسو پرهیزګاره اُوسیدل غواړئ ( او د الله ﷻ نه یَره لرئ ) نو ( د ضرورت په وخت د پرَدو سړو سره ) په خبرو کولو کې نَرمي مه کوئ ( ځکه که تاسو په نَرمه لهجه کې خبرې اوکړئ نو ) هسې نه چې د چا په زړه کې مرض وي د هغه طمع پیدا شيَ ، او په مناسبه طریقه خبرې کوئ .

باوجود ددینه چې د نبي علیه السلام بیبیانې پاکدامنې وې ، او د مؤمنانو موراني وې خو بیا هم الله تعالی هغوی ته دا حکم اوکړو چې د پرَدو سړو سره په نَرمه او پَسته لهجه کې

(۱) امداد الفتاوی ، ملفوظات اشرفیه ، الافاضات الیومیة ، پرده ضروری ص ۲۳۸ .

(۲) النور آیة ۳۱ .

(۳) الاحزاب آیة ۳۲ .

خبرې مه کوئ ددې د پاره چې د منافق سړي طمع پيدا نشي ، نو اوس خو د عامو زنانهؤ د پاره په طريقِ اولی دا خبره ضروري شوه چې د پردو سړو د وړاندې به په داسې انداز باندې خبرې نه کوي چې د هغې نه د سړو خرابه طمع پيدا کيږي .

پس معلومه شوه چې چيرته د فِتنې يَره وي هلته به زنانه خپل آواز د پردو سړو د وړاندې نه اوچتوي .

## ښځو د پاره د سړو په مخکې تقرير کول ، يا د ښځې تقرير اوريدل

په **فتاوی محموديه** کې ذکر دي : بغير د ضرورت شديده نه د ښځو د پاره د سړو په مَجمع کې تقرير کول منع دي ، ځکه چې کله علماء کرامو د ښځو د پاره جُمات ته د مانځه د پاره تلل منع کړي دي که دا په بُرقع کې وي او که بغير د بُرقعې نه وي ځکه چې د ښځې جُمات ته تللو کې ډير مفاسد دي نو د سړو په مَجمع کې ورله (بغير د سخت ضرورت نه) تقرير کول هم منع دي . (۱)

په کومه مَجمع (غونډه) کې چې ښځه تقرير کوي نو د سړو د پاره په داسې مجلس کې شرکت کول او د هغې تقرير اوريدل شرعًا صحيح ندی . (۲)

په " آپ کے مسائل اور اُن کا حل " کې ذکر دي : د ښځې آواز شرعًا په ستَر کې داخل دی ، پردو سړو ته ددې اوريدل ، يا يې پردو سړو ته اورول ناجائز دی ، بيا خاصکر چې کله د فِتنې يَره وي . (۳)

---

(۱) قال الحصكفي رَحِمَهُ اللّٰهُ : (وَيُكْرَهُ حُضُورُهُنَّ الْجَمَاعَةَ) وَلَوْ لِجُمُعَةٍ وَعِيْدٍ وَوَعْظٍ (مُطْلَقًا) وَلَوْ عَجُوْزًا لَيْلًا (عَلَى الْمَذْهَبِ) الْمُفْتٰى بِهِ لِفَسَادِ الزَّمَانِ . رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۵٦٦ بَابُ الْإِمَامَةِ . البحرالرائق ج۱ ص ۲۵۸ باب الامامة ، طحطاوي مع المراقي ص ۲۴٦ فصل في بيان الأحق بالإمامة . فتاوی محموديه ج ۲۸ ص ۷۳ پردہ کا ثبوت اور اس کا وجوب .

(۲) وَلَا نُجِيْزُ لَهُنَّ رَفْعَ أَصْوَاتِهِنَّ وَلَا تَمْطِيْطَهَا وَلَا تَلْيِيْنَهَا وَتَقْطِيْعَهَا لِمَا فِيْ ذٰلِكَ مِنْ اِسْتِمَالَةِ الرِّجَالِ إِلَيْهِنَّ وَتَحْرِيْكِ الشَّهَوَاتِ مِنْهُمْ . وَمِنْ هٰذَا لَمْ يَجُزْ أَنْ تُؤَذِّنَ الْمَرْأَةُ . رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۰٦ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِيْ سَتْرِ الْعَوْرَةِ . فتاوی محموديه ج ۲۸ ص ۷۳ پردہ کا ثبوت اور اس کا وجوب .

(۳) وَلَا نُجِيْزُ لَهُنَّ رَفْعَ أَصْوَاتِهِنَّ وَلَا تَمْطِيْطَهَا وَلَا تَلْيِيْنَهَا وَتَقْطِيْعَهَا لِمَا فِيْ ذٰلِكَ مِنْ اِسْتِمَالَةِ ←←←←

لهذا ددینه د نن دَور د ښځو تقریرونه ثابتول صحیح ندي . ځکه حضرت عائشه رضي الله عنها د مؤمنانو مور وه ، او د صحابه کرامو زمانه پاکه وه ، د نن دَور ښځې او سړي په هغې باندې قیاس کول صحیح ندي . (۱)

## د زَنانه تلاوت پرَدو خلقو ته اَورول ناجائز دی

په امداد الفتاویٰ کې ذکر دي : د زَنانه تلاوت پرَدو سړو ته اَورول هیڅ کله جائز ندي

لأنّه اسماع صوتِ المرأة بِلا ضرورة شرعيّة .

ځکه دا بغیر د ضرورتِ شرعیه نه بل ته د زَنانه آواز اَورول دي. ( او دا ناجائز دی) . (۲)

## د جینکو د پاره د نعت خوانۍ په مقابله کې حصه اخیستل

په یو مجلس کې د الله تعالی صفات بیانول یا د نبي علیه السلام محاسنِ ذکر کول اګر چې د برکت او ثواب ذریعه ده ، ځکه نبي علیه السلام به حضرت حسان رضي الله عنه په ممبر باندې کینول او د هغه اشعار به یې اَوریدل ، په دې اشعارو کې به د نبي علیه السلام صفتوُ .

نعت لکه څرنګې چې سړي ویلې شي نو همدغه شان ښځو ته هم د نعت ویلو ګنجائش شته خو شرط دادی چې په دې مجلس کې اَوریدونکې صرف ښځې وي ، سړي نه وي ، او روستو هم د ویډیو یا آډیو په ذریعه دا آواز سړو ته اُونه رَسي .

نن صبا چې د جینکو د پاره د نعت خوانۍ کومې مقابلې منعقد کولې شي نو دا اګر چې فِي نَفسه جائز دي لیکن داسې محافل په خارجي فساداتو باندې مشتمل وي نو ځکه جینکو ته په دې کې د حصه اخیستلو اجازت نشته .

داسې مجالس عام طور باندې په دې مفاسدو باندې مشتمل وي :

۱ . په داسې مجالسو کې د سړو او ښځو اختلاط وي ، چې دا په شریعت کې منع دی .

۲ . په داسې مجالسو کې اکثر هغه جینکۍ حصه اخلي چې هغه بالغې وي ، یا کم از کم مُراهقې وي .

---

(۱) آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۹۱ پردہ .

(۲) امداد الفتاوی لمولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله ج ۴ ص ۲۰۰ عورتوں کے پردے اور نظر ولمس وغیرہ کے احکام طبع دار العلوم کراچی .

۳. كومې جينكۍ چې د نعت مقابلې ته راځي نو دوى مېک اَپ كړې وي ، ځان يې ښائسته كړې وي ، او بيا په خوږ آواز كې نعت وايي ، چې په دې سره خلق ځان طرف ته مائله كوي ، حالانكه په احاديثو كې ددينه ممانعت راغلې ده.

۴. اكثر په داسې مجالسو كې د الله ﷻ حمد او د نبي عليه السلام صفت كول مقصود نه وي ، بلكه صرف خلقو ته نمائش او ځان خودل وي ، چې ددينه هم ممانعت راغلې دی.

۵. په داسې مجالسو كې د جينكو ويډيوګانې كولې شي چې دا بيا روستو هم پردي سړي ګوري چې دا هم شرعًا ممنوع دي.

چونكه په داسې مجالسو كې ډير فسادات دي لهذا د جينكو د پاره په دې كې شركت كول ناجائز دی.(۱)

البته كه په يو مجلس كې دا مذكوره فسادات نه وي او صرف ښځې راجمع وي نو بيا كه يوه جينۍ د الله ﷻ حمد و ثناء بيانوي يا نعت وايي يا د دين خبرې كوي نو دا خېر دی.(۲)

## په هسپتال او هوائي جهاز كې د ډيوټۍ واله ښځو سره خبرې كول

په **فتاوى عثمانيه** كې ذكر دي : شرعي لحاظ سره هيڅ ته دا جائز ندي چې هغه پردۍ ښځې ته د شهوت په نظر اوګوري يا ورسره خبرې اوكړي ، البته د ضرورت په وخت ورسره بغير شهوته ضروري خبرې كولې شي. لهذا په هسپتال كې چې كومې نرسانې په ډيوټۍ

(۱) وَلَا نُجِيزُ لَهُنَّ رَفْعَ أَصْوَاتِهِنَّ وَلَا تَمْطِيطَهَا وَلَا تَلْيِينَهَا وَتَقْطِيعَهَا لِمَا فِي ذٰلِكَ مِنْ اِسْتِمَالَةِ الرِّجَالِ إِلَيْهِنَّ وَتَحْرِيكِ الشَّهَوَاتِ مِنْهُمْ . وَمِنْ هٰذَا لَمْ يَجُزْ أَنْ تُؤَذِّنَ الْمَرْأَةُ . البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج ۱ ص ۲۸۵ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ . رد المحتار على الدر المختار بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ ج ۱ ص ۴۰۶ .

دَرْءُ الْمَفَاسِدِ أَوْلٰى مِنْ جَلْبِ الْمَنَافِعِ. أَيْ: إِذَا تَعَارَضَتْ مَفْسَدَةٌ وَمَصْلَحَةٌ يُقَدَّمُ دَفْعُ الْمَفْسَدَةِ عَلٰى جَلْبِ الْمَصْلَحَةِ . فَإِذَا أَرَادَ شَخْصٌ مُبَاشَرَةَ عَمَلٍ يُنْتِجُ مَنْفَعَةً لَهُ، وَلٰكِنَّهُ مِنَ الْجِهَةِ الْأُخْرٰى يَسْتَلْزِمُ ضَرَرًا مُسَاوِيًا لِتِلْكَ الْمَنْفَعَةِ أَوْ أَكْبَرَ مِنْهَا يَلْحَقُ بِالْآخَرِينَ . فَيَجِبُ أَنْ يُقْلِعَ عَنْ إِجْرَاءِ ذٰلِكَ الْعَمَلِ دَرْءًا لِلْمَفْسَدَةِ الْمُقَدَّمِ دَفْعُهَا عَلٰى جَلْبِ الْمَنْفَعَةِ ، لِأَنَّ الشَّرْعَ اعْتَنٰى بِالْمَنْهِيَّاتِ أَكْثَرَ مِنْ اعْتِنَائِهِ بِالْمَأْمُورِ بِهَا . درر الحكام في شرح مجلة الأحكام ج ۱ ص ۴۱ (الْمَادَّةُ ۳۰) دَرْءُ الْمَفَاسِدِ أَوْلٰى مِنْ جَلْبِ الْمَنَافِعِ.

(۲) فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۱۰۰ الحجاب

(کار) باندې مقرر شوي وي ، یا په هوائي جهاز کې کومې ښځې د خدمت د پاره مقرر شوي وي د ضرورت په وخت د هغوی سره خبرې کول یا ورنه څه تپوس کول جائز دی.

خو د خبرو په وخت هغوی طرف ته کتلو کې د فِتنې یَره ده نو بغیر د کتلو به ورسره خبرې کوي.(۱)

په **فتاوی محمودیه** کې ذکر دي : که نَامَحرَمه (پَردی) ښځو سره د خبرو کولو ضرورت راشي نو نیغ نیغ به ورته نه ګوري ، خپل نظر به ښکته ساتي ، بیا ورسره خبرې کول جائز دي.(۲)

## ښځه قاضیه (جَجَه) جوړیدل ناجائز دي

تولې هغه عُهدې چې په هغې کې د هر چا سره د اِختلاط او ملاویدو ضرورت وي نو شریعت د داسې عُهدو ذِمه دارۍ په سړو باندې اچولې ده ، په ښځو یې نده اچولې.

په دې کې یوه عُهده د قاضي (جَج) جوړیدلو هم ده ، شریعت د دې ذِمه دارۍ په سړي باندې اچولی ، ښځه قاضیه (جَجَه) جوړیدل ناجائز دي.

د علماؤ په دې باندې اتفاق دی چې ښځه د مُلک بادشاه او قاضي نشي جوړیدی ؛ ځکه بادشاه ته د جهاد کولو او د مسلمانانو کارونه کولو د پاره بهر ته د وتلو ضرورت وي او قاضي ته هم د خلقو فیصلو کولو د پاره بهر ته د راوتلو ته ضرورت وي ، او ښځې ته خو دا جائز ندي چې بغیر ضرورته بهر راأووځي ، بل دا چې ښځه کمزورې ده ډیر کارونه نشي

---

(۱) ....فَإِنَّا لجيزُ الكَلامَ مَعَ النِّسَاءِ الأَجَانِبِ وَمُحَاوَرَتِهِنَّ عِنْدَ الحَاجَةِ إِلى ذٰلِكَ ... البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج ۱ ص ۲۸۵ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ. رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۰۶ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ العَوْرَةِ . فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۱۰۲ الحجاب.

(۲) وَيَجُوزُ الكَلَامُ المُبَاحُ مَعَ امْرَأَةٍ أَجْنَبِيَّةٍ . رد المحتار على الدر المختار ج ۶ ص ۲۶۹ كِتَابُ الحَظْرِ وَالإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالمَسِّ .

وَقَوْلُهُ : (فَقَالَتْ مَرْحَبًا وَأَهْلًا) ... وَفِيهِ جَوَازُ سَمَاعِ كَلَامِ الأَجْنَبِيَّةِ وَمُرَاجَعَتِهَا الكَلَامَ لِلحَاجَةِ . شرح النووي على مسلم ( المنهاج شرح صحيح مسلم بن الحجاج ) ج ۱۳ ص ۲۱۲ في تشريح حديث ۱۴۰ (۲۰۳۸) بَابُ جَوَازِ اسْتِتْبَاعِهِ غَيْرَهُ إِلَى دَارِ مَنْ يَثِقُ بِرِضَاهُ بِذٰلِكَ..... فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۱۳۸ .

کولی، بل دا چې ښځه ناقصُ العقل ده، بادشاهي او قضاء کامل ولایت غواړي، لهذا ددې د پاره کامِل سړې په کار دی. (نو د ښځو د پاره بادشاه یا قاضي جوړیدل ناجائز دي).(۱)

د نبي علیه السلام او خلفای راشدینو په زمانه کې تَکړه تَکړه ښځې موجود وې لیکن دوې یوه ښځه هم قاضیه نده جوړه کړې.

او په دې باندې د ائمه اَربعهؒ اتفاق دی چې ښځه قاضِیه جوړول ناجائز ده.

د نورو درې اَئمهؒ په نزد په څه معامله کې د ښځې فیصله نافذ نده، او د امام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد ددې فیصله د حُدود او قصاص نه علاوه په نورو اُمورو کې نافذ ده، خو ښځه قاضیه جوړول گناه ده.

فقهاؤ لیکلي چې په کومو کارونو کې د ښځو گواهي معتبر ده په هغې کې ددې فیصله معتبر ده چې کله دا فیصله د شریعت موافق وي، خو څوک چې ښځه قاضیه جوړوي نو داسې کس گناهگار دی.

ددې مثال داسې دی لکه یو کس په اَرضِ مغصوبه کې مونځ اوکړي او یا یې په مانځه کې پینځې د خَنگرو نه ښکته وي نو فرض مونځ یې کیږي خو ورسره گناهگار هم دی.

همدغه شان چې څوک ښځه قاضیه مقرر کړي نو د حدود او قصاص نه علاوه په نورو اُمورو کې یې فیصله نافذ ده، خو څوک چې دا قاضیه جوړوي نو داسې کس گناهگار دی

(۱) اِتَّفَقُوا عَلَى أَنَّ الْمَرْأَةَ لَا تَصْلُحُ أَنْ تَكُونَ إِمَامًا وَلَا قَاضِيًا، لِأَنَّ الْإِمَامَ يَحْتَاجُ إِلَى الْخُرُوجِ لِإِقَامَةِ أَمْرِ الْجِهَادِ. وَالْقِيَامِ بِأُمُورِ الْمُسْلِمِينَ، وَالْقَاضِي يَحْتَاجُ إِلَى الْبُرُوزِ لِفَصْلِ الْخُصُومَاتِ، وَالْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ لَا تَصْلُحُ لِلْبُرُوزِ. وَتَعْجَزُ لِضَعْفِهَا عِنْدَ الْقِيَامِ بِأَكْثَرِ الْأُمُورِ، وَلِأَنَّ الْمَرْأَةَ نَاقِصَةٌ، وَالْإِمَامَةُ وَالْقَضَاءُ مِنْ كَمَالِ الْوِلَايَاتِ فَلَا يَصْلُحُ لَهَا إِلَّا الْكَامِلُ مِنَ الرِّجَالِ. شرح السنة للبغوي ج ۱۰ ص ۷۷ بَابُ كَرَاهِيَةِ تَوْلِيَةِ النِّسَاءِ في تشريح حديث ۲۴۸۷. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح كِتَابُ الْإِمَارَةِ وَالْقَضَاءِ ج ۶ ص ۲۴۰۶ في تشريح حديث ۳۶۹۳. التعليق الصبيح ج ۴ ص ۲۰۰ كتاب الامارة والقضاء.

علامه بدرالدین عیني رَحِمَهُ اللهُ په عمدة القاري کې لیکلي: قَالَ الْخَطَّابِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: فِي الْحَدِيثِ أَنَّ الْمَرْأَةَ لَا تَلِي الْإِمَارَةَ وَلَا الْقَضَاءَ. عمدة القاري شرح صحيح البخاري ج ۱۸ ص ۵۹ في تشريح حديث ۴۴۲۵.

علامه خطابي رَحِمَهُ اللهُ فرمایلي: په (مذکوره) حدیث کې دا خبره ذکر ده چې ښځه د حکومت او قضاء اهل نده.

او په کومو کارونو کې چې د ښځو شهادت معتبر نه دی په هغې کې د دې فيصله هم معتبر نده. (۱)

## ښځه د مُلک حُکمرانه ( بادشاه ) جوړيدل شرعًا ناجائز دي

په اسلام کې د ښځې د پاره د ملک حُکمرانه ( بادشاه ) جوړيدل ناجائز دي.

چونکه نن صبا د ښځو بادشاه کيدل او په غټو عُهدو باندې مقرر کيدل ډير دي نو ځکه دا مسئله درته د قرآن کريم او احاديثو په رڼا کې تفصيلاً ذکر کوم:

الله تعالى فرمايي:

﴿ اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ﴾. (۲)

ترجمه: سړي په ښځو باندې حاکمان ( نِگرانان ) دي ، د دې په وجه چې الله تعالى بعضو ( يعنى سړو ) ته په بعضو ( يعنى ښځو ) باندې فضيلت ورکړى.

علامه ابن کثير رَحِمَهُ اللّٰهُ د دې آيت تشريح داسې کړى:

{ اَلرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ } أَيِ: الرَّجُلُ قَيِّمٌ عَلَى الْمَرْأَةِ، أَيْ هُوَ رَئِيسُهَا وَكَبِيرُهَا وَالْحَاكِمُ عَلَيْهَا وَمُؤَدِّبُهَا إِذَا اعْوَجَّتْ {بِمَا فَضَّلَ اللهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ} أَيْ: لِأَنَّ الرِّجَالَ أَفْضَلُ مِنَ النِّسَاءِ، وَالرَّجُلُ خَيْرٌ مِنَ الْمَرْأَةِ ، وَلِهٰذَا كَانَتِ النُّبُوَّةُ مُخْتَصَّةٌ بِالرِّجَالِ وَكَذٰلِكَ الْمُلْكُ الْأَعْظَمُ. (۳)

{ سړي په ښځو باندې حکمرانان دي } يعنى سړى په ښځه باندې رئيس ، مشر ، او حاکم دى ، او کله چې کږه شي نو اَدب ورکوونکى دى ، دا ځکه چې سړي د ښځو نه افضل

---

(۱) ( وَالْمَرْأَةُ تَقْضِيْ فِيْ غَيْرِ حَدٍّ وَقَوَدٍ وَإِنْ أَثِمَ الْمُوَلِّيْ لَهَا ) لِخَبَرِ الْبُخَارِيِّ « لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمْ اِمْرَأَةً ». الدرالمختار ( قَوْلُهُ: فِيْ غَيْرِ حَدٍّ وَقَوَدٍ ) لِأَنَّهَا لَا تَصْلُحُ شَهَادَةً فِيْهِمَا فَلَا تَصْلُحُ حَاكِمَةً. رد المحتار على الدر المختار ج ۵ ص ۴۴۰ بَابُ كِتَابِ الْقَاضِيْ إِلَى الْقَاضِيْ مَطْلَبٌ فِيْ جَعْلِ الْمَرْأَةِ شَاهِدَةً فِي الْوَقْفِ . آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۶۱۷ پرده ، فتاوى محموديه ج ۲۵ ص ۱۰۰ قضاء وتحکيم کے احکام .

(۲) النساء آية ۳۴ .

(۳) تفسير ابن كثير (تفسير القرآن العظيم) ج ۲ ص ۲۹۲ سورة النساء آية ۳۴ .

او بهتر دي ، همدغه وجه ده چې پيغمبري د سړو پورې خاص ده ، او همدغه رنګې د مُلک بادشاه هم صرف سړي جوړيدې شي ( ښځه نشي جوړيدى ) .

## چې ښځه د کوم قوم بادشاه شي هغوی به هيڅ کله کامياب نشي

د بخاري شريف حديث دی ، چې کله نبي ﷺ ته دا خبره اُورسيده چې د فارس (اِيران) واله خلقو د کِسرى لور بادشاه جوړه کړه ، نو دوی اوفرمايل :

لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمْ اِمْرَأَةً .(۱)

هغه قوم به هيڅ کله کامياب نشي چې هغوی خپله معامله ښځې ته اُوسپارله .

مولانا عبدالحق محدّث دهلوي رَحِمَهُ اللهُ ددې حديث په تشريح کې ليکلي :

*ازين معلوم ميشود که زن قابل ولايت وامارت نيست* .(۲)

ددينه معلومه شوه چې ښځه د ولايت ( رياستِ عامه ) او حکومت کولو قابله نده .

علامه بدرالدين عيني رَحِمَهُ اللهُ په عمدة القاري کې د مذکوره حديث په تشريح کې ليکلي :

---

(۱) عَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، قَالَ: لَقَدْ نَفَعَنِي اللهُ بِكَلِمَةٍ أَيَّامَ الْجَمَلِ، لَمَّا بَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ فَارِسًا مَلَّكُوا ابْنَةَ كِسْرَى قَالَ : « لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمُ امْرَأَةً » . صحيح البخاري كِتَابُ الفِتَنِ بَابُ الفِتْنَةِ الَّتِي تَمُوجُ كَمَوْجِ البَحْرِ رقم الحديث ۷۰۹۹ . ورقم الحديث ۴۴۲۵ كِتَابُ المَغَازِي بَابُ كِتَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى كِسْرَى وَقَيْصَرَ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۰۴۳۸ .

وفي رواية : عَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: عَصَمَنِي اللهُ بِشَيْءٍ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا هَلَكَ كِسْرَى. قَالَ: « مَنِ اسْتَخْلَفُوا؟ » قَالُوا: ابْنَتَهُ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمْ امْرَأَةً »، قَالَ: فَلَمَّا قَدِمَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا يَعْنِي البَصْرَةَ ذَكَرْتُ قَوْلَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَصَمَنِي اللهُ بِهِ . سنن الترمذي أَبْوَابُ الفِتَنِ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۲۲۶۲ . وقال الترمذي: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ . سنن النسائي كِتَابُ آدَابِ الْقُضَاةِ النَّهْيُ عَنِ اسْتِعْمَالِ النِّسَاءِ فِي الْحُكْمِ رقم الحديث ۵۳۸۸ . المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۴۶۰۸ .

(۲) اشعة اللمعات شرح مشكوة ج۳ ص ۳۰۹ كتاب الامارة والقضاء .

قَالَ الخطابِيْ رَحِمَهُ اللّٰهُ : فِي الحَدِيْثِ أَنَّ المَرْأَةَ لَا تَلِي الإِمَارَةَ وَلَا القَضَاء. (۱)

علامه خطابي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايلي : په (مذکوره) حدیث کې دا خبره ذکر ده چې ښځه د حکومت او قضاء اهل نده.

د بخاري شریف په حاشیه کې ددې مذکوره حدیث په تشریح کې ذکر دي : د جمهورو دا مذهب دی چې د ښځې سربراهي (بادشاه جوړیدل) ناجائز ده.

امام قرطبي رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې حدیث په باره کې لیکلي :

قَالَ القَاضِيْ أَبُوْ بَكْرِ بْنُ العَرَبِيِّ : هٰذَا نَصٌّ فِيْ أَنَّ المَرْأَةَ لَا تَكُوْنُ خَلِيْفَةً وَلَا خِلَافَ فِيْهِ. (۲)

قاضي ابوبکر بن عربي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي: په دې حدیث کې صراحةً دا خبره موجود ده چې ښځه خلیفه (یعنی د مسلمانانو بادشاه) نشي جوړیدی، او په دې کې د هیچا اختلاف نشته.

**د ښځې په بادشاه جوړولو سره ټول قوم ګناهګاریږي :** د ښځې بادشاه کیدل د قرآن کریم، احادیثو، او اجماع اُمت ښکاره خلاف وَرزي ده. او کوم قوم چې ښځه د ملک بادشاه جوړه کړي نو ددې ګناه په ټول قوم باندې ده. (۳)

رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي : هَلَكَتِ الرِّجَالُ حِيْنَ أَطَاعَتِ النِّسَاءَ. (۴)

---

(۱) عمدة القاري شرح صحيح البخاري ج۱۸ ص۵۹ في تشريح حديث ۴۴۲۵.

(۲) تفسير القرطبي (الجامع لأحكام القرآن) ج۱۳ ص۱۸۳ سورة النمل في تشريح ۲۳.

(۳) آپ کے مسائل اوران کا حل ج۸ ص ۶۲۰، وص ۶۱۸ مرد اور عورت سے متعلق مسائل.

(۴) عَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَاهُ بَشِيْرٌ يُبَشِّرُهُ بِظَفَرِ خَيْلٍ لَهُ وَرَأْسُهُ فِيْ حِجْرِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَقَامَ فَخَرَّ لِلّٰهِ تَعَالَى سَاجِدًا. فَلَمَّا انْصَرَفَ أَنْشَأَ يَسْأَلُ الرَّسُوْلَ فَحَدَّثَهُ. فَكَانَ فِيْمَا حَدَّثَهُ مِنْ أَمْرِ العَدُوِّ وَكَانَتْ تَلِيْهِمْ امْرَأَةٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «هَلَكَتِ الرِّجَالُ حِيْنَ أَطَاعَتِ النِّسَاءَ». المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۷۸۹ وقال الحاكم: هٰذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحُ الإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. وَشَاهِدُهُ صَحِيْحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ. ووافقه الذهبي. مسند البزار رقم الحديث ۳۶۹۲، كنز العمال رقم الحديث ۴۴۵۰۲، المقاصد الحسنة ج۱ ۷۱۱ رقم الحديث ۱۲۷۷. ←←←←←

هغه سړي هلاک شو چې کله هغوی د ښځو تابعداري اوکړه.

د ترمذي شريف حديث دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

إِذَا كَانَ أُمَرَاؤُكُمْ خِيَارَكُمْ، وَأَغْنِيَاؤُكُمْ سُمَحَاءَكُمْ، وَأُمُورُكُمْ شُورَى بَيْنَكُمْ فَظَهْرُ الْأَرْضِ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ بَطْنِهَا، وَإِذَا كَانَ أُمَرَاؤُكُمْ شِرَارَكُمْ وَأَغْنِيَاؤُكُمْ بُخَلَاءَكُمْ وَأُمُورُكُمْ إِلَى نِسَائِكُمْ فَبَطْنُ الْأَرْضِ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ ظَهْرِهَا. (۱)

کله چې ستاسو اميران په تاسو کې بهترين خلق وي، مالدار مو سخيان وي او کارونه مو په مشوره وي نو بيا د زمکې مخ (يعنی ژوند) ستاسو د پاره د زمکې د خيټې (مرګ) نه دير بهتر دی. او کله چې ستاسو اميران په تاسو کې بدترين خلق وي، مالداران مو بخيلان وي، او کارونه مو خپلو ښځو ته سپارلي وي نو بيا د زمکې خيټه (مرګ) ستاسو د پاره د زمکې د شا (يعنی ژوند) نه ډيره بهتره ده.

**د علماؤ اتفاق**: امام بغوي رَحِمَهُ اللهُ او ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ د علماؤ اتفاق ذکر کړی چې د ښځې د پاره د مُلک بادشاه او قاضي جوړيدل ناجائز دي:

اِتَّفَقُوا عَلَى أَنَّ الْمَرْأَةَ لَا تَصْلُحُ أَنْ تَكُونَ إِمَامًا وَلَا قَاضِيًا: لِأَنَّ الْإِمَامَ يَحْتَاجُ إِلَى الْخُرُوجِ لِإِقَامَةِ أَمْرِ الْجِهَادِ، وَالْقِيَامِ بِأُمُورِ الْمُسْلِمِينَ، وَالْقَاضِيَ يَحْتَاجُ إِلَى الْبُرُوزِ لِفَصْلِ الْخُصُومَاتِ، وَالْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ لَا تَصْلُحُ لِلْبُرُوزِ، وَتَعْجِزُ لِضَعْفِهَا عِنْدَ الْقِيَامِ بِأَكْثَرِ الْأُمُورِ، وَلِأَنَّ الْمَرْأَةَ نَاقِصَةٌ، وَالْإِمَامَةُ وَالْقَضَاءُ مِنْ كَمَالِ الْوِلَايَاتِ فَلَا يَصْلُحُ لَهَا إِلَّا الْكَامِلُ مِنَ الرِّجَالِ. (۲)

---

←←← وفي رواية: عَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَّهَ سَرِيَّةً فِي بَعْضِ الْوُجُوهِ، فَجَاءَهُ الْبَشِيرُ يُبَشِّرُهُ، بِأَنَّ وَلِيَ أَمْرِ الْعَدُوِّ امْرَأَةٌ، فَخَرَّ سَاجِدًا، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، وَهُوَ يَقُولُ: «هَلَكَتِ الرِّجَالُ حِينَ أَطَاعَتِ النِّسَاءَ». المعجم الأوسط رقم الحديث ۴۲۵.

(۱) سنن الترمذي أَبْوَابُ الْفِتَنِ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم ۲۲۶۶، حلية الأولياء وطبقات الأصفياء ج ۶ ص ۱۷۶. العقوبات لابن ابي الدنيا ج ۱ ص ۱۸۲ رقم ۲۷۹، السنن الواردة في الفتن للداني ج ۳ ص ۶۶۳ رقم ۳۰۳.

(۲) شرح السنة للبغوي ج ۱۰ ص ۷۷ بَابُ كَرَاهِيَةِ تَوْلِيَةِ النِّسَاءِ في تشريح حديث ۲۴۸۷. مرقاة المفاتيح كِتَابُ الْإِمَارَةِ وَالْقَضَاءِ ج ۶ ص ۲۴۰۶ في تشريح حديث ۳۶۹۳. التعليق الصبيح ج ۴ ص ۲۰۰ كتاب الامارة والقضاء.

د علماؤ په دې باندې اتفاق دی چې ښځه د مُلک بادشاه او قاضي نشي جوړېدی ؛ ځکه بادشاه ته د جهاد کولو او د مسلمانانو کارونه کولو د پاره بهرته د وتلو ضرورت وي، او قاضي ته هم د خلقو فیصلو کولو د پاره بهرته د راوتلو ته ضرورت وي ، او ښځې ته خو دا جائز ندي چې بغیر ضرورته بهر راأووځي. بل دا چې ښځه کمزورې ده ، ډیر کارونه نشي کولی. بل دا چې ښځه ناقصُ العقل ده بادشاهي او قضاء کامل ولایت غواړي، لهذا ددې د پاره کامِل سړې په کار دی. (نو د ښځو د پاره بادشاه یا قاضي جوړېدل ناجائز دي)

**د علماؤ اجماع** : امام قرطبي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

وَأَجْمَعُوا عَلَى أَنَّ الْمَرْأَةَ لَا يَجُوزُ أَنْ تَكُونَ إِمَامًا. (۱)

علماؤ په دې باندې اجماع کړی چې د ښځې د پاره دا جائز ندي چې د مُلک بادشاه جوړه شي.

د شرح عقائد شرح " نبراس" کې ذکر دي :

قَدْ أَجْمَعَ الْأُمَّةُ عَلَى عَدَمِ نَصْبِهَا حَتَّى فِي الْإِمَامَةِ الصُّغْرٰى. (۲)

اُمّتِ مسلمه په دې باندې اجماع کړی چې د ښځې د پاره اِمامتِ کُبرٰی (بادشاه جوړېدل) ناجائز دی ، تردې چې امامتِ صُغرٰی ( د مانځه امامت ) ورله هم ناجائز دی.

## د بادشاه جوړېدو صفتونه صرف په سړو کې دي ، په ښځو کې نشته

د بادشاهۍ د پاره چې کوم صفتونه ضروري دي هغه الله تعالی په سړو کې پیدا کړي دي ، په ښځو کې یې ندي پیدا کړي.

**کامِلُ العقل او نارینه کیدل** : د بادشاه جوړېدو د پاره یو شرط دا دی چې دا به کامِلُ

---

(۱) تفسیر القرطبي ج ۱ ص ۲۷۰ سورة البقرة في تشریح آیة ۳۰ .

امام قرطبي رَحِمَهُ اللهُ د بخاري شریف د یو حدیث ذکر کولو نه روستو فرمایلي :

قَالَ الْقَاضِي أَبُو بَكْرِ بْنُ الْعَرَبِيِّ : هٰذَا نَصٌّ فِي أَنَّ الْمَرْأَةَ لَا تَكُونُ خَلِيفَةً وَلَا خِلَافَ فِيهِ . تفسیر القرطبي ( الجامع لأحكام القرآن ) ج ۱۳ ص ۱۸۳ سورة النمل في تشریح آیة ۲۳ .

(۲) النبراس شرح شرح العقائد ص ۳۲۱ نصب الامام بشرط ان یکون الامام من اهل الولایة .

العقل وي او نارينه به وي ، او په ښځه کې دا دواړه صفتونه نشته.

په بخاري شريف او مسلم شريف کې صراحةً دا ذکر شوي چې د ښځو په عقل او دِين کې نقصان دی:

رسولُ الله ﷺ زنانه وُ ته اوفرمايل .... مَا رَأَيْتُ مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَ دِينٍ أَذْهَبَ لِلُبِّ الرَّجُلِ الحَازِمِ مِنْ إِحْدَاكُنَّ.....(۱)

ما ستاسو په شان بل داسې د ناقِص عقل او ناقِص دِين واله بل څوک ندي ليدلي چې هغه د هوښيار او تجربه کار سړي عقل وړي.

(يعنی باوجود ددينه چې دښځې په عقل او دين کې نقصان دی خو بيا هم هوښيار سړي زَر په فِتنه کې واقع کوي).

ددې حديث نه معلومه شوه چې ښځې ناقصُ العقل دی ، او د بادشاه جوړيدو د پاره کامِل عقل په کار دی ، نو ځکه د ښځو بادشاه جوړيدل ناجائز دي.

د نارينه کيدلو شرط فقهاؤ ، او نورو علماؤ صراحةً ذکر کړی:

علامه حصکفي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: وَيُشْتَرَطُ كَوْنُهُ مُسْلِمًا حُرًّا ذَكَرًا عَاقِلًا بَالِغًا قَادِرًا.(۲)

---

(۱) هغه حديث پوره دادی: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ رضي الله عنه قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَضْحَى أَوْ فِطْرٍ إِلَى المُصَلَّى ، فَمَرَّ عَلَى النِّسَاءِ ، فَقَالَ: « يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ تَصَدَّقْنَ فَإِنِّي أُرِيتُكُنَّ أَكْثَرَ أَهْلِ النَّارِ » فَقُلْنَ: وَبِمَ يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: « تُكْثِرْنَ اللَّعْنَ ، وَتَكْفُرْنَ العَشِيرَ ، مَا رَأَيْتُ مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَدِينٍ أَذْهَبَ لِلُبِّ الرَّجُلِ الحَازِمِ مِنْ إِحْدَاكُنَّ »، قُلْنَ: وَمَا نُقْصَانُ دِينِنَا وَعَقْلِنَا يَا رَسُولَ اللهِ؟ قَالَ: « أَلَيْسَ شَهَادَةُ المَرْأَةِ مِثْلَ نِصْفِ شَهَادَةِ الرَّجُلِ » قُلْنَ: بَلَى ، قَالَ: « فَذَلِكِ مِنْ نُقْصَانِ عَقْلِهَا . أَلَيْسَ إِذَا حَاضَتْ لَمْ تُصَلِّ وَلَمْ تَصُمْ؟» قُلْنَ: بَلَى ، قَالَ: « فَذَلِكِ مِنْ نُقْصَانِ دِينِهَا » . صحيح البخاري كِتَابُ الحَيْضِ بَابُ تَرْكِ الحَائِضِ الصَّوْمَ رقم الحديث ۳۰۲ ، و رقم الحديث ۱۴۶۲ كِتَابُ الزَّكَاةِ بَابُ الزَّكَاةِ عَلَى الأَقَارِبِ ، صحيح مسلم كِتَابُ الإِيمَانَ بَابُ بَيَانِ نُقْصَانِ الإِيمَانِ بِنَقْصِ الطَّاعَاتِ رقم الحديث ۱۳۲ (۷۹) .

(۲) بَابُ الإِمَامَةِ: هِيَ صُغْرَى وَكُبْرَى، فَالكُبْرَى اسْتِحْقَاقُ تَصَرُّفٍ عَامٍّ عَلَى الأَنَامِ وَيُشْتَرَطُ كَوْنُهُ مُسْلِمًا حُرًّا ذَكَرًا عَاقِلًا بَالِغًا قَادِرًا، قُرَشِيًّا لَا هَاشِمِيًّا عَلَوِيًّا، مَعْصُومًا. الدرالمختار . قال ابن عابدين رَحِمَهُ اللهُ: ( قَوْلُهُ وَيُشْتَرَطُ كَوْنُهُ مُسْلِمًا إلخ ) أَيْ لِأَنَّ الكَافِرَ لَا يَلِي عَلَى المُسْلِمِ ، وَلِأَنَّ العَبْدَ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَى نَفْسِهِ ←←←←

د بادشاه جوړيدو د پاره دا شرط دی چې دا به مسلمان ، آزاد ، نارينه ، عاقِل ، بالِغ ، او قادِر وي.

علامه تفتازاني رَحِمَهُ‌اللهُ په " شرح مقاصد " کې ليکلي :

يَشترِطُ فِى الامامِ اَنْ يَكُوْنَ مُكَلَّفًا حُرًّا ذَكَرًا ... (۱)

د بادشاه جوړيدو د پاره دا شرط دی چې دا به مُکلف ، آزاد ، او نارينه وي.

همدا سې خبره سعدالدين تفتازاني رَحِمَهُ‌اللهُ په " شرح العقائد " کې هم کړی. (۲)

## سړو ته په ښځو باندې په ډيرو أمورو کې فضيلت حاصل دی :

الله تعالى سړو ته په ښځو باندې په ډيرو أمورو کې فضيلت ورکړی.

قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ‌اللهُ په تفسير مظهري کې ليکلي :

( اَلرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ بِمَا فَضَّلَ اللهُ ) اى بسبب تفضيل الله ( بَعْضَهُمْ ) يعنى الرجال ( عَلٰى بَعْضٍ ) يعنى على النساء فى اصل الخلقة بكمال العقل وحسن التدبير وبسطة فى العلم والجسم ومزيدا لقوة فى الأعمال وعلو الاستعداد ولذلك خصّوا بالنبوة والامامة والولاية والقضاء والشهادة فى الحدود والقصاص وغيرهما و وجوب الجهاد والجمعة والعيدين والاذان والخطبة والجماعة و زيادة السهم فى الإرث ومالكية النكاح وتعدد المنكوحات

←←← فَكَيْفَ تَكُوْنُ لَهُ الوِلَايَةُ عَلٰى غَيْرِهٖ ؟ وَالوِلَايَةُ الْمُتَعَدِّيَةُ فَرْعُ لِلْوِلَايَةِ القَائِمَةِ . وَمِثْلُهُ الصَّبِيُّ وَالْمَجْنُوْنُ . وَلِأَنَّ النِّسَاءَ أُمِرْنَ بِالْقَرَارِ فِي الْبُيُوْتِ فَكَانَ مَبْنٰى حَالِهِنَّ عَلَى السِّتْرِ. وَإِلَيْهِ أَشَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيْثُ قَالَ « كَيْفَ يُفْلِحُ قَوْمٌ تَمْلِكُهُمْ اِمْرَأَةٌ » وَقَوْلُهُ قَادِرًا: أَيْ عَلٰى تَنْفِيْذِ الْأَحْكَامِ وَ إِنْصَافِ الْمَظْلُوْمِ مِنَ الظَّالِمِ، وَسَدِّ الثُّغُوْرِ، وَحِمَايَةِ الْبَيْضَةِ وَحِفْظِ حُدُوْدِ الإِسْلَامِ، وَجَرِّ العَسَاكِرِ ....رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۵۴۸ بَابُ الإِمَامَةِ .

(۱) شرح المقاصد للتفتازاني ج ۲ ص ۲۷۷ .

(۲) " ويشترط ان يكون الامام من اهل الولاية المطلقة الكاملة " اي مسلمًا حرًّا ذكرًا عاقلًا بالغًا . والنساء ناقصات عقل و دين. شرح العقائد النسفي ص ۱۱۳ الخلافة والامارة .

والاستبداد بالطلاق وكمال الصوم والصلاة من غير فتور وغير ذلك وهذا امر وهبي . (۱)

سړي په ښځو باندې نګرانان دي ؛ ځکه چې الله تعالى سړو ته په ښځو باندې د اصلِ خِلقت په اعتبار سره فضيلت ورکړی ، يعنى سړو ته يې کامِل عقل ، ښه تدبير ، په علم کې زيادت ، په بدن کې طاقت ، په کارونو کې زيات قوت ، او اُوچت استعداد ورکړی (چې دا يې ښځو ته ندي ورکړي) . د همدې د وجې نه الله تعالى سړي په يو څو شيانو سره خاص کړي دي (يعنى خاص سړو ته يې ورکړي) چې هغه دادي : پيغمبري ، امامت ، حکومت ، قضاء ، په حُدود قِصاص او نورو تعزيري جرائمو کې ګواهي ، د جهاد واجب کيدل ، د جُمعې مونځ او اختر مونځ واجب کيدل ، اَذان ، خطبه ، د جَمعې مونځ ، په ميراث کې زياته حصه ، د نکاح مالکيت ، څلور وَدونه کول ، د طلاقو اختيار ، د رمضان پوره مياشت روژې نيول ، هر وخت مونځ کول . دا ټول کارونه د سړو خصوصيت دى ، او دا ټول وَهبي شيان دي ، الله تعالى صرف سړو ته ورکړي .

د دينه هم معلومه شوه چې د مسلمانانو بادشاه جوړيدل صرف د سړو خصوصيت دى ، ښځه بادشاه نشي جوړيدى .

همداسې خبره په تفسير مدارک کې هم ذکر ده . (۲)

## ښځو ته د پَردې حکم شوى

ښځې ته په اسلام کې د پَردې حکم شوى ، او دا پَردو سړو سره د اختلاط نه منع شوى حالانکه د بادشاه د پاره د نورو خلقو سره ملاويدل راځي ، نو ځکه ښځې د ملک سَربراه

(۱) التفسير المظهري ج ۲ ص ۹۸ سورة النساء في تشريح آية ۳۴ .

(۲) {بِمَا فَضَّلَ اللهُ بَعْضَهُمْ على بَعْضٍ} الضمير في بعضهم للرجال والنساء يعني إنما كانوا مسيطرين عليهن لسبب تفضيل الله بعضهم وهم الرجال على بعض وهم النساء بالعقل والعزم والحزم والرأي والقوة والغزو وكمال الصوم والصلاة والنبوة والخلافة والإمامة والأذان والخطبة والجماعة والجمعة وتكبير التشريق عند أبي حنيفة رحمه الله والشهادة في الحدود والقصاص وتضعيف الميراث والتعصيب فيه وملك النكاح والطلاق وإليهم الانتساب وهم أصحاب اللحى والعمائم . تفسير النسفي (مدارک التنزيل وحقائق التأويل) ج ۱ ص ۳۵۵ سورة النساء في تشريح آية ۳۴ .

جوړيدل ناجائز دي.

علامه شامي رَحِمَهُ اللهُ د ښځې د پاره د بادشاه نه جوړيدو يوه وجه دا ذکر کړې:

وَلِأَنَّ النِّسَاءَ أُمِرْنَ بِالْقَرَارِ فِي الْبُيُوْتِ فَكَانَ مَبْنَى حَالِهِنَّ عَلَى السِّتْرِ. وَإِلَيْهِ أَشَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيْثُ قَالَ «كَيْفَ يُفْلِحُ قَوْمٌ تَمْلِكُهُمْ اِمْرَأَةٌ». (۱)

(د ښځې د پاره د مُلک بادشاه جوړيدل ناجائز دي) ځکه ښځو ته په کور کې د پاتې کيدو حکم شوی، نو د دوی د پاره پَرده لازمي ده، او نبي عليه السلام هم دېته اشاره کړې (هغوی فرمايي): هغه قوم به څنګه کامياب شي چې په هغوی باندې ښځه حکومت کوي.

## د بِلقيس د واقعې نه استدلال صحيح ندی

په قرآن کريم کې چې د بِلقِيس کومه واقعه ذکر ده چې هغه د حضرت سليمان عليه السلام په زمانه کې د يو ملک بادشاه وه، نو ددې واقعې نه دا استدلال صحيح ندی چې اوس هم ښځه بادشاه جوړيدې شي.

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ په خپل تفسير " بيان القرآن " کې ليکلي:

زمونږ په اسلامي شريعت کې د ښځې بادشاه جوړيدل منع دي، او د بِلقيس د واقعې نه دې څوک شبهه اونکړي، ځکه اول خو د هغې بادشاه جوړول د مشرکانو کار وُ، دويم دا چې که چيرته حضرت سليمان عليه السلام هغه په خپل ځای باندې همداسې بادشاهه پريخې وي نو هغه د حضرت سليمان ﷺ شريعت وُ، او زمونږ په اسلامي شريعت کې د ښځې د پاره بادشاه جوړيدل ناجائز دي، لهذا د هغې واقعې نه استدلال صحيح ندی. (۲)

علامه آلوسي رَحِمَهُ اللهُ په تفسير روح المعاني کې ددې آيت ﴿إِنِّي وَجَدْتُّ امْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ﴾ د لاندې ليکلي: وليس في الآية ما يدل على جواز أن تكون المرأة ملكة. ولا حجة في عمل قوم كفرة على مثل هذا المطلب. (۳)

---

(۱) رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۵۴۸ بَابُ الإِمَامَةِ.

(۲) بيان القرآن ج ۲ ص ۳۳۷.

(۳) روح المعاني في تفسير القرآن العظيم والسبع المثاني ج ۱۰ ص ۱۸۵ في تشريح سورة النمل آية ۲۳.

په مذکوره آیت کې داسې څه خبره نشته چې هغه په دې دلالت اوکړي چې ګنې د ښځې د پاره بادشاه جوړیدل جائز دي ، او په دې کې د یو کافر قوم عمل زمونږ د پاره دلیل نشي جوړیدی. (ځکه بِلقیس خو کافرانو خپله بادشاه جوړه کړې وه نو هغه زمونږ د پاره دلیل ندی).

خلاصه دا چې د لائلِ شرعیهٔ په رڼا کې د ښځې د پاره د مُلک بادشاه جوړیدل ناجائز دي.(۱)

همدارنګې د ښځې د پاره د پارلیمنټ (پارلمان) رُکنیت قبلول ، او د سړو په جلسه کې تقریر کول د نَسوانیت خلاف دي ، ځکه په دې صورتونو کې د اسلامي حِجاب او پَردې لحاظ ساتل ممکن ندی.(۲)

(۱) فتاوی حقانیه ج ۲ ص ۳٦۳ ، وص ۲۹٦ کتاب السیاسة.

(۲) آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ٦۱۷ مرد اور عورت سے متعلق مسائل.

د علماؤ، طلباؤ، مُقرّرينو او عامو مسلمانانو د پاره په مختلفو موضوع گانو باندې

د تقريرونو يوه مُفصّله، مُعتمده، عِلمي، او تحقيقي ذَخيره:

# اِصْلَاحِيْ مُدَلَّلْ تَقْرِيْرُوْنه

جلد ۱ تا جلد ۱۵

تاليف

اَبُوالشَّمْس مولانا نُورُالهُدٰى عُفِيَ عَنْهُ

فاضلِ جامعه امدادُ العلوم پشاور صدر، و وفاق المدارس العربية ملتان

ايم اے عبدالولى خان يونيورسٹى مردان

حالًا: مُدَرِّس دارُالعلوم فيضُ القُرآن اكاخيل كالونى، مردان

علماء، طلباء، مقررین، اور عام مسلمانوں کے لئے مختلف موضوعات پر تقاریر کا ایک
مُفصّل، مُستند، عِلمی اور تحقیقی ذخیرہ :

# اِصلاحی مُدَلّل تقاریر

تالیف


ابوالشمس مولانا نورالہدیٰ عفی عنہ

مدرِّس دارالعلوم فیض القرآن اکاخیل کالونی مردان

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# خوشخبري

ددې پسې به هم اِن شَاءَ الله دويم جلد وي ، او دا سلسله به د الله ﷻ په توفيق سره تر يو وخته پورې همداسې جاري وي .

په خپلو خصوصي دُعاګانو کې مو ياد ساتئ

ستاسو ورور :

ابوالشمس نورالهدا عفی عنه

موبائل نمبر : ۰۳۰۶ ۵۴۴۷۱۷۴

